بسم الله الرحمن الرحيم

# أنوار المعاني

شرح

# مختصر المعاني

تأليف

جامع المعقول والمنقول
حضرت مولانا نور الحق صاحب
الكوهستاني

زیر اهتمام: مولوی نقیب الله حنیف

انوار القرآن کتب خانه
محله جنگی پشاور
0300-5722881

مكتبة الإشاعة

# أنوار المعاني

شرح

# مختصر المعاني

الاول


تاليف:

جامع المعقول والمنقول

حضرت مولانا نورالحق صاحب

الكوهستاني



مكتبة الإشاعة

محله جنگي پشاور

زير اهتمام: مولوي نقيب الله حنيف

0345-9459209

**بسم الله الرحمن الرحيم**

**رب يسر علينا هذا الكتاب ولا تعسر علينا هذا الكتاب وتممه لي بالخير يا فتاح وبك نستعين. رب سهل ويسر علينا ولا تعسر علينا يا ربي.**

**نحمدك:**

**نحمدك بكسر الميم** وايي: كه د ضرب يضرب نه شي او نحمَدك بفتح الميم وايي: كه د علم يعلم نه شي، اوس په دي مقام کې د يو څو خبرو تحقيق ضروري دی: ۱ يو دا چې شارح تصدير د خپل كتاب په نفس حمد سره ولې وكړو. ۲ دويم دا چې په جمله فعليه سره يې ولې وكړو، اسميه يې را نه وړه. ۳ او دريم دا چې په فعليه کې مضارع يې ذكر كړه ماضي يې ذكر نكړه. ۴ څلورم دا چې په مضارع کې يې بيا صيغه متكلم مع الغير ذكر كړه، واحد متكلم يې ذكر نكړه. ۵ او پنځم دا چې په حرف خطاب سره يې ذكر كړه، غيبت ضمير سره يې ضمير غائب ذكر نه كړه، نحمده يې ونه ويل، نو د اول لپاره نكته دا ده چې نفس حمد سره تصدير وكړو شارح لپاره د موافقات ثلاثه ؤ، يعني موافقت د كتاب الله سره، دويم موافقت د حديث مشهور سره، چې كل امر ذي بال لم يبدأ ببسم الله... ۳ او دريم موافقت د كتبو د سلفو صالحينو سره، ځكه هغوی تصدير په حمد سره كولو نو شارح هم وكړو، دويمې خبرې لپاره نكته څه شی شو يعني جمله اسميه يې ذكر نه كړه، بلكه فعليه يې ذكر كړه نو د دې لپاره نكته دا ده چې دې کې شارح اشاره وكړه خپل عجز ته، ځكه جمله اسميه دلالت كوي په دوام او استمرار باندې نو شارح اشاره وكړه چې يا الله مونږه دائمي او مستمراً ستا حمد نه شو كولی كما حقهُ خو وقتاً فوقتاً كوو، **لا احصي ثناء عليك انت كما اثنيت على نفسك** او جمله فعليه دلالت كوي په تجدد تحدث باندې، دويمه نكته چې مضارع يې ذكر كړه په فعل کې او ماضي يې ذكر نه كړه؟ حمدتك يې ونه ويل؟ وائي دې کې يې اشاره وكړه استمرار تجددي ته، ځكه ماضي صرف په تجدد حدوث باندې دلالت كوي، استمرار باندې نه كوی؟ او مضارع دلالت كوي په استمرار تجددي باندې، حاصل چې مونږه ستا حمد وقتاً فوقتاً وايو خو هميشه يې وايو، نو د دې د وجهې نه يې تعبير په مضارع سره وكړو، لكه **لو يطيعكم في كثير من الامر لعنتم** او څلورمه نكته چې مضارع متكلم مع الغير يې وويل حالانكه شارح يو دی، اوكه ته وايي چې تعظيم لپاره يې صيغه جمع متكلم مع الغير راوړی، نو دا مقام د تعظيم دی كه د عجز دی؟ نو شارح خپل عظمت خو نه بيانوي ځكه دا مقام د عجز دی، نو تعظيم لپاره خو نه شي كيدی نو شارح متكلم مع الغير ولې راوړو، نو تاسو وايئ چې په دې کې هم شارح اشاره وكړه خپل عجز ته، چې الله زه يواځې ستا حمد كما حقه نه شم ويلی، تر څو پورې چې ما سره نور مؤمنان مرحدان شريك شوي نه وي يا دې تشريك مع الغير سره حمد اقرب الى الاجابت دی، ځكه چې د ټولو په شركت سره چې حمد وايئ، نو يا د دې ټولو حمد به الله رد كړي يا به د ټولو قبول كړي، يا د بعضو به قبلوي او د بعضو به نه قبلوي، نو د ټولو حمد رد كول خو متصور نه دي ځكه بعضې په کې نيک خلک وي د

هغوی دعا الله قبلوي، او د بعضو نه قبلول او د بعضو رد كول، دا د شان رحيمي سره لايناسب دی، او بل تفریق د صفقي هم راخي او تفريق د صفقي قبل التمام جائز نه دی نو شق ثالث متعين شو چې الله د ټولو قبلوي، خو دا تشريك اقرب الى الاجابت دی په هغه ځای کې چې مسموع من الشارع وي، ګوري: او چې د شارع نه مسموع نه وي نو بيا اقرب الى الاجابت نه دی، ابعد عن الاجابت دی، پنځمه نکته چې کاف خطابي یې ولې ذکر کړو؟، ضمير د غائب يې رانه وړو، حالانکه لفظ الله ، اسم د الله د غائباتو نه ندی؟ نو تاسو وايئ په دې کې شارح اشاره وکړه مقام شهودي ته، چې موږه ستا حمد وايو الله! په داسې طور سره چې موږ تا په ځان باندې حاضر ناظر ګڼو، چې موږه تا وينو، او که نحمده یې ويلې وو نو مقام غيبوبيتي ته اشاره کېدله، حالانکه مقام شهودي اعلى وارفع دی د مقام غيبوبيتي نه، لکه ديته اشاره په حديث جبريل عليه السلام کې چې شوی ده، جبريل نبي عليه الصلاة والسلام نه تپوس وکړو چې ما الاحسان نو رسول الله ﷺ وويل: ان تعبد الله كانك تراه وان لم تكن تراه فانه يراك نو ان تعبد الله كانك تراه، کې يې مقام شهودي ته اشاره وکړه، چې ته الله برابر راست وينې، او که ديته ته نه يې رسيدلی نو دا به ته فرض کوې چې فانه يراك چې الله ما ويني، دا مقام د غيبوبيت شو، نو شارح هغه مقام اعلى وارفع ته اشاره کولو لپاره کاف خطابي ذکر کړو.

**يا من شرح صدورنا لتلخيص البيان**: د دې نه غرض د شارح څه دی؟ بيان د محمود عليه کوي، محمود عليه عبارت دی د باعث على الحمد نه دلته کې، چې موږه ستا حمد ولې کوو باعث څه دی؟ نو وائي چې تا زموږ د سينو شرحه کړې ده لپاره د تلخيص البيان.

اوس که څوك شبه وکړي چې يا خو لپاره د نداء بعيد نه راځي؟ او الله تعالى خو اقرب دی من حبل الوريد؟ نو تاسو به جواب کې وواياست ده دلته کې الله قريب وو خو په اعتبار د علم او قدرت سره، خو ليکن رتبې لحاظ سره بعيد وو که نه وو؟ (يعني وو نو)، دا بُعد رتبې نازل کړی شو په منزله د بُعد مسافتي مکاني کې نو يا د بعيد لپاره راوړه، دې وايي معترض چې نحمدك کې (خطاب کې) خو تا اشاره کړې چې الله قريب دی حاضر ناظر دی، تاسو وواياست د علم په لحاظ قريب دی او د رتبې په لحاظ سره بعيد نه دی؟ بعيد دی

يا من معنى اى هغه ذات، د مبهماتو اطلاق په الله باندې صحيح دی نو من موصول مبهم دی، دا اطلاق صحيح دی لکه په بعضې اثارو کې راځي يا من لايزال ملكه ارحم على من زال ملكه عمر بن عبد العزيز دا ويلې وو، خليفة المسلمين وو، چې کله د هغه نزع کېدل شروع شو حاضرينو ته یې وويل چې زما د دې کټ لاندې ايره خوره کړئ، ايره يې خوره کړه، بيا يې وويل د دې کټ نه ما کوز کړئ، هغه يې کوز کړو، نو هغه ويل يا من لايزال ملكه ارحم على من زال ملكه د هغه بادشاهي تر نن ورځې پورې وه نن ختم شوه، نو اطلاق د مبهماتو په الله باندې جائز شو.

قوله شرح صدورنا صدور جمع د صدر دی، صدر په معنی د قلب سره دی، نو دا یو مجاز مرسل راغی. خکه چې د قلب محل صدر دی که نه دی؟ د قلب محل صدر دی نو ذکر د محل شو مراد ترینه حال شو او یا د قلب نه روح مراد شو، نو دا بل مجاز مرسل شو. خکه قلب نه هغه مضغة هغه توته د غوښي مراد دی؟ نه دی مراد روح تري مراد شو، یعني نفس ناطقه زمونږه، قوله: لتلخیص البیان لام متعلق دی د دي شرح پوري بنه، یعني کولاؤول چې کړی دی نو لپاره د هغه بیان ملخص، نو دا اضافت ددی تلخیص بیان ته دا د قبیلي د اضافت د صفت نه دی موصوف ته یعني هغه بیان چې هغه خالي دي د حشو او تطویل نه، اوس بیان نه مراد څه دی؟ بیان نه مراد النطق الفصیح المعرب عما في الضمیر یعني تا زمونږ هغه نفس ناطقه د گویایی لپاره کولاو کړي دي، چې مونږ داسي کلام او خبره کولی شو چې هغه د حشو او تطویل نه خالي وي، نو مونږ ستا حمد څکه کوو باعث په مونږ دغه دی

قوله في ایضاح المعاني دا في په معنی د مع سره، یا په خپله معنی سره، تلخیص پوري یا بیان پوري متعلق دی، دا تلخیص د حشو او تطویل نه په څه کي دی؟ في ایضاح المعاني په واضح کولو د معانیو کي، یا دا بیان النطق الفصیح په څه کي دی په ایضاح المعاني کي معاني نه مراد مقتضیات د احوالو دی، حاصل دا چې مونږه هر کلام چې کوو نو هغه مطابق د حال د مخاطب سره، چې حال د مخاطب څه غواړي نو هغه شان مونږه ورسره کلام کوو، داسي بیان مونږ ته راکړی شوي دی، یا داسي تلخیص او ملخص کلام مونږ ته نصیب شوی دی، نو معاني نه مراد مقتضیات الاحوال شو، که حال د مخاطب خلو د تاکید نه غوښته نو مونږه په کلام کې خلو د تاکید کوو، کلام خالي د تاکید نه ذکر کوو، دارنگه که یو تاکید یې غوښتلو، نو یو تاکید ذکر کوو، که ډیر تاکیدونه یې غوښتل نو ډیر ذکر کوو، که حال د مخاطب حذف د مسند الیه غوښته نو حذف کوو، که ذکر غوښتل نو ذکر کوو، دا مقتضیات د احوالو دي، به هر حال په دي بیان او معاني کي براعة الاستهلال ته اشاره وشوه، براعة الاستهلال د مفرداتو معنی څه ده؟ براعة ویلی شي تفوق ته، برع الرجل اذا تفوق علی اقرانه، او استهلال ویلی شي صوت د صبي ته په حین د ولادت کي، لکه استهل الصبي اذا صوت، اوس دا براعة الاستهلال مجموعه نوم گرځیدلی دی، او عبارت دی د ایراد د الفاظو نه چې مشعر وي مقاصد اتیو باندي، نو دلته کي ده بیان لفظ او معاني لفظ ذکر کړه، نو اشاره یې وکړه، چې راتلونکي کتاب کي مسائل د علم البیان او مسائل د علم المعاني به بیانیږي

قوله ونور قلوبنا: و نور دا عطف دی په شرح باندي دي نه غرض د شارح دریم محمود علیه ذکر کول دي، قانون دا دی چې ما قبل د معطوف علیه نه کالمعاد وي په معطوف کي، نو هلته کي نحمدك یا من شرح وو، یَامَن وو نو دلته کي هم را اوباسئ، نو دتقدیر به داسي شي نحمدك یا من نور قلوبنا، نو عطف د صلي په صلي باندي شو، نور د تنویر نه ماخوذ مشتق دی، تنویر ویلی شي ادخال النور في القلب

ته، نو معنى دا شوه چي رڼا يې زمونږ په زړونو كي داخله كړې ده، قلوبنا ذكر د قلب مراد ترينه روح او نفوس دی، نو د دې وجې نه مونږ د الله حمد بيانوو

**قوله بلوامع التبيان** بلوامع التبيان كې جار و مجرور خو متعلق دی په دې نور قلوبنا كې **فنورپوري**، خو د دې **بلوامع التبيان** په اضافت كې دوه احتمالين دي، يا اضافت د دې د قبيلې د اضافت د مشبه به نه دی مشبه ته، نو تقدير بيا دا شو، ونور قلوبنا بالتبيان اى بالبيان الكامل كالانجم اللوامع، نو لوامع لپاره موصوف محذوف شو، نو دا تبيان مشبه شو، تبيان كامل ظهور ته وائي، الانجم اللوامع مشبه به شو او كاف په كې الد د تشبيه محذوف شو او وجه د شبه اضاءت شو، رڼا شوه، يو احتمال شو، او دويم احتمال يا دا كيداى شي، اضافت د موصوف دی صفت ته، دا لوامع په اصل كې موصوف او تبيان صفت وو، هغه موصوف اوس مضاف شو صفت ته، معترض په شبه وكړي چې يا هلكه صفت خو محمول وي په موصوف باندې او تبيان حمل په لوامع باندې كيدی شي؟ (يعني نه شي كيداى) نو جواب وكړی چې تبيان په معنى د مبينة سره دی، نو بيا معنى دا شوه چې رڼا كړي يې دی ارواح زمونږ په پركيدونكو مسائلو سره هسې پركيدل چې كامل ظاهر كيدونكي دي، يا ظاهر كړی شوی دی اي **مبينة** نو بيا لوامع نه مراد مسائل شو، چې هغه مسائل زمونږ په زړونو كې كامل ظاهروي او كامل مونږ ته معلوم دي، خكه تبيان دا مبالغه ده په بيان كې، تبيان يې خكه ذكر كړی دی چې مزيد كې مبالغه وي هغه چې هغه په مجردو كې نه وي، خكه زيادت د حروفو دلالت په زيادت د معنى باندې كوي.

**قوله من مطالع المثاني** اوس من مطالع المثاني كې دوه احتمالين دي، يا دا حال كوی د تبيان نه، او حال د مضاف اليه د فاعل او مفعول نه صحيح دی، كله چې حذف د هغه فاعل او مفعول وشي، او هغه مضاف اليه د هغې په خاى باندې قائم كړی شي، نو دلته كې تبيان دا مضاف اليه د مفعول دی چې لوامع دی او حذف د هغه مفعول او اقامت د تبيان د هغې په خاى صحيح دی، نو حال هم صحيح شو، يا دا من مطالع المثاني صفت جوړ كړی د دې تبيان لپاره، او منْ په دې من مطالع المثاني كې په معنى د باء سببيه سره شو، نو تقدير دا شو چې حال كون ذلك التبيان كائناً بسبب مطالع المثاني، او كه صفت شي نو ترجمه به داشي، چې هسې تبيان چې الكائن بسبب مطالع المثاني **والتقدير التبيان الكائن بسبب مطالع المثاني**، خو دا منْ سببيه هله كيږي چې تبيان په خپله معنى مصدري باندې پاتې شي، او كه تبيان په معنى د مبينة سره واخلي نو بيا په **من مطالع المثاني** كې دا منْ بيانيه دی، حاصل: هغه بيان كړی شوی څه دی؟ مطالع المثاني دی، اوس مطالع نه څه مراد دی او مثاني نه څه مراد دی؟ نو مطالع جمع د مطلع ده، او مطلع ويلى شي هغه محل د راوتو د ستورو ته او د سپوږمى او نمر ته، او مثاني جمع د مثنى دی، مثنى مكرر ته ويلی شي، نو اوس دې مثاني نه مراد قران دی، خكه چې مثاني اطلاق په قران باندې شوی دی (؟

لَقَدْ آتَيْنٰكَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِيْ وَالْقُرْاٰنَ الْعَظِيْمَ ﴾ نو القران العظيم چې كه تفسير د مثاني شي. نو مثاني اطلاق په ټول قران باندې ونه شو؟ اوشو نو مثاني نه مراد قران شو. مطالع نه مراد الفاظ د قران دى. نو د دې مطالع اطلاق په الفاظو د قران باندې مجازاً وشو. لفظ موضوعه د مشبه به مستعمل شو په مشبه کې، ځکه مطالع جمع د مطلع ده او مطلع خو هغه ځاى د ختو د نمر او سپوږمۍ ته ويلى شي. نو الفاظ د قران مشابه شو د هغه ځاى د ختو د ستورو، سپوږمۍ او د نمر سره. او هغه مطلع مشبه به شو. جامع په دواړو کې اضاءت دى. مطلع د نجم، قمر او د کوکب نه رڼا بنيږي. الفاظو د قران کريم نه معاني د قران کريم معلوميږي. نو بيا ذکر د لفظ موضوعه د مشبه به شو او مراد ترينه مشبه شو نو دينه استعاره مصرحه وائي نو دلته دې کې استعاره مصرحه شوه. نو معنى دا شوه چې الله زمونږ زړونه رڼا کړي دې په الفاظو د قران سره داسې الفاظ د قران چې د هغې نه مونږ د معانيو تدبر کولى شو. نو دا لوى نعمت نه شو؟ دا باعث شو په حمد د الله باندې

**قوله وتصلي على نبيك** دى سره صلوة ذکر کوي په رسول الله ﷺ باندې (غرض صلوة ذکر کوي) او صلوة ځکه ذکر کوي چې رسول الله ﷺ زمونږه محسن دى، ځکه چې اتباع د رسول الله ﷺ سبب د فيضان د مسائلو دې، چې اتباع د رسول الله ﷺ مونږه وکړو، الله به په مونږ باندې فيضان د مسائلو کوي، نو رسول الله ﷺ محسن شو، نو محسن سره سرى احسان کوي، **هل جزاء الاحسان الا الاحسان** نو د شارح د طرف نه احسان وو تحفه د رسول الله صلى الله عليه وسلم د صلوة وه نو هغه ذکر کړه نو نصلو. ونږ افاضه د خير کوو. دعا د خير کووستا په نبي باندې. شبه هلکه نبي خو ټولو انبياؤ ته شامل دى، نو بيان يې وکړو چې محمد ﷺ ته، داسې **محمد المؤيد** دا لفظ د المويد په صيغه د اسم فاعل. سره هم صحيح کيږي، چې تائيد کوونکى دى دغه محمد بيا **دلائل اعجازه** منصوب ولولى: يعني تائيد کوونکي دى د دلائلو د اعجاز خپلو باسرار البلاغة په هغه نکاتو د بلاغت سره، او چې المويد شي په صيغه د اسم مفعول سره نو بيا معنى ده چې داسې محمد چې تائيد يې کړى شوى دى دلائل اعجازه بيا دلائل اعجازه مرفوع ولولى، بنا په دې چې دا بيا نائب فاعل شو د المويد لپاره. الخ، دلائل د اعجاز د رسول الله ﷺ قران دى، او سُور قرانيه دې، يعني دې داسې کلام کوي داسې کلام بيانوي چې خصم د هغې د مثل راوړو نه عاجز دى، او ولې عاجز دى؟ وائي ځکه چې ددې په ځلاو کې داسې نکات دې چې هغه د طاقت بشرى نه بهر دى.

**قوله وعلى اله واصحابه** اوس دا صلوة ذکر کوي په ال و اصحاب باندې، ځکه چې دوى معاونين د محمد ﷺ وو په تنفيذ د احکام شرعيه ؤ کې، دارنګه په تبليغ د احکام شرعيه ؤ کې، نو چې معاونين شو نو د معاونينو لپاره هم دعا کوي، نو وېې ويل او مونږه افاضه د خير کوو دعا د خير کوو په ال او په اصحابو باندې داسې **الاصحاب المحرزين**: دا صفت مادحه دى، چې دوى جمع کوونکي دي

ساتونکي دي ضم کونکي دي **قصبات السبق**: هغه نيزې د مخکي والي **في مضمار الفصاحة والبلاغة** په هغه ميدان د فصاحت او بلاغت کي، قصبات جمع د قصبة ده، قصبه ويلی شي هغه ورو کي نيزې ته چي هغه د يو دشتي يو ميدان په سر کي ښخولی کيږي او د دې بل طرف نه بيا په اسونو سره مقابله کوي نو چي د چا آس هغه نيزې ته مخکي ورسيدو نو د هغه لپاره انعام وي او هغه ته به عربو انعام ور کولو، ديته په عربي کي مسابقت وائي، او دا په دې بره چلاس علاقه کي دير وي، هغوی ورته بوله وائي، دارنگه گلگت علاقه کي دير وي، نو معنی دا چي صحابه د فصاحت او بلاغة په ميدان کي د ټولو خلکو نه مخکي دي او اسلام ته رسيدلی دی، نو دا قصبة هغه نيزه چي پورې ښخه شوې ده هغه دين او اسلام شو او صحابه مسابقين شو او نور خلک هم، او دا فصاحت او تفوق په کمال کي دا د هغه ميدان په شانتې شو، نو صحابه دې دين او اسلام ته د ټولو خلکو نه دې فصاحت و اوچت والي کي مخکي رسيدلی دی

**قوله: وبعد**: د بعد نه وروستو د شارح څلور غرضه دي، يو غرض د شارح باعث ذکر کوي، چي صا مطول نه مختصر ولي جوړ کړو، دويم غرض د شارح باعث په نفس تصنيف باندې بيانوي، چي تصنيف د مختصر ما ولي وکړو، دريم شرافت فني بيانوي، چي ما په دې فن کي تصنيف وکړه نو بل فن کي ما ولي نه کولو، څلورم غرض شرافت متنی بيانوي، چي ما په دې متن، تلخيص باندې شرح وکړو په بل متن باندې ولي نه کوو، نو ويې ويل چي «وبعد يعني پس د جمل ثلاثه ؤ نه چي حمد او صلوة او تسميه دی.

**قوله فيقول العبد**: اوس فيقول العبد کي التفات راغلو د تکلم نه غيبت ته، خکه نحمدك کي تکلم وو او العبد کي غيبت شو، ديته وائي التفات دتکلم نه غيبت ته، دا لپاره د تنشيط د سامعينو لان کل جديد لذيذ او شارح په عبد سره خان نه تعبير وکړو خکه چي عبوديت لوی مقام دی په انسان کي، چي خان د الله مرئي گنل غلام گنل دا په انسان کي لوی مقام دی، د دې وجې نه الله په عباد الرحمن سره تعبير کوي، مريان د رحمن هغه کسان دي چي هغې کي دغه اته صفات اتيه موجود وي، د دې وجې نه په لوی مقاماتو کي چي هلته توهم د شرك وی، نو الله رسول الله ﷺ نه تعبير په عبد سره کوي، لکه اوس په مقام د اسراء کي، لوی مقام دی ﴿سُبْحٰنَ الَّذِیْۤ اَسْرٰی بِعَبْدِهٖ﴾ دارنگه په مقام د تبليغ کي ﴿وَّ اَنَّهٗ لَمَّا قَامَ عَبْدُ اللّٰهِ یَدْعُوْهُ كَادُوْا یَكُوْنُوْنَ عَلَیْهِ لِبَدًا﴾ امر بالمعروف لوی مقام نه دی؟ دارنگه په مقام د مونځ کي، مونځ لوی مقام دی ﴿اَرَءَیْتَ الَّذِیْ یَنْهٰىۙ عَبْدًا اِذَا صَلّٰى﴾ مونځ مناجات مع الرب دی، دارنگه نزول د وحي لوی مقام دی ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْۤ اَنْزَلَ عَلٰى عَبْدِهِ الْكِتٰبَ﴾ نو عبوديت انسان کي لوی مقام وو نو شارح خان نه په عبد سره تعبير وکړو، لقب خپل عبد وگرځول، قوله: **الفقير الى الله الغني** محتاج دی الله ته

او هسې الله چې هغه بې پرواه دی، فقر صفت یې خان ته ثابت کړو، او د غني صفت یې الله ته ثابت کړو ځکه چې فقر صفت ذاتي د انسان دی او غنی صفت ذاتي د الله دی، او قرآن پرې ګواه دی ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ أَنتُمُ ٱلْفُقَرَآءُ إِلَى ٱللَّهِ ۖ وَٱللَّهُ هُوَ ٱلْغَنِىُّ ٱلْحَمِيدُ﴾ هغې ته یې اشاره وکړه، نو فقر، احتیاجي دا صفت ذاتي د ممکن دی او استغناء دا صفت ذاتي د الله دی د دي وجې شیخ الاسلام ابن تیمیة رحمه الله واني

الفقر لي وصف ذات دائما ابدا ... كما ان الغنى وصف له ذاتي

**قوله مسعود بن عمر المدعو بسعد التفتازاني:** یا هلکه هغه فقیر څه دی ای؟ ځوك دی واني هغه مسعود دی چې زوی د عمر دی، المدعو، المسمی چې تفتازاني یې لقب دی، او د ده ولادت شوی وو په ۷۱۲هـ کې او وفات شوي وو په ۷۹۱ کې کل عمر یې ۷۹ کاله شو، تفتازان دده د کلي نوم وو، **قوله: هداه الله سواء الطریق و اذاقه حلاوة التحقیق:** شارح اوس جمله دعائیه راوړي، او دی بناني الله ده ته هغه برابره لار الطریق السوي چې الله ته رسي، یا ودې رسوي ده لره الله سواء الطریق ته، او ودې څکوني الله ده ته خوند د تحقیق، تحقیق څه ته واني؟ اثبات الدعوی بالدلیل، مسئله چې ثابته بالدلیل شي دومره خوږه وي چې د شهدو نه هم زیاته خوږه وي.

**قوله: قد شرحت فیما مضی تلخیص المفتاح قد شرحت دا** مقوله د یقول ده، چې فقیر څه واني یعنې قد شرحت، فیما مضی واني تحقیق سره ما وضاحت کړی وو په ما مضی کې د تلخیص المفتاح، مطول ما لیکلی وو بنه وضاحت بنه طوالت ما کړی وو، که څوك شبه وکړي چې یا هلکه چې ذکر د فیما مضی وروستود شرحت نه مستدرك شو، ځکه شرحت ماضي ده، هغې نه مضی فهمیږي نو فیما مضی ذکر کول مستدرك شو که مفید شو؟ مستدرك شو، نو تاسو وواییئ چې دا فیما مضی تاکید دی د شرحت لپاره، داې تاکید ذکر کړی دی، بیا شبهه راغله چې یا هلکه تاکید کې څه نکته وي، نو تاکید یې څه لپاره وکړو فیما مضی د شرحت لپاره، نو تاسو وواییئ چې تاکید یې لپاره د دفع د توهم کړی دی، اوس داتوهم په دوو طریقو سره راتلل یا طریقه د توهم دا وه چې یا هلکه کله ماضي په معنی د مضارع سره راځي ابتداء کې نو دلته کې شرحت په معنی د أشرحُ سره به وي لکه ﴿أَتَىٰٓ أَمْرُ ٱللَّهِ﴾ ﴿ٱقْتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمْ﴾ نو تجوز، توهم راغلو، نو ده تاکید وکړو چې نه نه، فیما مضی، شرحت په خپله معنی د ماضي دی په معنی د أشرحُ سره نه دی، دویمه طریقه د توهم دا ده چې شَرَحْتُ، ماضي د قریب لپاره هم راځي او بعید لپاره هم راځي، یعنې قریب او بعید دواړو کې شریك وو، نو دا شرحه په نږدې زمانه کې وه او که نه لرې زمانه کې وه نو ویل نه نه، فیماضی، لرې وو، د مطول په تصنیف او د مختصر په تصنیف کې پوره وخت تیر شوی وو.

**قوله: واغنیته بالاصباح عن المصباح:** اغنیته، دا صفت د مطول ذکر کوي، ما بې پروا کړی وو دې تلخیص

المفتاح لره په صبا ختلو سره د ډيوي نه، نو د تلخيص مسائل يو تيارة شوه. د موليانو طالبانو نه د دې مسائل د راويستو نه پټ وو، د تلخيص مسائلو باندې نه پوهيدل، او زما د مطول مثال د صبا وو. او د نورو شروحو په تلخيص باندې مثال د ډيوي وو، او صبا چې وخيژي نو ډيوي ته حاجت وي؟ نه وي نو ما چې په تلخيص مطول جوړ كړو نو هغه نوري شرحي تولې غير مشهوري او ختمې شوې، چا په لاس كې هم نه اخستې، ځكه چې صبا وخيژي نو ډيوي ته بيا ضرورت وي؟ هيڅ ضرورت نه وي وائي چې ما بې پرواهي راوسته د فهم د مسائلو د تلخيص نه د ډيوي نه په صبا راختلو سره

**قوله: واودعته غرائب نكت سمحت به الانظار.** او ما ايښي دى غريبې نكتې (نكت غريبه قال استاذ هكذا) د غرائب اضافت ، اضافت د صفت موصوف ته دى؟ نكتې غريبې، نكت، جمع د نكتة دى، نكته په لغت كې حفره د ارض ته وائي بالاصبع يا بالخشب، يا په ګوته يا په لرګي او په اصطلاح كې نكته څه ته وائي، يو امر دقيق ته چې كولى شي په نظر دقيق سره يعني نا اشنا نكتې ما په كې ايښى دى چې هغه چا ته د سره معلومې نه وي.

**قوله: سمحت به الانظار**، جوانمردي كړي وه، سخا كړي وه، په دې نكتو باندې نظرونو د خلكو، انظار جمع د نظر دى، نظر اوفكر يو شى دى، ترتيب د امورو معلومولو لپاره د تحصيل د مجهول ته وائي.

**قوله: ووشحته بلطائف فقر سبكتها يد الافكار...** او ما ښايسته كړى وو دې مطول لره په هغه باريكو فقرو سره، اضافت د صفت دى موصوف ته، فقره اصل كې وبلى شي هغه كالي ته چې هغه جوړولى شي په شكل د فقرة الظهر باندې، د دې پښتوړګي په شان، پښتو كې ورته اوګي وائي، د سپينو زرو نه جوړوي او ښځې يې غاړه كې اچوي، مونږه ورته ګهيره وايو كوهستاني ژبه كې فارسي كې ورته څه وايي؟ ښه طوق ورته وايي؟ ښه، د پوختى غوندې كوړ كالي وي، او پوختى هم كړه وي، دلته كې د فقرې نه مراد باريك كلام يعني باريك مسائل ذكر كړي وو، **سبكتها**: چې اخيستى وو هغه لره لاسونه د فكر مندو خلكو، يعني مفتى به او حق مسئله ما ذكر كړي وه، ضعيفې خبرې په كې ما پرېښې وې.

**قوله: ثم رايت كثيراً من الفضلاء والجم الغفير من الاذكياء**: دا مخكې شارح تمهيد ذكر كړو، چې ما مطول نه مختصر ولې جوړ كړو، اوس باعث ذكر كوي د مطول نه د مختصر جوړولو، نو وائي: **ثم رايت كثيراً** عطف يې په ثُم سره وكړو او دا عطف په شرحت باندې دى، نو اشاره يې وكړه ديته چې د مطول او د مختصر په تصنيف كې پوره فاصله وه، يو حد پورې د طالبانو مطول معمول وو، خو وروستو بيا د موليانو طالبانو همتونه كم شو نو ما مختصر جوړ كړو.

**ترجمه**: نو بيا ما وليدل ډيرو لره، كه رؤيت نه مراد رؤيت بصري شي، نو هغه يو مفعول غواړي نو كثيراً د هغې مفعول شو، او بنا په دې باندې **يسئلوني** وروستو را روان دې دا حال شو معنى دا په حال كون د دې كثير كې چې سوال يې كولو ما نه طلب يې كولو ما نه.او كه د رؤيت نه مراد رؤيت علمي شي

نو بيا كثيراً مفعول اول شو او يسئلونني قائم مقام د مفعول ثاني ده من الفضلاء دا حال دى. په حال كون د دې كثير كې چې دا د علماؤ نه وو، يعني فاضلان وو، طالبان داسې وو، يعني چې قريب وو. عالم درجې ته رسيدلى وو، نو فضلاء لوى لوى خلك وو جمع د فاضل شو كنه، معنى فارغ التحصيل ووايې، والجم الغفير من الاذكياء، دا تفسير شو د دې كثير لپاره، او من الاذكياء تفسير شو د فضلاء لپاره، شبه دې واني چې هلكه تفسير كې خو څه غرض وي، غرض څه دى؟ د دې تفسير نه څه غرض دى: (جواب) نو تاسو ووايئ غرض مبالغه دى څنګه مبالغه ده، څكه د كثير نه خو نفس كثرت معلوم شو، او د جم الغفير نه هغه جماعت، غفير، هغه جماعت ته وائي چې مخ د زمكې يې پټ كړى وي. نو جم جماعت ته وائي، او غفير د غفر نه دى ستر ته وائي، يعني دومره زيات جماعت وو چې مخ د زمكې يې پټ كړى وو، او زما دماغ يې وشلول، وائي سرې يسې (مولا) ولګې چې مونږ ته سبق ووايه، چې غُل يې نه وي ايستلى نو پريږدي يې نه بيا، هر څنګه چې وى ويل وائي مونږ ته به وائي. نو دې كې مبالغه راغله؟ څكه مخكې نه نفس د يروالى فهم شو، او وروستو په ډيروالي كې مبالغه وشوه، او من الاذكياء كې هم مبالغه وشوه، مخكې نه دا معلومه شوه چې هسې نفس فارغ التحصيل وو، او وروستو يې وويل چې ذكيان وو په كې، كامل العقل سريع الفهم علماء وو.

**قوله: يسئلونني صرف الهمة نحو اختصاره والاقتصار على بيان معانيه وكشف استاره**: غوښتنل زما نه اړولو د قصد طرف د لنډوالي د دې شرحې ته وويل مونږ اوزګار نه يو واده زمونږ تيار دى يا كړى دى، (قال الشيخ ذلك مذاقاً) مونږ مطول ته اوزګار نه يو دا لندوه، دا نه پكاريږي، ګران هم دى او مونږ اوزګار هم نه يو مونږ كور ته خو خان نور فارغه كوو، توهم راغى چې الفاظ كم كړه معاني دې هغه شانتې وي، نو بيا څه فايده راغله، څكه د اختصار به دا معنى وي چې الفاظ كم كړه او معاني په خاى پريږده، ايجاز وكړه الفاظو كې، نو ويل نه نه، الا قتصار على بيان معانيه وكشف استاره (يعني دا عبارت جواب د سوال دى، اى سوال مذكور) يعني او كوتاهي كول په بيان د معاني خفيه د دې تلخيص او كشف، بس مقصودې مقصودې خايونو حل مونږ ته وكړه، كشف كول د پردې د هغه مستورو څيزونو يعني ګران او مشكل مسئله مونږ ته حل كړه.

**قوله: لما شاهدوا من ان المحصلين قد تقاصرت هممهم عن استطلاع طوالع انواره**: يسئلونني لپاره وجه وائي، چې دا سوال دوى ولې كولو. نو اوس لمابكسر اللام صحيح دى او لما شاهدوا بفتح اللام هم صحيح دى، كه لما بكسر اللام شي نو دا به جار مجرور شي متعلق به شي په يسئلونني پورې او علت به شي د يسئلونني لپاره، او كه نه لما شاهدوا شي بفتح اللام نو ظرف به شي د يسئلوني لپاره په معنى د علت كې به شي، نو چې لمابكسر اللام شي نو علت به لفظاً شي د يسئلونني لپاره، او چې لما شاهدوا شي نو

کولو، یعني هغوی علامه تفتازاني مطول لوړ کړی وو. او رابنکلي وو دوی څپونه د بدلولو علی ذلك الکتاب، یعني په دې کتاب چې داشرحه وو، د سر نه یې ماته نسبت بدل کړی وو. بلکه نسبت یې خاته کول، نو موږ ویل چې خلکو بلکل ستامطول ختم کړو. نو بل کتاب جوړ کړه مختصر

**قوله: وکنت اضرب عن هذا الخطب صفحا واطوي دون مرامهم کشحا** وکنت سره دفع د اعتراض کوي. چې هلکه دغه باعث جوړی کافي وو لپاره د مختصر؟ وائي نه نه دا کوم خای کې کافي وو. یعني دا تقاصر او تقاعد او دا اتحال کافي وو؟ ویل نه. **وکنت اضرب:** او وم زه چې ما اعراض کولو د دغه لوی کار نه په اعراض کولو سره چې زه نور تصنیفونه نشم کولی. **واطوی:** نو بیا به طالبان چې د دې طرف نه راغلل نو ما به تیهګاه دې طرف ته کړه چې هغه طرف نه به راغلل نو ما به تیهګاه دی طرف ته کړه.

**واطوی:** او راتاوول ما مخکې د مقصود دوی نه تشي لره، چې دې طرف ته به طالبان راغلل چې جي مطول نه مختصر جوړ کړئ نو زه به دې خوا طرف ته شوم چې دې طرف ته به راغلل نو زه به داسي شوم بل خوا به مي مخ کړو ویل دا ولي؟

**قوله: علما مني بان مستحسن الطباع باسرها ومقبول الاسماع عن اخرها،** علماً د اطوی لپاره مفعول له دی، یا اضرب لپاره دی، د وجي دعلم یقیني زما نه یقینا اتیان په یو مصنف باندې چې هغه تولې طباع بنه وګني یاذوالطباع هغه بنه وګني، یعني تول خلك ومني، مسلم **باسرها** بتمامها.

**او مقبول الاسماع:** او اتیان په یو مصنف باندې چې هغه د تولو اوریدونکو په نزد باندې مقبول وي، **عن اخرها،** عن په معنی د الی سره کوي، او مقابل محذوف واخلئ، یعني من اولها الی اخرها، چې د اول نه ونیسه د وروکي څیني نه تر لوی عالم پوري چې تول یې مني، نو دغسې مصنف چې مستحسن الطباع وي باسرها او مقبول الاسماع وي من اولها الی اخرها.

**قوله: امر لا یسعه مقدرة البشر وانما هو شان خالق القوی والقدر....** دا یو امر دی چې طاقت نه لري په دې قدرت بشري، خکه خامخا هغې کې نقصان به په کې وي (او که نه به وي؟ یو مولاو عالم به وائي) طالب چې دې کې دا خطائي ده، دې کې دا خطائي ده. **وانما هو شان.....الخ:** وائي دا شان د خالق القوی والقدر دی، چې هغه د الله دی د هغه کتاب کې غلطي نه شي راتللی، نو ویل ما ویل چې یو وجه ده، ما یو کتاب لیکلی دی بل نه شم لیکلی، بس دی.

**قوله: وان هذا الفن قد نضب الیوم ماؤه فصار جدالا بلا اثر....:** اوس ګوره وکنت اضرب لپاره شارح دویم علت ذکر کوي، یو علت علماً مني شو، اوس دویم علت ذکر کوي، **ان هذا الفن نضب الیوم ماؤه،** وائي ما اعراض خکه کولو د دې امر عظیم نه چې تصنیف او شرح د مختصر دی، چې د غه فن به دغو ورخو کې یعني کومو ورخو کې چې زه یم د دې رسم رواج او شهرت ختم دی، نو ما ویل چې کتاب ولیکم مختصر او خوك ویونکی به نه وي؛ نو څه له خان کړومه؟ څه فایده یې نشته نوځکه ما اضراب کولو.

نو واني **وان هذا الفن قد نضب اليوم ماؤه. يعني علمائي ان هذا الفن قدنضب...:** واني په تحقيق سره دوبي شوي دي اوبه د دي، كنايۀ ده يعني د دي شهرت او تعلم ، تدريس ختم وو چا ويلو نه، نو **فصار جدالا بلا اثر:** د صار په ضمير كي دوه احتمالين دي، بلكه دري احتمالين دي، يا ضمير راجع دي تكلم ته، واني پس گرخيدلى دي خبري كول په دي فن كي جگړه بې د څه فايدې نه، هسې خبري كيدي، هسي جگړه وه، چا ايزده كولو نه، يا دې فن ته راجع كوي، او بره خبر كي تقدير وكړئ: يعني پس گرخيدلى وو دغه فن جدلاً يعني محل جدال بغير د څه فائدې نه، يعني طالبانو او مولبانو به هسي معارضي كولي، او څان بي په مغز باندې نه پوهه كولو، يا دا حمل مبالغۀ دې تقدير ته حاجت نشته، يعني گرخيدلى وو دا فن عين جدال، څه فايده په كي نه وه.

**وذهب رواؤه فعاد خلافا بلا ثمر،** پس تللى وو هغه نباتست د دغه فن، نو گرخيدلى وو دا خلاف بې د څه فايدې نه، يعني د دې علم تشبيه داسي وه لكه وُنه بلا ميوې، او بلا ميوې وُنه كي څه وي؟ بغير د لرگو د سوزولو نه، خوراك فايده په كي نه وي، نو دغه رنگ دې فن كي هيڅ فائده نه وه.

**قوله: حتى طارت بقية اثار السلف ادراج الرياح،** حتى: دا غايه ده د دې ذهب لپاره، يعني د دې فن رسم او رواج او نبايست چي كوم وو دومره ختم شوي وو، حتى طارت...، حتى كه چي الوتلي وو، الوتل څكه وويل چي ژر ختم شوي وو، هغه پاتې شوي اثار د سلفو، ادراج الرياح په لاره د بادونو كي، يعني د سلفو چي كوم مكتوبات وو، كوم فوائد وو يا د هغوى د شاگردانو كوم نوتونه وو په هغه باد راغله او هغه بې والوزوول كندو او دريابونو ته، ادراج جمع د درج دى، لارې ته وائي، يعني په هغه لارو د بادونو كي چي د سره د هغې مكتوبات، فوائد، نوتونه پاتې نه شو.

**قوله: وسالت باعناق مطايا تلك الاحاديث البطاح،** او وبهيدلى په هغه څتونو د اوبنانو سره د دغه خبرو كندې، بطاح جمع د البطح دى، دا هغه لختي ته وائي چي هغې كي اوبه رواني وي او په كي نرى نرى گيتى وي، اوس د سالت اسناد بطاح ته دا مجاز عقلي دى، څكه د سالت لپاره ما هوله مطايا دى، يعني مطايا په كنده كي د سيلاب په شان روان وو، او كنده روانيږي؟ او دا مجاز عقلي يې د مبالغې لپاره وكړو، چي دغه فوائد د سلفو او اثار د سلفو ورسره ژر ختميده چي ته به وائي چي عين كنده روانه وه، دا علامه د اوومي پيړۍ خبري كوي، او نن سبا څوارلسمي ته وگورئ چي نن څه دي؟ لكه عرب وائي سال الوادي نو د سال اسناد وادي ته مبالغه ده اوبه په وادي كي څي خو ويل دا اوبه دومره ډيري وي او دومره ژر تللي چي دا كنده گويا چي ورسره روانه ده، او اعناق يې ولې زيات كړو، څكه چي د اوښ سرعت او بطوءت د څټ نه معلوميږي، د قدم څخه نه معلوميږي، قدم د اوښ يو شانتې وي، خو دا چي كله دا اوښ څټ ډير خوځوي نو پوهه شه چي دا اوښ تيز دى، او چي سټ دومره نه خوزوي نو بيا دا دومره تيز نه دى، نو اعناق يې څكه زيات كړو.

**قوله: واما الاخذ والانتهاب فامر يرتاح له اللبيب فللارض من كاس الكرام نصيب.** اوس شارح مخکي لاړو. دفع د توهم کوي دې سره، چې دې سائلينو چې تا نه سوال کړی وو نو د هغې د سوال لپاره دوه علتونه بې بيان کړي وو، يو علت چې زمونږ تقاصر او تقاعد، چې مطول اوږد دی مونږه دا ايزده کولی نه شو. دويم علت دا وو چې منتحلينو مطول ختم کړو، تا نه يې نسبت ختم کړو او خان ته يې نسبت وکړو نو ايا دا دواړه علتين باعث شو ستا لپاره د مختصر جوړولو له؟ وائي نه نه، دا وروستني په ما باندي هيڅ باعث نه دی شوی، صرف دا اولنی خبره په ما باندي باعث شوی دی. دفع د توهم وشوه چې منتحلين خان ته نسبت کوي نو کوي دې کنه، خکه ما د الله د رضا لپاره ليکلی وو، خان ته نسبت کوي، الله ته خو معلومه ده ثواب به ما ته راکوي، نو وائي: **واما الاخذ والانتهاب** هر چې دې اخستل او لوټ کول زما د مطول د نورو شراحو، دا يو امر دی چې عقل مند سړی په دې خوشحاليږي، کامل العقل، يو د دې وجې نه چې ستا شهرت په خلکو کې به رانه شي، او حديث کې راغي چې: **ان الله يحب العبد التقي الغني الخفي** الله مينه کوي د هغه بنده سره چې هغه ويريدونکی وي د الله نه د خلکو نه بې پرواه وي، خپل حاجت خلکو ته نه ځرګندوي الله ته ځرګندوي، او خپل شهرت نه غواړي الخفي دا نه غواړي چې ما ته علامه صاحب وائي، شيخ القران صاحب ووايي، شيخ الحديث صاحب وائي، شيخ الحديث صاحب مولانا صاحب حضرت صاحب، دا هسې القاب دي فضول دا بنده په دې شهرت خفه کيږي خوشحاليږي نه نو **يرتاح له اللبيب** لپاره يو علت خو دا شو چې پيغمبر ﷺ ووېل: ان الله... الخ دويم دا چې دی سره سړی سخي کيږي چې د يو سړي کلام بل سړی واخلي او ده ته نسبت ونه کړي، او دا سړی خفه نه شو نو سخي شو، نو وائي: **فللارض:** دا فاء لپاره د علت ده، وائي د زمکې لپاره د پيالې د سخيانو نه هم حصه وي، چې کله شراب څکنبي نو څه په کې تويږي او څه څکنبي، نو زما د مطول مثال د شرابو د پيالې دی، او زما مثال د سخي دی، نو که زما مطول نه بل څوک نفع اخلي او خان ته نسبت کوي، کوي دې خان له باک بکر په دې کې نشته دی، د دې شعر مخکې نيم بيت دا دی:

| | |
|---|---|
| شربنا شراباً طيباً عند طيب | كذلك شراب الطيبين يطيب |
| شربنا واهرقنا على الارض جرعة | وللارض من كاس الكرام نصيب |

هلته شعر کې واو دی نو شارح واو بدل کړو په فاء، خکه د علت په ځای کې يې ذکر کړی، نو شارح وائي زه يو سخي سړی يم او زما مطول باچا ګله پياله ده د شرابو، او منتحلين زمکه دی، نو د دې پيالې نه به څه څولي ته غورځوم او څه به لاندي ترينه غورځوم.

**قوله: وكيف ينهر عن الانهار السائلون وقل هذا فليعمل العاملون.** وائي او څنګه به شړلی شي او منع کولی شي د غټو ولو نه سائلين، يعني دا نور شراح ما نه سوال کوي او زما د مطول مثال د درياب دی، نو چې د درياب نه څوک اوبه اخلي نو څوک يې منع کوي؟ اقتباس يې وکړو د قران نه **وقل هذا ....:** وائي د دغه

اقتباس او اخذ لپاره عمل دې وکړي عمل کوونکي، يعنې خپل شهرت دې ختم کړي خکه کتاب خو تا ليکلی دی، دې لپاره دې عمل وکړي، ولمثل هذا، دا اقتباس اوشو د ايت کريمه نه، وائي چې کار کوئ نو د الله د رضا لپاره به کوئ، په هغې کې مد نظر د الله رضا ساتئ خپل شهرت مه ساتئ، حديث دی دارمي والانقل کوي، حضرت عائشة رضي الله عنها نه: **من التمس رضى الناس بسخط الله، سخط الله عليه واسخط الناس، ومن التمس رضى الله بسخط الناس رضى الله عنه وارضاهم** اقتباس په لغت کې: لرې اور اخستل د دیر اور نه، نَقْتَبِسْ مِنْ نُوْرِكُمْ، او په اصطلاح کې اخذ د يو کلام دی د قران يا د حديث نه او جعل دی د خپل کلام بې دنسبت کولو نه الله او رسول ته، قال الله او قال الرسول ونه وائي، نو دلته شارح ولمثل هذا..... د قران حصه نقل کړه او نسبت يې الله ته ونه کړو.

**قوله: ثم ما زادتهم مماطلتي الا شغفا وغراما وظما في هواجر الطلب واواما:** ثم ما زادتهم سره شارح دفع د توهم کوي، چې دا اخذ او انتهاب په ما باندې باعث نه شو د تصنيف نو بيا باعث څه شی شو؟ يعنې بيا تا مختصر ولې وليکلو؟ نو شارح وائي چې ما باندې باعث على التصنيف مکرر سوال د دوی وو، مکرر طلب د دوی وو، يواخې په سوال ما تصنيف نه کولو او يواخې تقاصر او تقاعد باندې هم ما تصنيف نه کولو، ليکن د دوی هميشه طلب زه مجبور کړم نو ما پرې شروع وکړه، نو وائي **ما زادتهم** ای المحصلين تيله درکولو خما مګر نهايت مينه .شغف هغه مينې ته وائي چه دزړه کځورې ته دننه شوې وی "قد شغفها حبا" يقيناً د زليخې زړه ته ننوتې وه مينه د يوسف عليه السلام، **وغراما** او نهايت حرص او نهايت تنده، **في هواجر الطلب** هواجر اضافت طلب ته د مشبه به دی مشبه ته ای وظما في الطلب كالهواجر، يعنې دا تنده په طلب کې په شان د تکنده غرمې وو، هواجر نصف النهار ته وائي چې بلکل نمر په خط استواء باندې وي، نو تشبيه په صعوبت کې شوه، مشقت کې، تکنده غرمه کې سړی باندې تکليف وي، خوله بهيږي، خوب نه راځي ګرمی کې، نو دغسې دوی دا طلب داسې شروع کړو چې ځان باندې خوله، منتونه، ژړا او زارۍ، چې الله ته وګوره، و اواماً او نهايت تنده، اوام هغه تندې ته وائي چې سړی ځلې ته ګُټ اوبه ونه غورځوي نو سړی مړ کيږي، نو چې دوی داسې شروع وکړه نو فانتصبت

**قوله: فانتصبت لشرح الكتاب على وفق مقترحهم ثانيا ولعنان العناية نحو اختصار الاول ثانيا**

نو بس ما ځان تيار کړو ګوډه مې ووهله، اودرولو لپاره د تشريح د تلخيص، هلکه تشريح د تلخيص خو تا کړې کنه مطول سره اوس څه تشريح کوې؟ وائي نه نه **على وفق مقترحهم** په موافقت د مطلوب د دوی سره چې لندول مې ثانياً: دا صفت د مصدر محذوف دی،

يعنې انتصاباً ثانياً، يا شرحاً ثانياً، يا په حذف د جار سره ظرف دی د انتصبت لپاره ای انتصبت لشرح الكتاب في زمن ثان، څکه د مطول زما نه اول وو نو دا دويمه شوه. **ولعنان العناية**: دا د دې وروستو ثانياً پورې متعلق دی، دا وروستی ثانياً حال دی د انتصبت د دې ضمير نه، حال کوني چې زه

ارونکي وومه هغه واګو د قصد او ارادې طرف د اختصار د اول ته نو ثانياً په معنی د صارفاً سره شو ﴿ ثَانِيَ عِطْفِهِ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ ﴾.

**قوله: مع جمود القريحة بصر البليات وخمود الفطنة بصرصر النكبات وترامي البلدان بي والاقطار ونبو الاوطان عن الاوطار:** دا عبارت جواب د اعتراض دی یا هلکه مطول چې تا لیکلو نو هغه وخت خو تا باندې تکلیفات وو نو مختصر کې راحت حاصل وو؟ نو وائي نه نه راحت نه وو هغسې تکلیفات وو **و مع جمود القريحة** سره د مروالي د طبيعت زما نه، او زما طبيعت مړ او يخ يخ وو خوشحاله نه ووم. په تکاليفو، مصائبو غمونو سره چې په شان د تند باد وو، ای کالصر، نو اضافت د مشبه به دې مشبه ته، صر ويلی شي هغې سيلۍ ته چې په کوم شي راشي هغه ختموي‌صرٌ اَصَابَتْ حَرْثَ قَوْمٍ**وخمود** : او سره د مړه کيدو د پوهوالي زما نه، خکه چې په سري باندې پريشاني زياته وي، نو څه سری له ورخي، پوهوالی نو هغه هير شي، **خمد**: ويلی شي مروالي د اور ته، زما پوهوالي، ذکاوت، فطانت بالکل ختم شوي وو، خکه چې مصائب ډير شي نو ذکاوت د سړي نه ختميږي **بصرصر النكبات** په مصائبو سره په شان د صرصر باد، صرصر هغه باد ته وائي چې اواز وي په کې، طوفان وي غږ اواز په کې وي هيبتناك لکه سري وائي چې زلزله وشوه **وترامي** : او ويشتل د کلو کلو ما لره او طرفونو، کله به يو کلي کې خان له وم کله به خان له بل کلي کې وم، کله به پيښور ته لاړم کله پينډی ته، کله کوهستان کله ګلګت ته، نو سوداني وم، **ونبو الاوطان** او سره د لرې والي د وطن زما نه، او وطن چيرته پاتې شوی؟ زما خيال هم نه وو **والاوطار** او سره د لرې والي د حاجت نه، کله به ويل زما پيزار نه وو، کله جامه نه وه، کله برستن نه وه، کله تلاشي په کې نه وه، او کله د شپې خای نه وو، خکه مسافر سړي باندې مختلف حالتونه راخي.

**قوله: حتى طفقت اجوب كل اغبر قاتم الارجاء واحرر ككل سطر منه في شطر من الغبراء** ويل تر دې چې زه شروع شوم چې ما پريکولو هره دوړناکه زمکه هسې دوړې چې تياره وو اطراف د هغې دهغې نه دوړې پورته شوې وې نو په دوړوکې به روان وومه او ما ليکله هره کرښه د دې شرحې په يو حصه کې د دوړناکې زمکې، نو حال زما په شان د دې شاعر وو:

فيوما بجزوى ويوما بالعقيق وبالعذيب يوما ويوما بالخليصاء

**قوله: ثم لما وفقت بعون الله وتائيده للاتمام وقوضت عنه خيامه بالاختتام بعد ما كشفت عن وجوه خرائده اللثام ووضعت كنوز الفرائد على طرف الثمام،** د دې نه وروستو اوس د خپل مختصر صفت کوي، وائي پس د دې نه هر کله چې توفيق راکړی شوی ما ته په امداد د الله تعالی سره او په محکمتيا د الله سره لپاره د تامولو د دې شرحې، او ما مات کړو د دې شرحې نه هغه تانبو د دې، دا شرحه مشابه شوه د يو قسم خلکو سره چې هغه په تانبو، ابادی کې دننه وي، پټ په ذهن کې يې تشبيه ورکړه، جامع استتار شو، يعنې دا شرحه د موليانو او طالبانو نه پټه وه، لکه خلک په تانبو، ابادی کې پټ وي، نو دا استعاره مکنيه

شوه، او لازم د هغه خلکو سره چې دننه دي خيام دي. نو دا تخييليه شوه، او چې هغه کور او تانبو تا وغورخولو نو هغه خلک ښکاره کيږي، نو دغه شان خما شرحه هم پټه وه، نو ما بهرته راووسته.

**بالاختتام:** په سبب د حصول د اختتام بالفعل سره، نو په اتمام او اختتام کې څوك وائي فرق نشته دی يو شی دی؟ بيا شبه راځي چې ووقفت بعون الله تعالى وتاييده للا تمام، الاتمام خو دا معنى چې والناس پوري ختم کړه اخر پوري او بيا دا وروستو سبب وقوضت بالاختتام، بيا نو چې يو خل اتمام ته ورسيده نو بيا اختتام سبب جوريدی شي؟ نو که اتمام او اختتام يو وي کنه، نو بيا تاسو وايئ مراد د اتمام نه بالقوة چې يعني قريب وم، او اختتام نه مراد الاختتام بالفعل دی، نو اختتام بالفعل سبب شو لپاره د ښکاره کولو، بالقوة سبب نه وو ځکه هغه تمام شوی نه وو، نو يعني چې تام شي نو بيا يې طالبانو ته ښکاره کوم، هغه ستر ترينه لرې کوم، او څوك وائي چې اتمام او اختتام کې فرق دی، اتمام ديته وائي چې د يو کار نه ته بس کړي، اخوا بيا په اثناء کې بس کړي، يا په اخر کې بس کړي، عام دی، او اختتام ديته وائي چې والناس ته ورسي، **لکن بعد ما کشفت،** ليکن پس د هغه نه، بعد ما قوضت پوري متعلق دی، يعني دا مات کړه خو پس د هغه نه **کشفت عن وجوه خرائده اللثام:** پس د هغه چې ما لرې کړه د مخ د هغه ښايسته شرم ناکي جينى نه هغه پرده او څادر، لثام غټ څادر ته وايي، دلته کې هم تشبيه شوه، د دي خپل مختصر تشبيه يې ورکړه، يو ښايسته حياناکي جينى سره پټ په ذهن کې دا مکنيه شوه په جامع د ميلان کې، لازم د هغه جينى سره مخ وو، هغه يې ثابت کړو دي شرحي ته، نو دا تخييليه شوه، او ملائم د هغه جينى سره لثام وو، دا ترشحيه شوه، نو مطلب دا شو چې زما دې شرحي ته د موليانو طالبانو انتظار وو ميلان وو، لکه څنګه چې ښايسته شرم ناکي حياناکي جينى ته هر څوك ګوري.

**قوله: ووضعت کنوز الفرائد على طرف الثمام فجاء بحمد الله کما يروق النواظر و يجلو صدا الاذهان ويرهف البصائر ويضيئ الباب ارباب البيان:** ويل ما اينبى دي خزانى د ملغلرو په طرف د ثمام بوټي باندې، ثمام يو بوټی دی چې هغه ډير پوست دی، پښتو کې ورته بُرج وائي، موږ ورته ذوذ وايو، او په عربى کې ورته ثمام وائي، هغه برج وونه باندې داسې کاغذ غوندې وي، په هغې باندې الف الف ليکلي وي، هغه کاغذ ډير پوست وي، پخوا به دې اخونانو او موليانو په هغې باندې تعويذونه او ساختونه کول، بره په چلاس علاقه کې ډير زيات دي، کنوز الفرائد نه مراد مسائل د دې مختصر شو، او سهل الماخذ دی مطول په شان ما نه دی ګران کړی، داسې دی لکه برج په لاس کې واخلې، هغه خومره پاسته وي، نو دا هم دغسې دی، نو وائي پس راغله دغه شرحه د الله په ستائينې سره لکه چې خوشحاليږي، نظر کوونکي خلک، هر څوك چې ورته ګوري خوشحاله شي، او واقعي چې خوشحاله شي، ځکه چې فن معاني کې دا مختصر د يوې فتاوى مرتبه لري، فن معاني دي سره ايزده کيږي، او لرې کوي هغه خيرى د ذهنونو يعني د طالبانو او موليانو په ذهن کې د تلخيص په حل کې څه خيرى وي، نو هغه خيرى دې لرې کړى دی. لرې کوي او

تیزوي نظر لره، البصائر بصیرت د سرې پیدا کوي، او پرقوي عقلونه د خاوندانو د علم البیان
**قوله: ومن الله التوفيق والهداية وعليه التوكل في البداية والنهاية وهو حسبي ونعم الوكيل.** خو دا تولې خبرې وي
فاتصبت دي که قوضت دي، ویل دا **تول ومن الله التوفيق والهداية**، د الله نه توفیق د جورولو د دې
شرحې غوارم، او راه یافتنې غوارم حق مسئلې ته او په الله باندې خان سپارل دي په ابتداء او انتهاء
ددې شرحې کې، هغه به توفیق راکوي، ځکه الله کافي دی زما او ښه متصرف دی.
**قوله: الحمد هو الثناء باللسان** هو الثناء شارح سره غرض د شارح تصور او تعریف د محکوم علیه کوي، ځکه
الحمد په قول د ماتن کې محکوم علیه دی، او د محکوم علیه تصور، تعریف ضروري دی، د دې
لپاره چې حکم په مجهول باندې رانشي، دویم غرض د شارح تعریف دشکر کوي ځکه شکر ضد د
حمد دی، وبضدها تتبين الاشياء، نو تعریف د شکر کوي چې د حمد ښه وضاحت راشي او فرق راشي
د شکر نه، او دا دویم غرض بیانوي والشکر سره دریم غرض د شارح دفع د اعتراض ته اشاره کوي،
اعتراض د وارد شو چې یا هلکه ماتن الحمد لله وویل نو الشکر لله یې ولې نه ویل؟ شکر ښه وو، نو
الحمد لله یې ولې وویل ځکه شکر په مقابله د نعمت کې وي او حمد عام دی چې په مقابله د نعمت کې
وي او که نه نوي، او کوم حمد چې په مقابله د نعمت کې وي نو هغه قوي وي، ځکه باعث موجود وي،
او کوم چې په مقابله د نعمت کې نه وي نو هغه دومره قوي حمد نه وي، دل نخواسته غوندي وي، نو
شکر ویل په کار وو، نو شارح د هغې نه جواب کوي **والشکر** سره جواب ته اشاره کوي، اشاره په دې
سره داسې کوي چې دلته کې دا حمد په ماده د شکر کې دی، ځکه چې حمد په مقابله د نعمت کې
دی، **علی ما انعم** یعنې الله لره حمد دی علی ما انعم او حمد په مقابله د نعمت کې په ماده د شکر کې
وي، نو الحمد ویل او الشکر لله ویل یو دي، څه فرق نشته شبه هلکه چې څه فرق نه وو نو الشکر لله به
یې ویلی وی الحمد لله یې ولې وویل؟ جواب هلکه حمد لپاره د مطابقت د کتاب الله سره ځکه هلته
الحمد لله وو الشکر لله نه وو، نو دا مخالفت عنواني یې د دې وجې نه وکړو، څلورم نسبت بیانوي په
مینځ د شکر او د حمد کې نو نسبت شارح داسې بیانوي چې گوره چې د متعلق په لحاظ سره په دې
کې عموم خصوص مطلق دی، متعلق الحمد عام مطلقا دی، یعنې په مقابله د نعمت کې وي او که نه
وي، او متعلق د شکر اخص مطلقا دی، او موردینو کې هم د دوی عموم خصوص مطلق دی، خو په
عکس د متعلقینو سره، مورد د شکر ما یورد منه الشکر، هغه عام دی، دریو قسمونو ته شامل دی:

۱. چې باللسان وي لکه خلې باندې ته وو ایې چې الله عالم
۲. یا بالارکان وي لکه رکوع، سجده، طواف ته کوي.
۳. بالجنان وي لکه ته عقیده ساتې د الله د علم او د وحدت، او مورد د حمد خاص دی صرف لسان
دی، نو مورد د حمد اخص مطلق شو، او مورد د شکر اعم مطلقا شو دریو قسمو ته شامل دی، او

حمد د مورد په لحاظ سره يو قسم دی چې باللسان دی. او د مفهوم په لحاظ سره په دې حمد او شکر کې عموم خصوص من وجه دی، ماده د اجتماع لکه ته په خُله ووايې الله عالم په مقابله د نعمت کې چې الله په تا باندې څه نعمت کړی وي او ته دا اووائې نو دا شکر هم شو او حمد هم شو، ماده دافتراق چې حمد وي شکر نه وي لکه ته الله عالم ووائې بې د نعمت نه، نو دا حمد شو او شکر نه شو ماده د افتراق دجانب د شکر نه چې شکر وي او حمد نه وي لکه ته رکوع کوې سجده کوې الله ته يا عقيده ساتې د الله دعلم د وحدت او د قدرت او د سمع او بصر، نو دا شکر دی او حمد نه دی ځکه لسان په کې نشته دی، نو څلور غرضونه شو.

نو وائي **هو الثناء باللسان** حمد څه ته وائي؟ ستاينې ته وائي باللسان په ژبې سره، اوس ثناء کې دوه احتمالين دي، يو ثناء په معنى د ذکر الخير باللسان سره، او دويم ثناء معنى ذکر الخير مطلقاً. نو اوس که ثناء معنى ذکر الخير باللسان شي، نو بيا ذکر د باللسان مستدرك نه دی؟ مستدرك دی ځکه، لسان خو ثناء نه معلوم شو ځکه هغه ذکر الخير باللسان ته وائي، او که ثناء عبارت شي د ذکر الخير مطلقاً نه نو بيا د باللسان ذکر مفيد دی مستدرك نه دی، ځکه **ذکر الخير** مطلق عام وو کنه په باللسان سره يې غير لسان خارج کړو، نو تاسو جواب وکړئ که د ثناء نه مراد معنى اول شي نو بيا ثناء کې تجريد دی، اگر که ثناء ذکر الخير باللسان ته وائي موږ به تجريد وکړو چې ذکر الخير فقط، او تجريد ديته وائي چې استعمال د لفظ دی په بعضې معنى کې او انسلاخ د بعضې معنى نه، **على قصد التعظيم** دې سره دفع د اعتراض ده، چې يا هلکه تعريف د حمد مانع نه شو د دخول د غير نه داخل شو په دې کې سخريه او استهزاء، چې ته جاهل زيد ته وائي چې زيد علامة، شوم زيد ته وائي چې زيد جواد نو دا ثناء باللسان نه شوه؟ او ديته څوك حمد وائي؟ که سخريه او استهزاء وائي؟ سخريه او استهزاء، جواب نو ده ورسره قيد على قصد التعظيم تل کړو، على په معنى د مع سره کوي، يعنې سره د قصد د تعظيم باطنې نه، او سخريه او استهزاء کې تعظيم باطنې نشته دی ځکه تعظيم باطنې څه ته وائي؟ بزرگ در دل داشتن، او دا مستهزء چې کوم دی هغه مستهزء به بزرگ در دل داشتن نکوي صرف تعظيم ظاهري کرتي شته دی باطن کې د هغه اهانت دی

**سواء تعلق بالنعمة او بغيرها:** سواء سره غرض د شارح فرق بيانى د حمد او د شکر په اعتبار د متعلق سره، ترجمه : **والشكر فعل،** هغه دويم غرض بيانوي، فعل دلته کې مقابل د اعتقاد او ارکان او جوارح نه دی، ځکه فعل که مقابل د ارکان او دجوارح شي نو بيا د شکر تعريف جامع کيږي؟ وايي نه، تاسو وايئ دلته کې فعل په معنى د أمر او د شان سره دی نو معنى فعل يو صفت دی يو حال دی **ينبئ عن تعظيم المنعم.** شبه: تعظيم د منعم نه خو حمد کې هم خبرداري وه کنه، جواب يې وکړو چې **لكونه منعماً** يا هلکه په دې اعتبار سره چې دې انعام بالفعل کړی دی، او حمد کې انعام بالفعل شرط دی؟ وايي نه، **سواء كان** کې

حمداً کې عدول وکړه د نصب نه رفع ته او مقدم مو کړو او الف حمداً کې څه مناسبت نشته، نو مونږه په حمداً کې لام جاره مو پرې داخل کړو، نو الحمد لله شو، جمله لام مو پرې داخل کړلو مبتداء مو وګرځوله او لله کې لام جاره مو پرې داخل کړو، نو الحمد لله شو، جمله اسمیه جوړه شوه، مبتداء او خبر جوړ شو نو مناسبت په کې پیدا شو، نو دا عدول د جمله فعلیه نه اسمیه ته ولې وکړو ماتن؟ حالانکه معدول عنه اولی دی د معدول نه، نو شارح جواب وکړو **للدلالة على الدوام والثبات** او للدلالة على الدوام والثبات کې **والعدول الى الجملة الاسمية** کې اشاره اعتراض ته وشوه، او للدلالة على الدوام والثبات کې اشاره جواب ته وشوه، اوس دا الثبات عطف تفسیر دی د دې على الدوام لپاره، نو که څوك اعتراض وکړي چې یا هلکه عطف تفسیر کې خو څه نکته وي نو د څه نکتې لپاره یې عطف تفسیر راوړلو، نو تاسو ووایئ چې دوام باندې شبه راغله چه دوام باندې دلالت خو مضارع هم کوي، نو بیا داسې په کار وو **ونحمدالله** نو ده جواب وکړو چې **الثبات** چې مضارع دلالت په دوام باندې کوي خو په دوام تجددي باندې کوي، او جمله اسمیه دلالت په دوام باندې کوي خو ثبوتي په ثباتي استمراري باندې.

څلورم غرض د شارح د فع د یو بل اعتراض کوي، چې یا هلکه حمد وصف دی، او لفظ د الله ذات شو، قانون دا دی چې ذات مقدم وي په وصف باندې، نو دلته کې لله الحمد ویل په کار وو، او ماتن الحمد لله ویلی دی، نو ده خلاف وکړو د قانون نه ځکه صفاتو او ذات کې اشرف ذات وي، او اشرف مقدم کول په کار وو په غیر اشرف باندې، نو شارح جواب وکړو **وتقديم الحمد** سره حاصل د جواب دا چې دلته کې دوه مرجح راغلي دي، یو اقتضاء مقامي او بل اقتضاء ذاتي، نو دې دواړو کې تعارض راغلو، نو اقتضائي مقامي غواړي چې حمد دې مقدم شي، ځکه دا مقام د حمد الله دی، د الله د ستاینې کولو مقام دی، د ماتن نه حال د مخاطب دا غواړي چې په ابتداء د تصنیف کې د الله ستاینه وکړه، د الله صفات کمالیه بیان کړه، چې تا باندې فیضان د مسائلو وکړي، نو اقتضاء مقامي دا وغوښتل چې الحمد لله ووایه، او دویم اقتضاء ذاتي غواړي چې لله الحمد ووایه، نو مونږ اقتضاء مقامي له ترجیح ورکړه په اقتضاء ذاتی باندې، ځکه چې بلاغت موافقت د کلام د مقتضي الحال والمقام ته وائي نو ځکه یې وویل چې **وتقديم الحمد باعتبار انه اهم نظراً الى كون المقام مقام الحمد**، ځکه چې ماتن لوی کار کې شروع کوي او لوی کار کې شروع بغیر د ستاینې د الله نه نه کیږي، دا وروستو عبارت دې مخکې سره لګوي، چې **لكان ذكرالله اهم نظرا الى ذاته** لیکن چې دا اقتضاء مقامي او اقتضاء ذاتي تعارض راشي نو ترجیح به اقتضاء مقامي ته ورکوو، ځکه بلاغت په دې کې دی، چې مطابقت د کلام د مقتضي الحال سره دیته وائي، معترض راغلو شبه یې وکړه چې یا هلکه دوی لپاره نظیر شته دی چیرته، ما ته نظیر وښایه چې اقتضاء مقامي او اقتضاء ذاتي کې تعارض راغلی وي، او بیا ترجیح یې ورکړی وي اقتضاء مقامي ته په ذاتي باندې وائي **وكما ذهب اليه صاحب الكشاف في تقديم الفعل في قوله تعالى: اقرأ باسم ربك الذي الى ما سيجيئ**، نو دلته قراءة وصف دی اسم ربك ذات دی، نو قراءة

يې مقدم كرو خكه چې دلته كې مقام مقام د قراءة دى. اگر چې اسم د الله مقدم دى ذاتاً، ليكن مقاماً قراءة مقدم دى، خكه چې د مقام په لحاظ سره قراءة مقصود دى. نو خكه يې وويل چې اقراء باسم ربك، او باسم ربك اقراء يې ونه ويل دا ځلور غرضونه ختم شول

**ترجمه او تشريح: هو** يعني دا اسم د الله، في قوله لله، **اسم** اسم علم دى دلته مقابل د اسم كنيه او لقب دى، او مقابل د فعل او د حرف نه دى. **للذات الواجب الوجود**، واجب الوجود يعني ضروري الوجود دى. ضروري الوجود دا معنى چې ذات كې محتاج غير ته نه دى، وجود يې د غير نه مستفاد نه دى، په خپله ضروري الوجود دى او **للمستحق لجميع المحامد** چې لائق دى په استحقاق ذاتي سره د ټولو صفاتو كماليه ؤ لپاره، محامد ،جمع د محمده په معنى د حمد مراد صفات كماليه، د ټولو ستاينو لايق الله دى

ماتن وويل: **قوله على ما انعم**: شارح وررسره لگي: اى على انعامه دي كې شارح اشاره وكړه دوو دعوو ته، يو دى دعوي ته چې دى ما انعم كې ما مصدريه دى، دويم دي دعوي ته اشاره وكړه چې ما موصوله نه ده، يو دعوى ايجابي شوه بله دعوى سلبي شوه، اوس دليل په دعوى سلبيه باندې څه دى چې ما موصوله نه ده، نو دليل دا دى چې يا هلكه كه ما موصوله شي نو دا فاسده ده لفظاً هم او معناًهم، لفظاً څنگه فاسد دى؟ خكه چې موصول په صله كې عائد غواړي،نو بيا احتياجي حذف دعائد ته راځي، نو( بيا ) به ته وايې چې على الذي انعم به، د به حذف ته حاجت راځي، نو كه معترض شبه وكړي والعائد المفعول يجوز حذفه، نو دا خو څه فساد نه دى، دا فساد فساد دى، نو دى وائي چې يا هلكه دلته خو فساد نشته خو وروستو معطوف كې فساد راځي، خكه چې **وعلم** معطوف دى په انعم باندې، نو دلته چې حذف د عائد وشو نو هلته به هم ته حذف كوې محذوف به مني وعلمه به وائي، او هلته كې حذف نه صحيح كيږي، خكه هلته كې مفعول ثاني صراحةً ذكر دى چه علم ما لم نعلم او مفعول اول نا دى، **علمنا ما لم نعلم** او قانون دا دى چې معطوف په حكم د معطوف عليه كې وي فيما يجوز وفيما يمتنع نو اوس ښكته په معطوف عليه كې خو حذف صحيح كيږي خو بره په معطوف كې نه صحيح كيږي، نو دافاسد شو، او دريم په دي كې فساد معنوي دى، خكه كه ما موصوله شي، نو حمد به په نعمت باندې راشي، يعني ستاينه ثابت ده الله ته على الذي انعم به يعني د وجې د هغې شي نه چې هغه شى نعمت دى، او نعمت اثر د انعام دى، انعام صفت د الله دى نعمت كول، او قانون دا دى چې حمد په نعمت باندې په واسطې دانعام سره كيږي، او حمد د الله انعام سره يعني د انعام د وجې نه يې كوي نو بالذات رحمت كيږي او قانون دا دى چې حمد بالذات اولى دى د حمد بالواسطه نه، حمد بالذات او بلا واسطه اولى دى د بالواسطې نه، نو دا دعوى سلبي ثابته شوه چې ما موصوله نه شي كيدلى. اوس هر چې ده دعوى ايجابي چې ما مصدريه ولې متعين شو، حالانكه ما لس قسمه نه راځي؟ تاسو ووايئ چې ما مصدريه څكه متعين شوه، چې نوري نه صحيح كيږي، ما موصوفه نه صحيح كيږي، خكه د

هغې حکم او موصولې حکم يو دى، ما استفهاميه نه صحيح کيږي، فساد د معنى راځي، ما نافيه نه صحيح کيږي د هغې په مقابله کې الاراخي، يا لما راخي، ما شرطيه نه صحيح کيږي څکه وروستو جزا نشته دى، ما تامه نه صحيح کيږي څکه فساد د معنى راځي، هغې نه تعبير په شئ سره کيږي، ما صفتيه نه صحيح کيږي، څکه هغه بنکته موصوف غواړي، اوموصوف دلته نشته دى (١)، نو چې نورې صحيح نه شوې نو مصدريه پاتې شوه.

شارح شبه کوي او د شبهې نه وروستو جواب کوي، وائي: **ولم يتعرض** وائي ماتن تعرض ونه کړو لپاره د «منعم به» دې کې يې اشاره وکړه اعتراض ته، چې يا هلکه په مقام د نعمت کې مُنعِم او نعمت او منعم به د دې ذکر ضروري وي، نو منعم خو الله شو او نعمتونه د الله لاتعد ولاتحصى شو، او منعم به لپاره يې تعرض نه دى کړى، ولې ته يې تعرض ونه کړو دا ولې؟ نو که اوس په دې شبهې باندې څوك شبه وکړي، چې يا هلکه منعم به ته ماتن تعرض کړى دى، څکه دا علم منعم به دى کنه، او دارنګه ايتاء الحکمة منعم به دى، علم الشرائع الله مونږ ته راکړى دى، فصل الخطاب منعم به دى، نو دا خو دى منعم به نو ته څنګه وائې تعرض يې نه دى کړى چې لم يتعرض، نو دينه تاسو جوابونه وکړئ، يو دا چې صراحة مراد دى يعني **ولم يتعرض للمنعم به صراحة وتفصيلاً** نه دى کړى، تعليم البيان اجمالاً او اشاره کيږي چې دا منعم به دى، صراحة نه دي ويلي، يا دويم جواب وکړئ چې دلته د منعم به نه مراد منعم عليه دى، لکه مطول کې دغسې دي چې **ولم يتعرض للمنعم عليه**، نو دلته ذکر د منعم به سهوه ده د کاتب نه چې منعم عليه ترې مراد دى، ايهاما: سره جواب کوي شارح چې يا هلکه زه منعم به يا منعم عليه ذکر کوم، نو ذکر لپاره دری طريقې دي، يا منعم عليه يا منعم به ذکر کوم تفصيلاً يا به ذکر کوم اجمالاً يا به بعضې ذکر کوم او بعضې به نه ذکر کوم، نو که تفصيلاً ذکر کومه نو **للقصور العبارة عن الاحاطة به** ماسره داسې عبارت نشته دى چې هغه ټول منعم به ته شامل شي څکه الله وائي: **وان تعدوا نعمة الله لا تحصوها** او که اجمالاً ذکر کوو نو بيا لقصور العبارة عن الاحاطة به بيا هم قاصر کيږي، څکه اجمال کې قصور وي، نو بيا هم قصور راځي عبارت کې تفصيلا نه شو، او که بعضې ذکر کوم او بعضې نه ذکر کوم نو بيا **لئلا يتوهم اختصاصه بشئ دون شئ** بيا به دا توهم کوي چې يا هلکه کوم مذکور دى، نو هغه منعم به دى، او غير مذکوې منعم به به نه وي.

**قول الماتن وعلم**: ګوره اوس دلته کې مفعول اول مقدر دى يعني اصل کې داسې دى وعَلّمَنا، او فاعل، ضمير الله ته راجع دى، معترض راغى هغه شبه وکړه، يو شبه دا چې يا هلکه تعليم البيان اى الماخوذ

---

١ - تر دې ټولې اته قسمه شوې. ١. مصدريه ٢. موصوله ٣. موصوفه ٤. استفهاميه ٥. نافيه ٦. شرطيه ٧. تامه ٨. صفتيه ٩. زائده ١٠. کافه. مرتب

من البيان ما لم نعل كي سجع په ميم باندې راغله، اوس سائل سوال وكړو چې بيان څه شي ته وائي؟ نو وېي ويل چې **والبيان هو المنطق الفصيح المعرب عما في الضمير** بيـان هغـه منطوق فصيحه دى چې ظاهرونكى وي، مظهر وي د عما في الضمير نه ظاهرونكى وي د هغه څه نه چې په زړه كې وي.

**قوله: والصلاة والسلام على سيدنا محمد خير من نطق بالصواب وافضل من اوتي الحكمة:**

شارح ورسره ولګول چې اى علم الشرائع (د اوتي الحكمة) سره دي كي غرض د شـارح تفسير د حكمت كوي، حكمت عبارة دى د علم نه په شرائع باندې، اوس شرائع عام دى عمليات وي كه اعتقاديات وي، الله واحد، الله سميع، الله بصير، عـذاب القبر حق، وزن الاعمـال حق، دې باندې علم دى ته هم حكمت وائي او كه نه شرائع د قبيلې د اعمالو نه وي، لكه الصلوة فرض، الزكوة فرض الحج فرض الصوم فرض، دې باندې هم علم راوستو ته حكمت وائي، نو يو غرض د شارح دا چې تعين مصداقي يې د حكمت وكړو، چې د حكمت نه مراد علم په شرائعو باندې دى، حكمت نه مراد هغه حكمت د حكماءُ نه دى مراد، دويم غرض د شارح وجه د تخصيص بيانوي چې نعمتونه د الله خو نور هم ډير وو، نو ماتن دا حكمت ولې خاص كړو، نو شارح وويـل حكمت علم الشرائع ته وائي، علم الشرائع قوانين كلية ته وائي، خكه جزئياتو انضباط نه شو كيداى، نو نعمت الحكمة يې خكه خاص كړو، دويم شارح ورسره ولګول چې **وكل ما وافق الحق** دويم تفسير د حكمت كوي، چې دويم حكمت وائي هر هغه څه ته چې هغه موافق وي د واقع سره حق سره، اوس دې دواړو تفسيرونو كې فرق څه دى، فرق دې كې دا دى چې دا اولنى تفسير خاص وو، او دويم تفسير عام دى، خكه مخكښيني تفسير "الفاعـل مرفوع" دارنګه "ويشترط في الشكل الاول ايجاب الصغرى" ديته شامل نه وو، خكه دا الفاعـل مرفوع او ويشترط...الخ شرائع دي؟ شرائع نه دى او دا دويم علم للشرائع ته هم شامل دى، او الفاعل مرفوع ته هم شامل دى، او دارنګه ويشترط في الشكل الاول ايجاب الصغرى ته هم شامل دى، نو دا عطف د عام اوشو په خاص باندې **كل كلام وافق الحق** ته حكمت وائي، نو الفاعل مرفوع، المفعول منصوب، نو دا كلام موافق نفس الامر سره دى، نو ديته هم حكمت وائي

**قول الشارح، وترك فاعل الايتاء**، دې نه غرض د شارح اعتراض كوي، اعتراض ته شارح اشاره وكړه چې ماتن فاعل د ايتاء پرينښودو يعني په اوتي كې اتى يې ونه ويـل اوتي يې وويـل مجهول او چې اتى يې ويلى وى نو ضمير به په كې الله ته راجع وو، نو ولې يې فاعل د ايتاء پرينښودلو او عدول يې وكړو مجهول ته، حالانكه معلوم اشرف دى په نسبت سره مجهول ته، نو جواب كوي **لان هذا الفعل لا يصلح الا لله**: خكه چې دغه فعل د وركولو د علم الشرائع دا صالح نه دى مګر د الله لپاره نو دلته كې ترک د فاعل د ايتاء د وجې د شهرت نه، او تعيين د وجې نه شوى دى، او تاسو هداية النحو كې ويلي دي، چې كوم وخت كې فاعل مشهور شي كنه، او متعين وي نو هلته كې فاعل پرينښودلى كيږي، او هلته

کي عدول کيږي د معلوم نه مجهول ته

**قوله: وفصل الخطاب:** شارح ورسره ولګول چي ای الخطاب المفصول دي کي ييي اشاره وکړه چي اضافت د فصل خطاب ته دا اضافت د صفت دی موصوف ته، نو ګوره په تفسير کي خطاب موصوف شو او فصل صفت شو، نو اوس شبه راغله چي يا هلکه فصل خو صفت نه شي واقع کيدای د خطاب. خکه فصل تميز ته واني او خطاب خو تميز ته نه واني، او صفت موصوف کي صفت حمل وي په موصوف باندي، نو د فصل حمل خو په خطاب باندي نه دی صحيح. نو دينه ده دوه جوابونه وکړل. يوئي په المفصول سره وکړو. او دويم جواب وروستو راخي چي **او الخطاب الفاصل بين الحق والباطل** چي يا هلکه دلته کي فصل په معنی د مفعول سره دی، معنی دا چي هغه خطاب چي جدا کړی شوی دی، د يو بل نه جدا کړی شوی دی، او د مفصول حمل په خطاب باندي صحيح دی. دا ورسره شارح ولګول چي **المبين الذي يتبينه** البين الذي سره دفع د اعتراض کوي، اعتراض دا وارد شو، چي يا هلکه خطاب خو توجيه الکلام الى الغير ته واني، نو هغه مفصول کيدای شي؟ هغه خو بسيط وي، او مفصول مرکب غواري، خکه توجيه خو معنی مصدري ده بسيط ده، هغه مفصول نه وي، مفصول خو ترکيب غواري. نو ده جواب وکړو چي **البين الذي** يا هلکه خطاب په معنی د توجيه الکلام الى الغير سره نه دی، خطاب په معنی د کلام موجه سره دی، خکه بين څوک دی، کلام موجه وي توجيه نه وي

**يتبينه من يخاطب به:** نه غرض دفع الاعتراض يا هلکه کلام مفصوله، کلام موجه مفصوله دا خو هر يو خطاب ته ورتللی شي، دا مختصر المعاني هم کلام موجه مفصوله دی،شرح جامي هم دی کافيه هم دی، سلم هم دی، او حالانکه تاسو د کلام مفصوله مصداق قران ګرخوئ، نو دا مصداق ګرخول صحيح شو؟ نو ده جواب وکړو يتبينه، چي مومي دي لره يعني الذي لره بين هغه څوک چي هغه خطاب کوي په دي الذي سره، نو د من يخاطب به، نه متکلم مراد شو، الذي يجده بيناً من يخاطب به، يا الذي يتبنه، چي مومي دي لره بين من يخاطب به، يعني مومي دي لره بين هغه څوک چي خطاب کولی شي هغه سره په دي باندي، نو مراد تري مخاطب شو، شبه يا هلکه مبين خو دغه مختصر المعاني هم دی، شرح جامي او سلم تول بين دی، مخاطب ته هم او متکلم ته هم، نو واني: **ولا يلتبس عليه:** (دي عبارة سره شارح دفعه د دغه مخکي کلام نه چي کوم اعتراض فهم شو جواب کوي) يعني هيڅ ګډوډوالی په دي باندي نه وي، تعارض تناقص، فصاحت بلاغت په اعتبار سره هيڅ اشتباه او التباس پري نه وي، نو دغسي د بل چا کتاب کيدای شي بغير د قران نه، وَلَوْ كَانَ مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللَّهِ لَوَجَدُوا فِيهِ اخْتِلَافًا كَثِيرًا دويم جواب کوي د هغه اصل اعتراض نه چي فصل صفت د خطاب نه شي کيدلی نو دي دويم جواب کوي **او الخطاب الفاصل..الخ** او حق او باطل کي جدائي راوستل منحصر چا کي دي جي؟ قران کي

**قوله للنتن، وعلى اله:** او افاضه د خير دي وي په ال د محمد باندي، سائل سوال وکړو چي يا هلکه دا ال

اسم بر أسه دی که نه منقلب دی، نو ده ( شارح ) جواب وکړو چي **اصله اهل** يعني دا اسم براسه نه دی بلکې منقلب دی، اهل، یا هلکه دلیل پرې څه دی؟ واني بدلیل، تصغیر دی اهیل راغلی دی، اوس که چرې دا لفظ براسه وي، نو تصغیر د دې اویل به راغلی وو، او تصغیر دلیل جوړېږي د اصل لپاره ځکه واپې چي تصغیر رد کوي اشیاءُ لره خپل اصل ته، د جمعي نه تصغیر چي راوړي نو اول به رد مفرد ته کوي بیا به تصغیر جوړوي تشنیه نه چي راوړي نو اول به رد کوي واحد ته نو بیا به تصغیر جوړوي، او تصغیر ولي اشیاءُ لره خپل اصل ته رد کوي؟ واني د دې لپاره چي لازم نه شي اجتماع د فرعیتینو ځکه چي منقلب عنه اصل وي د منقلب، مفرد اصل وي د تثنیي اوجمع، او منقلب او تثنیه او جمع د منقلب منه او مفرد فرعه وي، او تصغیر هم فرع دی د مکبر، نو که اوس تثنیه او جمع مفرد رد واحد ته نه شي او منقلب رد منقلب عنه ته نه شي او تصغیر راوړي نو اجتماع د فرعیتینو به راشي، او اجتماع د فرعیتینو لایجوز دی، نو دی واني هلکه به دې منقلب او منقلب عنه کې فرق بیا څه دی؟ نو فرق ته دې اشاره کوي، **وخص استعماله في الاشراف** او خاص کړی شوی دی استعمال د دې ال په اشرافو ذوی العقول کې، ذوی العقول قید په کې کیدی، نو اوس آل المسجد وآل الحرم نه شي ویلی، آل الکعبة نه شي ویلی، ځکه که ال خو ذوی العقول نه دی، نو آل په اشرافو کې وي، نو اوس شبه راغله چي ستا قاعده منقوضه شوه په ﴿وَأَغْرَقْنَآ آلَ فِرْعَوْنَ﴾ باندې فرعون خو اشرافو نه ندی، تاسو وواپې چي شرافت عام دی که دنیوي او که اخروي وي، نو هغه ته اگر که شرافت اخروي نه وو خو دنیوي وو، او په خلاف د اهل نه هغه په اشراف او غیر ذوی العقول کې هم مستعملیږي، نو اوس اهل الحائك واهل الحجام ویلی شي، اشراف دی؟ دارنگه اهل الکعبة اهل الحرم ویلی شي، اهل مسجد اهل القریة ویلی شي، او دویم فرق دا دی **وباولی الخطر** یعني خاص شوی دی استعمال د ال په اولی الخطر کې، امور عظامو کې مستعملیږي، نو ال الحجام وغیره نه شي ویلی او اهل الحجام وغیره ویلی شي.

**قول المتن الاطهار**: وقال الشارح جمع طاهر، شارح په اظهار کې تحقیق صیغې کوي، چي اظهار مفرد دی که نه جمع دی، چي جمع شي نو مفرد د طاهر دی که طاهرة دی، اول نه جواب وکړو چي **جمع**، جمع دی او مفرد نه دی، بیا چي جمع شو نو جمع د طاهر دی د طاهرة نه دی، معترض شبه وکړه چي یا هلکه فاعل چیرته په افعال باندې جمع شوی دی؟ نظیر یې چیرته شته؟ ویل هو، کصاحب واصحاب.

**قول المتن: وصحابته الاخيار**: او افاضه د خیر دې وي په صحابه ؤ د محمد باندې چي چوڼ کړی شوی دی، **جمع خیر**، هلکه اخیار جمع ده که مفرد؟ تحقیق د صیغې کوي، او چي جمع شي نو جمع د خیّر ده او که د خیْر ده، نو دې جواب وکړو چي جمع ده مفرد نه دی، او جمع د خیر دی د خیْر نه ده، خو خیّر او خیر کې تجنیس وو نو وېې ویل چي بالتشدید، خیّر، اوس دا خبره چي اخیار د خیر بالتخفیف لپاره جمع ولې نه ده؟ نو واني ځکه چي خیر شي نو خیر اسم تفضیل دی، او اسم تفضیل نه جمع تکسیر نه شي

راتللی، او اظهار خو جمع تکسیر دی او د اسم تفضیل نه خو جمع مذکر سالم راځي او تکسیر نه شي راتللی، نو خیر بالتشدید صفت مشبه شو، او د صفت مشبه نه جمع تکسیر راتللی شي، دویمه وجه دا ده چې که اخیار جمع د خیر بالتخفیف سره شي، نو دا د اسم تفضیل صیغه شوه مخفف شو د اخیر من نه، نو د دې مفضل علیه یا به صحابه واني یا به غیر واني نو که صحابه واني نو بیا خیریت د شي په خپل نفس باندې راغلو او که خیریت په غیر واني نو بیا نفس خیریت په غیر کې هم موجود دی، نو نفس خیریت کې صحابه او غیر شریك شو، او صحابه ؤ سره خیریت د غیر په نفس خیریت کې جائز نه دی، نو خیر بالتخفیف نه کیدو، دا دویمه وجه شوه، دریمه وجه دا ده، چې تخفیف سره شي نو هغه جمال ظاهري ته واني چې ظاهري په حُلیه په لباس کې غوره وي، او خیر چې بالتشدید شي نو هغه جمال باطني ته واني، باطن یې پاك وي تقوی وي، زُهد وي، او کمال باطني تقوی کې دی ظاهري کې نه دی، د دې د وجې نه خیر بالتشدید خکه شو، او بالتشدید سره باطني کمال او تقوی ته واني خکه زیادة د حروفو دلالت په زیادة د معنی باندې کوي.

**قول المتن: اما بعد:** ماتن وویل اما بعد. شارح ورسره لګوي **وهو من الظروف الزمانیه**، د دې خای نه تر وروستو فلما پورې خو اغراض دي، یو غرض د شارح یو حالت د بَعدُ بیانوي د احوالو ثلاثه ؤ نه خکه د بَعدُ لپاره درې حالات دي، یو دا چې د دې مضاف الیه په لفظ کې ذکر شي نو دا معرب دی، دویم حالت دا دی چې د دې مضاف الیه حذف شي نسیا منسیا، د لفظ نه هم او د نیت نه هم نو بیا دا معرب دی، لکه **فصاغ لي الشراب وكنت قبلاً** دریم حالت دا دی چې د دې مضاف الیه دې لفظ نه حذف شي او نیت کې مراد وي، په دغه وخت کې دی مبني بر ضمه به وي، نو شارح دا دریم حالت بیانوي، چې دلته کې د دې مضاف الیه د لفظ نه غورخیدلی دی او نیت کې مراد دی، نو دا مبني شو، اوس نفس بناء ولې راغله؟ واني خکه چې دې د حرف سره مشابه شو په احتیاجي کې لکه حرف محتاج دی ضم د ضمیمې ته نو دې محتاج دی مضاف الیه معنوي ته، او حرکت باندې بنا ولې شو خکه بنا عارضي راغله، مبني الاصل نه دی، او بیا ضمه باندې مبني ولې شو، خکه واني دا حرکت قویه دی، نو دې به جبیره وکرخي، لپاره د هغه ما فات په حذف د مضاف الیه باندې، یو غرض د شارح دا شو، دې غرض ته یې اشاره وکړه په دې تکي سره چې **هو من الظروف الزمانية المبنية** چې دا د حروف زمانیه ؤ مبنیه ؤ نه، **المنقطعة عن الاضافة**، دا صفت تعلیلیه دی، د دې مبني لپاره، یعنې مبني ولې دی؟ خکه چې منقطع دی د اضافت نه، لفظ کې اضافت نه منقطع شو اګرچې نیت کې مراد دی، دویم غرض د شارح تعیین د هغه مضاف الیه معنوي کوي، چې یا هلکه هغه څه دی، هغې ته اشاره وکړه په **بعد الحمد والصلوة** سره، دریم غرض د شارح څه دی؟ بیان د عامل د بَعدُ کوي، چې یا هلکه د بعد عامل څه دی؟ خکه چې دا د ظروفو زمانیه ؤ نه شو، نو د ده عامل څوك دی خکه دا عامل غواړي هغې ته یې اشاره وکړه. **والعامل فيه اما وايي** عامل په دې کې اما دی، نو شبهه

راغله چي يا هلكه اما خو چيرته په عواملو كي نه دى شمار شوى، نو اما ته عامل ويل صحيح شو كه خطاء؟ خكه دا په حروف معانيو عاملو كي شمار شوى دى؟ خكه اما خو يو تفصيليه راخي او بله ام استينافيه راخي، هغه خو عامل نه وي، نو دي جواب وكړو **لنيابتها عن الفعل** يعني يا هلكه اما عامل اصالةً نه دى خو نيابةً كيداى شي، ويل خكه دا نائب دى د فعل نه. څلورم غرض د شارح دهغه فعل محذوفه اظهار ته اشاره كوي، يعني اصل د دي كلام ته اشاره كوي، چي اما عامل نيابةً شو. نو اصل كلام خنگه شو. نو هغي ته يي اشاره وكړه **مهما يكن من شئ بعد الحمد والصلوة** هر يو وقت د اوقاتو نه چي موجود شي پس د حمد او صلوة نو علم البلاغة او توابع اجل او ادق به وي، او يو شى د اشياء نه خو بعد الحمد والصلوة موجود دى كه بل څه نه وي نو ذات د الله خو موجود دى كنه، نو د علم البلاغة او توابع اجل او ادق كيدل هم يقيني شو، پنځم غرض د شارح تركيب كوي د اصل، هغي ته يي اشاره وكړه. **ومهما ههنا** كي يي اشاره وكړه چي هر خاى كي نه كله مهما ظرف معمول واقع كيږي مبتدا نه شي واقع كيدى لكه: **وقالوا مهما تاتنا به من اية لتسحرنا** نو دلته ظرف دى مبتداء نه ده، نو وائي چي مهما دلته كي مبتداء دى، **والاسمية لازمة للمبتداء** او اسميت لازم دى د مبتداء سره، خكه مبتداء څه ته وائي؟ هو الاسم المجرد عن العوامل، نو اسميت لازم شو، **ويكن شرط** او يكن فعل شرط دى په معنى يوجد سره، **والفاء لازمة لـه** ، او فاء لازم وي د جواب د شرط سره، لـه: كي حذف د مضاف دى اى لجوابه، يا هلكه كله كله د فاء په خاى خو اذا مفاجاتيه راخي، لكه **اذا هم يقنطون** كي، جواب يي وكړو چي **غالباً**، خكه غالب فاء لازم دى او كله كله د هغه فاء په خاى په اذا: باندي اكتفاء اوشي، نو فاء ته بيا ضرورت نشته دى، نو تركيب يي وكړو

شپږم غرض د شارح سراو لم وائي لپاره د زيادت د بعدُ پس د اما نه، چي يا هلكه دا بعدُ يي دا اما نه پس ولي ذكر كړو ديته څه حاجت وو، نو ديته يي اشاره وكړه په **فحين تضمنت اما**، سراولم وائي دا دى چي كله چي متضمن شو اما، يعني ونيول دى اما په ضمن كي معنى د ابتداء لره، اما متضمن شوه او معنى د ابتداء متضمن شوه، **والشرط**، او دارنگه دي ونيول په خان كي ضمن كي معنى د شرط هم، نو بيا اما متضمن او معنى د شرط متضمن شوه، نو د دي تضمن د وجي نه **لزمتها الفاء** دا ولگوئ د **حين تضمنت اما معنى الشرط** سره خكه د شرط سره فاء لازم وي، او **ولصوق الاسم** ولگوئ، د **تضمنت اما معنى الابتداء** سره، يعني چي كله دا اما متضمن شوه معنى د ابتداء لره نو لازم شوددى سره لصوق د اسم، دا لصوق يي ولي ووېل؟ خكه عين اسم خو مونږ اما ته ويلى نه شو، خكه اما خو د مهما په خاى قائم شو، نو اما خو حرف دى، نو عين اسم مونږ نه شو ويلى، مونږ د اما سره لصوق د اسم وكړو چي بعدُ دى، نو مبتداء خو عين اسم وي نو عين اسم خو مونږ نه شو موندلى، خكه اما خو حرف شو، نو لصوق د اسم ورسره مونږ زيات كړو، **اقامة**، دا مفعول له دى د دي لزمتها: لپاره، لازم شو د دي اما سره فاء او لصوق

د اسم، **اقامة اللازم** لپاره د اقامت د لازم چې فاء او اسميت دي په مقام د ملزوم کې چې مبتداء د شرط دي، معترض راغې شبه يې وکړه چې يا هلکه اقامة د لازم خو په ځای د ملزوم کې ونه شو. ځکه د مبتداء په ځای خو اما راغله او بعدٌ خو د دې نه وروستو راغلو نو اسميت خو قائم په ځای د مبتداء کې نه شو او د شرط په ځای قائم شوه اما فاء خو وروستو په لما کې راغلې ده. يعني فلما ويلې شوې دا نو دا خو اقامة د لازم په ځای د ملزوم کې رانغلی، نو ده جواب وکړو چې **ابقاء لاثره في الجملة** وائي هغه اثر د ملزوم پاتې شو چه هغه اسميت او فآ دي هغه پاتې شو او اقامت حقيقيې نشته دی. شبه: يا هلکه اثر خو هم پاتې نه شو کنه، اثر خو به هله وو چې دغه اسميت د مهما په ځای راغلی وی، او دغه فاء د يکن په ځای راغلی وی، نو ويې ويل: چې **في الجملة** په دې يې جواب وکړو دا في الجملة اقامة او ابقاء دواړو سره ولګوئ؛ يعني دا اقامت دی که ابقاء ده، دا دواړه في الجملة راغلو، في الجملة دا معنی چې کامل را نغلو خو بونئ د ملزوم په کې راغلو.

**قول الماتن: فلما:** اوس لما درې قسمه دي، يو لما په معنی د الاسره راځي لکه **ان کل نفس لما عليها حافظ**. دويم: لما جازم للمضارع راځي لکه کلا لما يقض ما امره، دريم: لما په معنی د اذا شرطيه راځي، او ظرف راځي، نو اوس پته ونه لګيده چې په دې فلما کې دا لما د څه لپاره شوه؟ ځکه که د الاپه معنی سره کوې نو هغه مخکې نفې غواړي او دلته مخکې نفې نشته دی، او جازم للمضارع کوی نو هغه مضارع غواړي او دلته کې. کان خو ماضي ده مضارع خو نه ده، نو شارح جواب وکړو، چې **هو ظرف** چې دا ظرف دی، شبه يا هلکه لما خو حقيقةً ظرف نه دی ځکه د ظروفو نه خو چيرته لما نه دی شمار شوی، نو ده وويل نه په معنی کې ظرف دی **بمعنی اذا** دی، ظرف معنوي دی په معنی د اذا سره دی او لفظي ظرف نه دی، شبه يا هلکه ظروف خو دوه قسمه دي، يو هغه دی چې هغه ظرف محضه وي لکه مذ منذ شو او يو هغه دي چې هغه متضمن وي شرط لره، نو دغه لما په معنی د اذا سره شو، نو اوس ظرف متضمن شرط لره دی او که شرط محضه دی، ويل نه نه، **يستعمل استعمال الشرط**، دا استعماليږي په شان د استعمال د شرط، يا متضمن شرط لره کيږي، شبه يا هلکه مونږ ته به قرينه څه وي؟ چې دلته کې لما ظرف دی او دلته کې جازم للمضارع دی، او دلته کې په معنی د الاسره دی، وائي قرينه به دا وي چې **يليه فعل ماض لفظاً او معناً** يعني چې نژدې دې سره وروستو د دې نه فعل ماضي لفظاً يا معناً راغلی وو، نو پوهه شه چې دلته کښې لما په معنی د اذا سره دی، او متضمن ده معنی د شرط لره، معنوي مضارع ديته وائي چې مضارع باندې لم داخل شي نو هغه په معنی د ماضي معنوي سره وي، صرف بهائي کې تاسو ويلي دي، نو دلته کې کان راغلو او دا ماضي ده لفظاً نو پته ولګيده چې دلته کې لما په معنی اذا سره شرطيه ده.

**قول الماتن: وکان علم البلاغة:** تعيين مصداق د علم بلاغت کوي چې بلاغت څه شی دی او څو قسمه

دی. نو وي ويل هو المعاني والبيان وتوابعها شارح ورسره مخکي علم راوويستو دي سره يې اشاره وکړه چي وتوابعها په جر سره عطف دی، په والبلاغة باندي، هغې نه مخکي علمُ وو، نو دينه مخکي هم علمُ مراد شو، د توابع د بلاغت تعيين مصداقي کوي، **وهو البديع**: چي بديع دی، څه دی؟ **من اجل العلوم قدراً وادقها سراً**: لوی د علومو نه په اعتبار د مرتبې سره او باريک د دې علومو نه په اعتبار د نکاتو سره، اوس **اجل** سره دليل واني د ادقها سراً لپاره، لف نشر غير مرتب دی، او لف نشر غير مرتب يې ځکه وکړو لپاره دقرب د دليل د مدعی سره، ځکه ادقها سراً دعوی قريبه وه نو د دې دليل يې هم ورسره نژدې ذکر کړو، اوس ماتن وويل چي **لانه** نو شارح تعيين د مرجع کوي چي ای بعلم البلاغة وتوابعها. دويم دفع د اعتراض يې وکړه چي ضمير دمفرد دی او بلاغت او توابع خو دوه دي، راجع او مرجع کي مطابقت رانغلی؟ نو جواب يې وکړو، چي دا به ضمير علم ته راجع دی، او دا البلاغة او دا توابعها دا قيد د مرجع دی، او قيد د مرجع د مرجع نه خارج وی، اوس بهر نه معترض شبه وکړه چي **لانه** ظرف دی د دې متعلق څوک دی؟ نو تاسو جواب وکړئ بهر نه چي دا متعلق دی وروستو **يعرف** پورې نو ظرف لغوي شو، نو بيا بهر نه شبه راغله چي دا وروستو متعلق شو **يعرف** پورې نو دا معمول د يعرف شو نو معمول مؤخر وي د عامل نه نو دا مقدم ولي شو؟ نو ده جواب وکړو چي **لا بغيره** چي يا هلکه تقديم دلته کي د حصر او د قصر لپاره شوی دی يعني خاص په دې علم البلاغة سره **يعرف دقائق العربية واسرارها** دی، معترض شبه وکړه چي حصر خو نه صحيح کيږي، ځکه کله دقائق العربية او اسرار سړی په سليقه سره معلوموي نه په علم البلاغة سره لکه عرب العرباء شو، نو حصر په دې پورې صحيح شو نو ده جواب وکړو **من العلوم** يا هلکه حصر اضافي دی حصر حقيقي نه دی، او سليقه او ذوق د علومو نه نه دی، يعني زه په اعتبار سره نورو علومو ته وايم چي خاص په دې علم سره دقائق او اسرار معلوميږي، نه په بل علم سره معترض شبه وکړه چي يا هلکه علومو نه کل علوم مراد شو، ويل نه نه، علوم نه مراد علوم ادبيه مراد دي، **كاللغة والنحو والصرف**، يعرف دقائق العربية واسرارها، دا صفری شوه، او هر هغه شی چي دغه رنګه وي نو ادق سراً وي، نو دا نتيجه راووتله چي **فيكون من ادق العلوم سراً**.

**قول الماتن: ويكشف عن وجوه الاعجاز في نظم القران استارها**: شارح ورسره لګوي، چي **اى به يعرف** په دې کي يې اشاره وکړه چي دا يکشف عطف دی په يعرف باندي، د هغې نه مخکي به، او، اذا وو، نو دلته هم شارح اذا او به راوويستل، ځکه چي ما قبل د معطوف عليه نه کالمعاد وي په معطوف کي يعرف سره يې ترجمه د يکشف وکړه، اشاره يې وکړه چي يکشف په معنی د يعرف سره دی، او دا يې چي وويل چي **ان القران معجز** نو دا يې حاصل المعنی ته اشاره وکړه، چي: **عن وجوه الاعجاز في نظم القران استارها** د دې قول عبارت حاصل المعنی دا ده چي قران معجز دی، **لكونه**: دا دليل واني لپاره د اعجاز القران چي

قران معجز دی، عاجز کوونکی دی خصم او مقابل لره د اتیان نه په مثل خپل باندي. خکه چي **لكونه في اعلى مراتب البلاغة**: د وجي د کیدو د قران نه په اعلى مراتبو د بلاغت باندي، دا صغرى شوه، او هر **هغه** کلام چي شان یي دارنګه وي، کبرى مطوى ده نو هغه اجل العلوم وي، نو نتیجه دا راغله چي قران معجز شو، یا دا وواییٔ چي هر هغه کلام چي دارنګه وی نو هغه اجل العلوم وي، نو قران اجل العلوم شو، نو د اول دعوى لپاره دلیل شو، اوس هر چي دی دلیل د صغرى چي قران په اعلى مراتبو د بلاغت باندي ولي دی؟ نو دلیل د صغرى دا چي **لاشتماله على الدقائق والاسرار الخارجة عن طوق البشر وهذا وسيلة الى تصديق النبي عليه السلام** او دا معرفت د اعجاز القران وسیله ده تصدیق د نبي علیه السلام ته، **وهو وسيلة الى الفوز بجميع السعادات** او دغه تصدیق النبي ﷺ وسیلة ده د کامیابی لپاره په تولو کامیابیو باندي دنیوي او اخروي لپاره، او کوم شی چي هغه وسیله وي د تولو سعاداتو د نیویو او اخرویو لپاره نو هغه اجل العلوم وي، نو فیکون من اجل العلوم،ولي؟ لکون معلومه وغایته من اجل المعلومات والغایات دا لکون معلومه...الخ دلیل د کبرى شو، خکه معلوم د دي اعجاز القران شو، خکه چي معلوم د دي او غایة د دي، غایه د دي سعادت دنیوي او اخروي، نو دا من اجل المعلومات والغایات شو، اوس شارح په دي متن کي تشبیه ذکر کوي په دوو طریقو سره، تحقیق المقام کوي په بیان د دوه طریقو د تشبیه سره په متن کي، اوس دا اول طریقه د تشبیه شارح مخکي کړه په دویمي باندي، سره د دي نه چي په اوله طریقه کي دوه استعاري راخي، او په دویمه طریقه کي دري راخي، او کوم کلام کي چي خومره استعاري زیاتي وي نو دومره په هغي کي لذت زیات وي، نو دا دویمه بنه ده نو په کار وه چي دا یي مقدم کړی وی نو شارح دا دویمه ولي مقدم کره؟ **جواب**: دا دی چي شارح دیته نظر کړی دی چي دي اوله طریقه کي دوه استعاري راغلي نو دا بمنزلة المفرد ده، او په دویمه طریقه کي دري استعاري دي، نو هغه بمنزلة المرکب شوه او قانون دا دی چي مفرد مقدم وي په مرکب باندي طبعاً نو بمنزلة المفرد یي مقدم ذکر کړه د بمنزلة المرکب نه وضعاً د دي لپاره چي وضع د طبعي سره موافق شي، نو اول واني: **وتشبيه وجوه الاعجاز بالاشياء المحتجبة تحت الاستار**: تشبیه ورکول پټ په نفس کي د وجوه الاعجاز د هغه اشیاء سره چي هغه پټ کړی شوي وي لاندي د رومال نه لکه پیاله په مجمه کي کیده دپاسه پري کپړي وغورخوه نو وجوه الاعجاز مشبه شوه او اشیاء محتجبة تحت الاستار مشبه به شوه، دا پټ په ذهن کي دیته استعاره بالکنایة وائي، خکه د ماتن په راییي باندي شارح تللی دی، اوس لازم د مشبه به چي اشیاء محتجبة دي استارو نو **واثبات الاستار لها** ای للوجوه تخییلیة، **شبه**: یا هلکه نو وجوه بیا څه شی شو، نو وي ویل **وذكر الوجوه ايهام** د ذکر د وجوهو نه مراد ایهام دی، ایهام هغه لفظ چي هغه ذي المعنیین وي، یو معنى قریب وي او بله معنى بعید، متکلم اراده کړي وي معنى بعید او مخاطب پري ګمان د معنى قریبي کوي، نو اوس دلته کي وجوه ذي المعنیین دی، یو معنى چي عضو

مخصوص مخ او معنى بعيد چې طرق، نو دلته کې ماتن اراده کړي ده معنى بعيد چې طرق دى او مخاطب پرې ګمان د معنى قريبې کوي، نو طرق د اعجاز مراد دى.

دويمه طريقه ذکر کوي **اوتشبيه الاعجاز بالصور الحسنة** وجوه پرېږده، صرف تشبيه د اعجاز اوکه په صور حسنو پورې، يعني يو جينى ښايسته سره، تشبيه د اعجاز ورسره وکړه په جامع د ميلان کې، نو دا استعارة بالكناية شوه، او لازم د صورت حسنه سره وجه وي، **واثبات الوجوه له تخييلية** شو، خکه لازم د مشبه به يې ثابت کړه مشبه ته ملائم د هغه صور حسنه سره استار دى چې هغې پرى پټوي خان دتته په کور کې يا څادر کې نو اثبات د دې يې اعجاز ته وکړو نو دا ترشيح شو، **وذكر الاستار ترشيح**

**قوله: ونظم القران تاليف كلماته مترتبة المعاني متناسقة الدلالات على حسب ما يقتضيه العقل:** ونظم القران، اوس د دې نه يو غرض د شارح دفع د اعتراض کوي، اعتراض دا وارد شو چې يا هلکه د نظم اضافت قران ته نه صحيح کيږي خکه قران په معنى مصدري سره په معنى د قرامت سره دى، لکه په دې قول د الله تعالى کې: **فاذا قرانه فاتبع قرانه اى فاتبع قراءته**، نو نظم خو د قرات لپاره نه وي نظم خو د مقروؤ لپاره وي، نو ده جواب وکړو چې **تاليف كلماته** چې يا هلکه قران نه مراد تاليف د کلماتو د قران دى، او تاليف د کلماتو مقروؤ دى نو قران په معنى د مقروؤ سره شو او د مقروؤ لپاره نظم وي نو اضافت صحيح شو، يو غرض دا شو. دويم غرض د شارح دا دى چې نظم په ډيرو معانيو سره راځي، نظم مقابل د نثر هم راځي، او نظم ادخال د لؤلؤ في السلك ته هم وائي او نظم په معنى د تاليف سره هم راځي يعني تاليف د کلماتو سره، نو دلته اوله معنى نه صحيح کيږي خکه بيا معنى دا شوه چې قران تول شعر دى، او دا صحيح نه ده دويمه معنى هم نه صحيح کيږي خکه د هغې اضافت قران ته نه صحيح کيږي، هغه خو لؤلؤ ته کيږي، نو ده دا دريم معنى واخيسته، نو دويم غرض د شارح دا شو چې تعيين د ما هو المراد کوي چې دا دريمه معنى مراد شوه. دريم غرض د شارح دفع د اعتراض کوي چې يا هلکه تا **فى نظم القران** وويل نو في لفظ القران دې ولې نه ويل؟ خکه لفظ کې توهم د خلاف هم نه وو، يعني د نورو معانيو احتمال په کې نه وو، نو شارح جواب کوي په **ونظم القران** سره چې لفظ په لغت کې رمى ته وائي او په اصطلاح کې **ما يتلفظ به الانسان** ته وائي، نو که اوس ته معنى لغوي سره اضافت د لفظ قران ته کوي نو هغې کې سوء ادب دى، يعني په رمي د قران کې او که معنى ثاني اصطلاحي مراد کوي چې ما يتلفظ به الانسان دى، نو هغې کې ترتب او تناسق نه راځي، رعايت په کې د دې نه راځي، په خلاف د نظم خکه نظم هغه تاليف ته وائي چې هغې کې د ترتيب او تناسق لحاظ وي، نو د دې وجې نه نظم يې وويل اولفظ يې ونه ويل، خکه ما يتلفظ به الانسان خو توالي في النطق ته وائي او ضم د بعضو بعضو ته كيف ما اتفق، نو هغې کې تناسق او ترتب نشته دى، او نظم کې دا تناسق اوترتب شته دى، او څلورم

غرض دا چې تعريف د نظم کوي، نو وائي[1] ونظم القران تاليف كلماته نظم د قران وائي چې دا جمع کول د کلماتو د قران دی، داسې کلمات چې مترتبة المعاني چې مرتب وي معاني د هغې، معاني نه مراد مقتضيات د احوالو دي، معاني نه مراد معنی د لفظ مراد نه ده چې هغه تقديم دی تاخير دی، تاکيد دی حذف دی ذکر دی، او ترتب نه مراد چې دغه مقتضيات د احوالو مطابق به وي د حال د مخاطب سره، نو که اوس حال د مخاطب دا وي، چې هغه خالي الذهن وي نو کلام خالي د تاکيد نه راوړه، نو دا ترتيب راغلو، او که حال د مخاطب انکار وو، نو تاکيد ذکر کوو، که حال د حذف د مسند اليه وو نو حذف کوه که ذکر وو، نو ذکر کوه يعني چې دغه مقتضيات د احوالو مترتب وي په احوالو باندې، څکه چې مخاطب کې خلو د ذهن راغله نو دي باندې خلو د کلام د تاکيد نه مرتب کيږي، مخاطب حال کې انکار راغلو نو په دې باندې تاکيد مرتب کيږي، مخاطب کې حال د حذف راغلو نو دي باندې مرتب حذف د مسند اليه شو، په کلام کې مخاطب حال د ذکر راغلو نو په دې باندې مرتب ذکر د مسند اليه شو په کلام کې، دويم تکې يې ذکر کړو **متناسبة الدلالات** يعني متناسبة الدلالات وي، دلالاتو نه مراد دلالت مطابقي، تضمني التزامي دی، که مخاطب دلالت مطابقتي غوښتو او مخاطب غبي وو نو د هغه لپاره لفظ داسې ذکر کوه چې هغه دال وي په دلالت مطابقي سره، او که مخاطب ذکي وو د هغه حال دلالت تضمني او التزامي غوښتو نو هغه ذکر کوه، ليکن **على حسب ما يقتضيه العقل حسبُ** په معنی قدرُ سره او په مايقتضيه کې ما مصدريه ده، معنی دا په قدر د غوښتلو د عقل سره، چې عقل څنګه غواړي هغه شانتې به ته ذکر کوې، نو اوس مثلاً چې مخاطب خالي الذهن وي، نو عقل غواړي چې کلام ذکر کړی شي خالي د تاکيد نه، او چې مخاطب خالي الذهن وي او ته کلام مؤکد ذکر کړې نو دا خلاف د عقل نه شو **لا توالیها** دا په نظم الحروف او نظم الکلمات کې فرق کوي، نظم الکلام او نظم الحروف کې فرق کوي، نظم الکلمات ديته وائي چې دا مخکې تير شو، او نظم الحروف وائي توالي في النطق ضم د بعضو بعضو ته، لکه زيد کې ز سره متصل يا او ياء سره متصل دال دی، کيف ما اتفق څه د حال رعايت په کې نشته دی، يعني(ترجمه) نه راتلل پرله پسې د دې کلماتو په نُطق کې د پرله پسې څه معنی ای **وضم بعضها الی بعض کيف ما اتفق** يعني څنګه چې د دې ضم اتفاق راغلو يا څنګه چې نطق کې اتفاق وشي، اتفق کې ضمير يا نطق ته راجع دی، يا ضم ته، دواړو ته صحيح دی، څکه ديته **لا توالیها...الخ** نظم الحروف وائي او نظم الکلمات، الکلام ورته نه وائي، لکه اوس د ضرب په ځای باندې تا ربَضَ ووېل نو دا بلاغت سره څه مخل نه ده، معنی کې **تهيك** ده

---

١. تنبيه: دا اول غرض دی، دارنګه نورو اغراضو ته نمبرې بدلې کړئ، نو اول به دويم او دويم به دريم شي...الخ.
محترم استاد داسې ويلي وو نو ما داسې وليکل مرتب.

فرق راخي نو بلاغت ته څه مخل او نقصان نه رسوي. دواړه بليغ دي څو که خالي الذهن ته تا کلام مؤکد ذکر کړو نو دا مخل بالبلاغة دی، یا منکر لپاره تا کلام خالي د تاکید نه ذکر کړو نو دا مخل بالبلاغة دی

**قول المتن: وكان القسم الثالث:** غرض د ماتن په دي عبارت سره تمهيد ايږدي د تلخيص جوړولو لپاره د مفتاح العلوم نه. نو وائي **وكان القسم الثالث من مفتاح العلوم الذي صنفه الفاضل العلامه** : فاضل ترجمه فارغ التحصيل، كثير العلم كنيه د هغه ابو يعقوب وه، اسم محضه يوسف سكاكي وو. قول الشارح. **تغمده الله بغفرانه**، غرض د شارح په دي باندي دعا كوي مصنف ته، ترجمه: پټ دي كړي الله ده لره په پتوالي خپل سره، اوس دلته شارح تشبيه وركړه پته په ذهن كې د علامه د توري سره په جامع د حدت كې تيزوالی كې لكه څنګه چې تُوره تيزه وي تيره وي هر شی پريكوي، نو دغه رنګه د علامه ذهن هم تيره وو، هري مسئلي ته ننوتلو. يعني هره مسئله يې حل كولی شوه. نو دا استعاره مكنيه شوه، بيا لازم د تُوري سره غمد وي، دَ غَمد نه دی، غمد كسوري د توري ته وائي هغه غلاف ته وائي چې توره په كې دننه كيږدي. نو غمد د توري سره لازم وي، نو لازم د مشبه به يې ثابت كړو مشبه ته دا استعاره تخييليه شوه، او توري سره ملائم په وخت د عدم حرب او د جنګ كې ستر وي چې دننه په غمد كې پرته وي، چې زنګ ونه نيسي، دوري پري رانه شي، نو هغه يې ثابت كړو مشبه ته نو دا استعاره ترشيحيه شوه، غفران كې اوس شبهه راغله چې يا هلكه تغمد هم ستر ته وائي او غفران هم ستر ته وائي د غَفَر نه ماخوذ دی نو دا خو سببيت د شئ خپل نفس ته راغلو بيا په بغفرانه كې سببيت لپاره ده، او شئ سبب دخپل نفس نه شي كيدی، نو تاسو جواب وكړئ چې تغمد نه مراد ستر دی خو عام دی چې په فضل الهي سره وي او كه په توبي سره وي، او د غفران نه مراد ستر دی خو محض په فضل د الله سره بي د توبي نه، نو دا سببيت د خاص شو لپاره د عام اودا جائز دی. يعني پرده دي وغورځوي الله په ده باندي، پټ دي كړي الله ګناهونه د ده چې په توبي سره وي او كه نه محض په خپل فضل او كرم سره وي اګر كه ده توبه نه وی ويستلی.

**قول المتن: اعظم ما صنف فيه**....:اي في ... اى سره غرض د شارح تعيين د مرجع كوي اى في علم البلاغة وتوابعها دويم غرض دفعه د اعتراض كوي چې يا هلكه فيه كي ضمير خو علم البلاغة او توابع ته راجع دی، ( **البلاغة والتوابع** ) او هغه دوه دي او فيه ضمير د مفرد مذكر دی نو راجع او مرجع كي مطابقت رانغلو، نو شارح جواب وكړو چې فيه ضمير علم ته راجع دی او د البلاغة او وتوابع دا قيود د دي مرجع دی او قيود د مرجع خارج وي دمرجع نه .

**من الكتب المشهورة:** قال الشارح. **بيان**. بيان سره غرض د شارح تعيين مصداقي د من كوي، چې يا هلكه من بياني هم راخي ابتدائيه هم راخي او تبعيضيه هم راخي، نو دي **من الكتب المشهورة** كي دا من څه شی

دی؟ نو جواب تعیین مصداقي کوي د منْ چې دا منْ بیانیه دی. د چا لپاره بیان دی؟ نو وائي **لما صنف** لپاره. یعني هغه ماصنف څه وو نو وائي هغه کتب مشهوره وو .نفعاً. تمیز سره غرض د شارح تعیین د نصب کوي چې نفعاً منصوب دی او منصوبات خو دوولس قسمه دي نو دا نصب بنا بر څه شو؟ نو وائي چې **تمیز من اعظم** چې دا تمیز دی، دا تمیز دی د هغه نسبت د اعظم نه هغه ضمیر ته چې راجع دی قسم ثالث ته، چې کوم تمیز محول عن الفاعل وي نو هغه تمیز په حقیقت کې فاعل وي، او هغه فاعل مضاف الیه د دې وي لکه ته وائي طاب زید نفساً نو دا نفساً تمیز د دې نسبت د دې فعل نه دی خپل فاعل ته د (طاب نسبت زید ته)، نو حقیقت کې دا نفساً فاعل دی، او زید مضاف الیه دی، نو هلته مونږ دا تقدیر را وباسو چې طاب نفس زید نو دلته کې هم هماغه قانون دی چې دا نفعاً په حقیقت کې فاعل دی او هغه ضمیر د اعظم چې راجع دی قسم ثالث ته هغه مضاف الیه د دې نفعاً دی، نو تقدیر اعظم نفعُه شو، یعني د دې قسم ثالث نفعه اعظم وه د **ما صنف فیه نه**، اوس **لکونه** سره ماتن دلائل ثلاثه وائي د اعظم نفعاً لپاره، وقال الشارح **ای القسم الثالث** تعیین د مرجع کوي

قال الماتن **احسنها، ای احسن الکتب** دې سره شارح تعیین د مرجع کوي، **ترتیباً**: د حیثیت د ترتیب نه، د ترتیب تعریف کوي شارح چې ترتیب څه ته وائي لغة واصطلاحاً؟ چې هغه وضع کل شئ في مرتبته ته وائي، ترجمه وضع کول د هر شي په مرتبه د هر شي کې .اوس په دې باندې هغه مشهوره شبه راغله، چې په في مرتبته کې ضمیر به یا ته راجع کوي **کل** ته یا به شئ ته، بل څه خو نشته، که کل ته راجع کوي نو معنی دا شوه چې ترتیب وضع د هر شي ده په هر یو کې، نو وضع د شئ خو په خپله مرتبه کې وي او وضع د شئ په مرتبه د هر شي کې نه شي کیدای، او که شئ ته راجع کوي نو هغه خو نکره ده نو معنی داشوه، چې ترتیب وضع د هر شئ دی په مرتبه د شئ ما کې، او ترتیب وضع د هر شي په مرتبه د شئ ما کې نه دې .په مرتبه د خپل نفس کې دی .نو تاسو په اختیار د شق اول سره جواب وکړئ چې مرتبه کې ضمیر کل ته راجع دی خو دا کل په معنی کې جمع دی او د مرتبته ضمیر چې هم کل ته راجع شو نو جمع شوه، او جمع چې مقابل د جمع راشي نو هلته کې تقسیم د احادو په أحادو باندې کیږي، وضع د هر شئ دی معنی دا چې هر شی په خپله مرتبه کې دی، نو دا د قبیلې د رکبوا دوابهم لبسوا ثیابهم نه شو، یا ورته ووایې چې في مرتبته کې ضمیر راجع دی شئ ته، خو دا ارجاع د ضمیر مقدم ده په دخول د کل باندې ترجمه کې اګر چې ذکر کې کل مخکې داخل دی، نو تقدیر دا شو چې ترتیب وضع د هر شئ ده په مرتبه خپله کې خو دا قانون په هر شئ کې دی یعني وضع د شئ ده په مرتبه خپله کې د هر شئ، نو دخول د کل مو د ارجاع د ضمیر نه وروستو معتبر کړو.

قال الماتن: وقال الشارح لکونه **ای ولکونه انتهما تحریراً، هو تهذیب** سره شارح د تحریر تعریف کوي او دویم غرض د شارح دفع د اعتراض کوي چې یا هلکه تحریر خو ترمیم ته وائي لیکلو ته او لیکل

د قسم ثالث او د کتب مشهور وو خو يو شانتې دي چې د يو كاتب لاس نه قسم ثالث هم وليكلى شي او کتب مشهوره هم وليكلى شي نو بيا قسم ثالث څنګه **انتها تحريرا** شو؟ نو ده جواب وکړو چې تحرير معنى لغوي سره نه دى. تحرير معنى اصطلاحي دى، نو وائي: **وهو تهذيب الكلام** پاكول د كلام دى د حشو او د تطويل نه نو معنى دا چې قسم ثالث کې حشو او تطويل نه وو او کتب مشهوره ؤ کې وو دريم دليل وائي **واكثرها للاصول جمعا** قواعد او ضوابطو لپاره، كوم قواعد او ضوابط چې په قسم ثالث کې وو هغه په کتب مشهورو کې نه وو، شبه. يا هلكه للاصول جار مجرور دي، متعلق غواړي د دې متعلق څوك دى، او دا ظرف لغوي دى كه مستقر دى؟ نو شارح جواب وكړو، هو متعلق بمحذوف چې دا للاصول محذوف پورې متعلق دى نو ظرف مستقر شو۔شبه: راغله چې يا هلكه محذوف باندې قرينه څه ده؟ وائي **بفسره قوله جمعا**، چې دا وروستى جمعاً پرې قرينه ده، اوس **لان معمول المصدر** مخكې متن کې دوه دعوې شوې، ۱ يو دعوى دا چې دا للاصول متعلق دى په جمعاً محذوف پورې، دا دعوى ايجابي شوه، او دا شارح په خپله ذكر كړه، دويمه دعوى دا چې دا للاصول متعلق نه دى په دې جمعاً مذكور پورې، دا دعوى سلبي شوه، دا شارح نه ده ذكر كړې، نو دا **لان معمول المصدر** دا دليل دى دعوى سلبي لپاره چې دا للاصول جمعاً مذكور پورې متعلق نه دى **لان معمول المصدر لا يتقدم عليه**، څكه معمول د مصدر، څكه جمعاً مصدر دى، دا نه مقدم كيږي په مصدر باندې. اوس دليل لپاره دليل تاسو بهر نه ووايئ، تدقيق بهر نه وكړئ، يعني معمول د مصدر نه مقدم كيږي په مصدر باندې، د دوو وجو نه يو د دې وجې نه چې مصدر ضعيف العمل دى، څكه دا چې عمل كوي نو د مشابهت اشتقاقي د وجې نه عمل كوي، او د مشابهت د حركاتو او سكناتو د وجې نه عمل كوي، نو دى عمل په معمول متاخره کې كولى شي او په متقدم کې نه شي كولى، يعني سره د ترتيب نه عمل كولى شي بغير د ترتيب نه عمل نشي كولى. دويمه وجه دا ده چه معمول د مصدر نه مقدم كيږي په مصدر باندې څكه چې مصدر په حين د عمل کې مؤول دى په تاويل د انْ مع الفعل سره، نو چې جمعاً عامل شي په **اصول** کې نو په **ان يجمع** سره به يې تاويل وشي، او انْ موصول حرفي دى، په دې معنى سره چې موصول حقيقي اسمي چې په اول د جملې کې راشي نو هغه جمله مؤول په تاويل د مفرد سره ګرځي، نو هغه جمله نه وې پاتې بلكه هغه يا مسند وي يا مسند اليه شي، نو چې دغسې دغه انْ په صدر د جملې کې شي نو جمله مؤوله كوي په تاويل د مفرد سره نو دا موصول حرفي په دې اعتبار سره دى. او تقديم د صلې په موصول حرفي باندې جائز نه دى نو تقديم د معمول د صلې په طريق اولى سره جائز نه شو څكه چې د متبوع تقديم جائز نه شو نو د تابع خو نه شي كيداى، او معمول خو تابع وي د صلې. نو دا دوه دليلين شو نو دعوى سلبي ثابته شوه، چې د دې للاصول تعلق په جمعاً مذكور پورې صحيح نه دى. نو دعوى ايجابي خود بخود ثابته شوه چې د دې مذكور پورې متعلق نه شو نو خامخا محذوف به

را اوباسي نو دعوى ايجابي لپاره دليل ته حاجت نه وو

**والحق** سره شارح رد كوي په دې مخكې خبره چې دا ما چې اوس كومه خبره وكړه دا حق نه ده دا هسې مشهور په اقوال القوم كې ده، نو وائي **والحق جواز ذلك** چې حق جواز د تقديم د معمول د مصدر دى په مصدر باندې. كه ته وائي چې مصدر ضعيف العمل دى، دې عمل په معمول متاخره كې كولى شي په متقدمه كې نه شي كولى، نو د هغې نه جواب كوي چې **في الظروف** چې يا هلكه دا قانون په فاعل د مصدر او مفعول به بالذات د مصدر كې دى، او په ظروفو كې كه د ده معمول مخكې شي كه وروستو شي، دواړو كې دى عمل كولى شي دا ولې؟ ځكه **لانها مما تكفيه** كافي دى د دې لپاره **رائحة من الفعل** او مصدر كې رائحه د فعل شته دى ځكه دى مشابه دى د فعل سره **اشتقاقاً** مشتق منه د فعل دى، نو ظروفو كې ادنى رائحه كافي ده، او دا خو ظروف دي، او ظروف چې كوم ځاى كې هم واقع شي نو هغه محل وي. دا د اول دليل نه جواب وشو. دويم دليل نه جواب: چې ته وائي چې دا ماول دى په تاويل د أنْ مع الفعل سره، نو د هغې نه جواب دا دى چې يا هلكه حكم د ماول او د ماول به تولو احكامو كې يو نه وي، مصدر باندې الف لام داخليدى شي، او تا تاويل وكړه په فعل سره نو بيا پرې الف لام نه داخليږي، مصدر معرفه او نكره كيداى شي، او چې تا تاويل وكړو په فعل سره نو هغې ته نكره او معرفه نه شي ويلى، مصدر باندې اعراب لفظي جاري كيداى شي، او چې تا ماول كړو په أنْ مع الفعل سره نو په هغې باندې اعراب نه شي جاري كيداى، نو دا رنګه چې كله تاويل نه وي شوى نو تقديم دې جائز وي او چې تاويل وكړو نو اوس ستا خُله نه خوږيږي دغسې وايه چې **والكثرة ان يجمع للاصول** نو تاويل نه وروستو معمول وروستو كوه، او تاويل نه مخكې مقدم د وى، او كومه خبره چې قران كې راشي نو هغه حق وي قران كې راځي ﴿فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ السَّعْيَ﴾ نو دا معه ظرف دى مقدم شوى دى او متعلق دى په السعي پورې، او السعي مصدر دى، ځكه دلته مقصود د الله سعي معه ده، او بلوغ معه مراد نه دى، ځكه بلوغ معه خو نه دى ځكه ابراهيم عليه السلام په شام كې وو او حضرت اسماعيل عليه السلام په مكه كې وو، نو بلوغ معه نه وو، بلكه السعي معه وو، دارنګه ﴿وَلَا تَأْخُذْكُمْ بِهِمَا رَأْفَةٌ فِي دِينِ اللَّهِ﴾ نو دا بهما ظرف دى متعلق دى وروستو رافة پورې او رافة مصدر دى او بهما مقدم شوى دى او دغه ولا تاخذكم پورې متعلق نه دى ځكه چې عدم اخذ بهما مراد نه دى، عدم رافة بهما مقصود دى، چې ترس او رحمدلي په دې زاني او زانيې باندې مه كوئ بلكه د الله حد بنه پرې جاري كړئ او د حد په دې جريان كې ترس پرې مه كوئ، سل كوړې يې ووهئ.

**قول المتن: ولكن كان قال الشارح القسم الثالث:** دې كې اشاره وكړه تعيين د مرجع ته چې كان كې ضمير قسم ثالث ته راجع دى، **غير مصون** شارح د غير مصون تفسير كوي په اى **غير محفوظا** په دې كې اشاره

کوي تفسير د غير مشهور ته په مشهور سره ـ او ماتن ويل چې **عن الحشو** نو شارح وروستو وريسې وويل **وهو الزائد المستغنی عنه.** دينه غرض د شارح اشاره کوي تفسير و تعريف د حشو ته. يعنې حشو هغه زائد ته وائي چې بې پرواهي ترينه شوې وي يعني حاجت ورله نه وي، اوس مستغنی عنه عام دی چې فائده په کې وي او که نه نوي، **والتطويل:** او د تطويل تفسير شارح وکړو چې **وهو الزيادة علی اصل المراد بلا فائدة،** اوس سائل سوال وکړو د شارح نه چې يا هلکه دا کوم فرق چې تا وکړو په حشو او تطويل کې او دا کوم تعريفونه چې تا وکړل هغه به کافي وي لپاره د فرق په دې دواړو کې؟ نو شارح جواب وکړو چې نه دا کافي نه دی **وستعرف الفرق بينهما فی بحث الاطناب** نو معترض شبه وکړه چې دا دلته چې تا فرق وکړو نو بيا بل فرق ته څه ضرورت دی، نو تاسو وواياست چې دلته عبارت کې لږ غونډي حذف دی **ای وستعرف الفرق المعتد به بينهما فی بحث الاطناب،** اوس دوه خبرې ضروري شوې، ۱ يو دا چې هغه راتلونکی فرق په بحث د اطناب کې هغه څه دی؟

دويمه دا خبره چې دلته دا فرق غير معتدبه شو او هلته هغه فرق ولې معتدبه دی؟ نو اوس اوله خبره چې بحث د اطناب کې کوم فرق دی، نو هغه دا دی چې حشو وائي هغه زائد ته په مراد باندې خو دا زائد به معين وي او تطويل ويلی شي زايد ته خو لاعلی التعين ته. نوحشو کې هغه زائد متعين وي او تطويل کې متعين نه وي خو يو په کې لاعلی التعين زائد علی المراد وي، لکه اول مثال د حشو، لکه اعلم علمَ اليوم والامس قبله، نو دلته کې دا قبله حشو غير مفسده دی، ځکه قبليت د امس نه معلوم شو، نو دا قبله زائد دی په اصل مراد باندې البته مفسد للمعنی نه دی، او د تطويل مثال لکه، والفی قولها کذبا ومينا، نو کذب هم درغو ته وائي او مين هم درغو ته وائي، نو دې کې لاعلی التعين يو په کې په اصل مراد باندې زائد دی، اوس دويمه خبره، هغه فرق معتدبه شو او دا غير معتدبه شو، دا ولې؟ نو تاسو وواياست چې هغه فرق معتدبه ځکه دی، ځکه په هغې باندې نسبت تبائن راغلو، ځکه په حشو کې تعين شرط شو او په تطويل کې تعين شرط نه شو، او بنا په دې فرق باندې دلته چې ذکر دی عموم او خصوص مطلق راغلو ځکه حشو اعم مطلق شو چې فائده په کې وي او که نه وي. او د عموم خصوص فرق کامل نه دی، نو د دې وجې نه هغه معتدبه شو او دا غير معتدبه شو.

**والتعقيد:** او نه وو دا قسم ثالث محفوظ د تعقيد نه، معترض شبه وکړه چې يا هلکه تعقيد دا خو مصدر د باب تفعيل دی په معنی د ګرانولو سره، نو دا خو صفت د متکلم دی ځکه ګرانول خو متکلم کوي، نو دا ته د قسم ثالث څنګه صفت ګرځوی قسم ثالث خو د کتاب نوم دی، نو هغې کې متکلم تعقيد کولی شي؟ نو تا توصيف د يو مباين وکړو په صفت د مباين اخر سره، توصيف د قسم ثالث تا وکړو په صفت د متکلم سره، چې قسم ثالث محفوظ نه وو د تعقيد نه، يعني د ګرانولو د متکلم نه، نو ده جواب وکړو چې دلته تعقيد مصدر په معنی د اسم مفعول سره، چې: **وهو کون الکلام مغلقا** نو دا صفت د

قواعد هغه بنځو ته هم وائي، چې د حيض نه مايوسه وي. نو دلته خو دواړه معنى نه صحيح کيږي خکه معنى به دا شي چې داسې مختصر چې د ه نيولى وو هغه څه چې په دې قسم ثالث کې وو د بنيادونو د ابادى نه نو قسم ثالث کې خو بنياد د ابادى نه وو يا د هغه ښځو نه چې هغه مايوسه وي د حيض نه، نو دا توهم په قسم ثالث کې نه وو، نو دى راغلى جواب يې وکړو په **وهى حكم كلى سره**. چې يا هلکه دلته کې دقاعدې دا دواړه معاني مراد نه دي، دلته کې معنى ثالث مراد ده، هغه معنى ثالث دا ده چې **وهى حكم كلى** دلته کې حکم کې دوه احتمالين دي، د حکم نه يا محکوم به ده، يعني دا قاعده محکوم به دى په موضوع کلي باندې د کلي نه مراد موضوع کلي لکه كل فاعل مرفوع. نو اوس دا مرفوع يو محکوم به شو په موضوع کلي باندې چې فاعل دى. نو بنا په دې باندې ينطبق صفت شو د دې کلي لپاره يعني هسې کلي موضوع چې منطبق وي په خپلو ټولو افرادو باندې. نو موضوع سره تا حکم وکړو په كل فاعل باندې، او دا كل فاعل د تمامې دنيا فاعلانو ته ورغلى دى، شامل دى او د دې نه يو فرد د افرادو د فاعل پاتې نه دى نو **على جميع جزئياته** شو دويم احتمال دا دى چې د حکم نه قضيه مراد ده خکه اطلاق د حکم په قضيه باندې کيږي نو معنى دا شوه چې دا قاعده يو قضيه ده، اوس قضيه كله کلي وي او كله جزئي وي لکه كل انسان حيوان قضيه ده خو کلي ده او بعض الحيوان انسان هم قضيه ده خو جزئيه ده. خو دا جزى يا كليه به وي ؟ نو ويل **كلى**، نو بيا دا ينطبق صفت د دې حکم شو، او صفت يې د مجموع لپاره کوي يعنى **حكم كلى ينطبق** صادقيږي. **ليتعرف** کې دا لام لپاره د عاقبت دى، چې يا هلکه د دې انطباق او صدق په جميع جزئياتو انجام به څه وي؟ نو ويل **ليتعرف** نو دا د قبيلې د لدوا للموت وابنوا للخراب د قبيلې نه شو او ﴿فَالْتَقَطَهُ آلُ فِرْعَوْنَ لِيَكُونَ لَهُمْ عَدُوًّا وَحَزَنًا﴾ د قبيلې نه شو خکه ﴿لِيَكُونَ لَهُمْ﴾ کې لام عاقبت لپاره دى، نو د دې انطباق انجام به دا وي **ليتعرف احكامها منه** چې معلوم کړي احکام د دې جزئيات د دې کلي نه، نو انجام به دا شي چې دجزئياتو محمولات به تاته معلوم شي د دې حکم کلي نه، اوس د دې تعرف طريقه دا ده چې يو جزئي به ته راوړې هغه به موضوع کړو او موضوع د دې حکم کلي به ته ورياندې محمول کوې. لکه تا دعوى کېنبوده چې زيد په ضَرَبَ زَيْدٌ، کې مرفوع دى دا دعوى شوه. اوس د دې دليل دا دى چې **لانه** فاعل، لانه، موضوع دى خکه ضمير زيد ته راجع دى، او فاعل ورياندې محمول شو، او فاعل موضوع د قاعدې کلي وو، هغه تا به د دې جزئي باندې محمول کړو نو دا اوس مجموعه صغرى ترې جوړه شوه چې لانه فاعل، اوس هغه قاعده کليه کبرى کړه چې وكل فاعل مرفوع نو نتيجه دا راووته چې زيد مرفوع، نو د زيد يو حکم تا ته معلوم شو، مرفوعيت دلته کې اوس څنګه به وي؟ كقولنا يعنى علم بلاغة کې، چې **كل كلام مع منكر يجب توكيده** يعنې هر حکم يا هره قضيه يا هر اسناد چې د منکر سره

وکړو چې یا هلکه چې جَهد شي او که جُهد شي دواړه عبارت دي د اجتهاد نه. د کوشش کولو نه. او
په دې کې چې ته فرق کوي نو دا صحیح نه ده
**وقد استعمل الالو ههنا** نه غرض د شارح یو اعتراض کوي او بیا جواب کوي، اعتراض دا چې الوخو دلته
متعدي دی دوو مفعولینو ته، نو یو مفعول خو جهداً شو خو بل مفعول چیرته لاړو، خکه الو دلته کي
په معنی د منع سره دی او منع دوو مفعولینو ته متعد کیږي. نو شارح **والمصنف** سره جواب کوي چې یا
هلکه مفعول اول دلته کي محذوف دی نو تقدیر دا شو چې **لم امنعک جهداً** او مفعول اول یې حذف کړی
ولې دی؟ وائي د وجې د عدم مقصودیت نه، دلته کي مخاطب دون مخاطب مقصود نه وو بلکه دلته
کي مقصود عدم منع د طاقت وو، مخاطب هر یو کس هر طالب چې وي، دا مقصود نه دی چې زید
وي نو د هغه نه ما خپل طاقت نه دی منع کړی او عمر نه منع کړی. دویم غرض د شارح، رد کوي په
مذاهب ثلثه وو آخر باندي، یو مذهب دا وو چې دلته کي الُ په معنی لغوي سره ده، لم الُ په معنی د لم
اقصر سره دی، یعني ما نه دی کم کړی جهداً، نو دي مذهب باندي شبه راغله چې یا هلکه لم الُ په
معنی د لم اقصر سره شي نو هغه مفعول نه غواړي، خکه هغه خو لازمي دی نو بیا جهداً څنګه
منصوب شو؟ نو هغه بیا جوابونه کوي، او الُ په معنی د تقصیر سره په قران کي مستعمل دی، نو دلته
کي هم مراد شو، نو هغه جوابونه کوي چې ۱ چې دا د جهداً نصب بنا بر حال دی د لم ال د ضمیر فاعل
نه، یعني حال کوني مجتهداً جهداً په تاویل د مجتهداً سره خکه هسي حمل نه صحیح کیږي، یعني
چې زه کوشش کوونکی یم، ۲ یا منصوب بنا بر تمیز دی او محول عن الفاعل دی یعني ما کمی نه
دی کړی د حیثیت د کوشش نه نو اصل کلام داسي شو چې **لم ال اجتهادي** یا جهدي شو، خکه تمیز محول
عن الفاعل حقیقت کي فاعل وي او فاعل حقیقي مضاف الیه وي. یا هغه جواب کوي چې دا نصب په
نزع د خافض سره شو یعني **لم ال في الاجتهاد**. دویم مسلك دا دی، چې لم الُ په معنی د لم اترك سره دی نو
معنی دا چې لم اترك جهداً في تحقیقه نو هغه ترك یو مفعول غواړي نو هغه ذکر شو. دریم مسلك دا
دی چې الُ د افعال ناقصه ؤ غیر مشهوره ؤ نه دی په معنی د لم ازل سره نو دا جهداً د دې خبر شو او
ضمیر په ازل کي اسم شو، نو معنی دا چې همیشه یم زه جهداً کوشش کوونکی **في تحقیقه** په تحقیق د
مختصر کي. نو شارح دلته په دې **وقد استعمل الالو** سره په دې درې واړو باندي رد وکړو، چې دلته کي
الُ په معنی د مَنَع سره دی او په دې درې معانیو سره ندی، اوس وجه د رد څه ده، هغه شارح نه ده ویلي
نو وجه د رد شهرت او عدم شهرت دی خکه چې لم الُ په معنی د منع سره مشهور الاستعمال د او لم ال
په دې معانیو ثلاثه ؤ اُولو کي غیر مشهور الاستعمال دی، او اصل په الفاظو کي حمل دی په معانیو
مشهورة الاستعمال باندي، دویم غرض د شارح د **وقد استعمل الالو** نه بیان د معنی مرادي کوي پس د
معنی لغوي نه وهو التقصیر سره یې معنی لغوي بیان کړه نو وقد استعمل سره معنی مراد بیانو چې

گوره دلته کي دا خو معنی لغوي ده خو دلته کي دا مراد نه ده

قال الماتن **في تحقيقه**: اى المختصر قاله الشارح. دي سره يې تعيين د مرجع وکړو يعني في تحقيق ما ذکر فيه من الابحاث غرض د دې عبارة نه دفع د اعتراض دی، چې يا هلکه تحقيق خو اثبات المسئله بالدليل ته وائي او مسئله خو قضيه وي، او مختصر خو مفرد دی، نو د هغې تحقيق کيداى شي؟ مفرد يعني مختصر دليل غواړي؟ نو ده (شارح) جواب وکړو چې ذکر د مختصر او مراد ترينه نه مافي المختصر دی، او ما في المختصر قضايا او مسائل دي او هغې کې تحقيق کيداى شي **وتهذيبه**: قال الشارح **وتنقيحه** دي سره غرض تفسير د غير مشهور يې وکړو، يعني پاکول د مختصر د حشو او تطويل نه **وترتيبه** شارح تعيين د مرجع کوي اى المختصر ماتن وائي ما مرتب کړی دی مختصر لره په ترتيب په ترتيب ورکولو سره داسې ترتيب **الترتيب تناولا** شارح ورسره لګوي اى **اخذا** په اخيستو کې دا شارح تعين د معنى مراد دی اوکړو، اوبه اصل لغت کې **تناول** څه ته وائي؟ مد اليد لاخذ الشئ، نو دا تفسير باللازم شو، ځکه چې اخذ د مد اليد، سره لازم دی، نو دلته کې دا لازمي معنی مراد شوه او ملزومه معنی نه ده مراد، ځکه مد اليه لاخذ الشئ، دا خو په محسوساتو کې راځي، د مختصر مسائل خو څه محسوسات نه دي، فهم مراد دی، **من ترتيبه**: شارح: اى ورسره لګوي، غرض د دې نه بيان د احتمالينو کوي په مرجع د دې ضمير د ترتيبه کې، نو اول احتمال ته يې اشاره وکړه په اى ترتيب السکاکي سره، چې ضمير سکاکي ته راجع شو، او دويم ته يې اشاره وکړه په **او القسم الثالث** سره، ضمير قسم ثالث ته راجع شو، شبه يا هلکه دا احتمالين په دې مرجع د ترتيبه کې دا احتمالين ابتدائي شو که بنائي شو؟ سائل سوال وکړو، نو شارح جواب وکړو، چې دا ابتدائي نه دي بلکه دا بنائي دي، نورو دوو احتمالينو باندې بنا دی، او هغه نوردوه دا دي چې دا ترتيب به خالي نه وي، يعني اضافت د ترتيب دې ضمير ته به خالي نه وي، که ته دا اضافت د مصدر کوي فاعل ته نو بيا ضمير سکاکي ته راجع دی او مفعول محذوف شو، يعني د ترتيب د سکاکي نه قسم ثالث لره، او که دغه ترتيب ته مصدر مضاف مفعول ته وائي نو بيا احتمال ثاني شو، نو بيا ضمير قسم ثالث ته راجع شو او فاعل محذوف شو يعني ترتيب د سکاکي نه چې ورکړی يې دی، دې قسم ثالث لره، نو دا دواړه احتمالي بنائي شو ابتدائي نه شو-بل صفت کوي ماتن د مختصر اى التلخيص ترغيباً للطلاب، وائي: **ولم ابالغ في اختصار لفظه تقريبا ترجمه**:

سائل راغلو، معترض هغه سوال وکړو چې تقريبا منصوب دی د نصب لپاره دوولس طريقي دي نصب د دې تقريباً بنا بر څه دی؟ شارح جواب وکړو **مفعول له**، چې دا مفعول له دی. معترض بله شبه وکړه چې يا هلکه مخکې دوه څيزونه دي، نفي ده **لم** او منفي ده **ابالغ** نو ته دا مفعول د لم لپاره وائي او که د ابالغ لپاره وائي؟ بل احتمال خو نشته دی که د لم لپاره وائي نو هغه خو حرف دی مفعول له نه غواړي، ځکه مفعول له علت ما قبل لپاره او حرف معلول کيداى شي؟ ولې که حرف معلول شي نو معلول خو مقصود بالعلة وي، نو شئ واحد به هم مقصود او هم غير مقصود شي، حرف مرة دې طرفينو ته نو

غير مقصود شو او چې معلول بالعلة يې كړي نو مقصود شو، نو حرف خو معلول نه شي كيداى .او كه د منفي لپاره يې كوي نو فساد د معنى راځي د قاعدې د وجې نه، قاعده دا ده چې نفي داخل شي په كلام مقيده باندې نو نفي متوجه كيږي قيد ته نو ابالغ مقيد شو په قيد د تقريباً سره او لم پرې وروستو داخل شو، نو نفي متوجه تقريب ته شوه نو معنى دا چې مبالغه د تقريب لپاره نه ده شوې او د امر اخر لپاره به شوې وي، نو دا معنى فاسده ده .ځكه مبالغه د تقريب لپاره شوي ده د امر اخر لپاره نه ده شوي نو دا بالكل عكس فائده كوي، نو شارح راغلى او د دې جواب كوي په اختيار د شق ثالث سره چې يا هلكه دا تقريبا نه مفعول له د دې ابالغ لپاره وايمه او نه د دې لم لپاره بلكه دا مفعول له وايمه د يو بل فعل لپاره چې هغه مستفاديږي د دې نفي او منفي دواړو نه چې هغه تركت دى.-نو وائي مفعول له لما تضمنه معنى لم ابالغ، نو وائي چې د هغه فعل لپاره چې نيولى دى دې ما لره معنى دلم ابالغ نو معنى د لم ابالغ متضمن شواو هغه فعل متضمّن شو، هغه متضمن فعل څوك دى وائي اى تركت المبالغة في الاختصار تقّريباً، **لتعاطيه**: تفسير د غير مشهور كوي په مشهور سره وائي اى تناوله يعني لپاره د اخستلو د دې مختصر **وطلبا** عطف دى په تقريباً باندې جوابا او سوالاً، **لتسهيل فهمه على طالبيه** ترجمه اسانه ده والضمائر، دا ضمائر څلور واړه په لفظه كې لتعاطيه، فهمه، طالبيه كې **للمختصر** دا مختصر ته راجع دى.

اوس په **وفي وصف مؤلفه** سره غرض د شارح دا دى چې غرض د ماتن بيانوي چې د الفت مختصراً نه وروستو د تر و اضفت پورې د ماتن غرض دا دى چې ده د خپل مختصر صفت وكړو. يو داسې چې دا مختصر دى چې داالفت مختصراً نه معلوم شو، او د **لم ابالغ في الاختصار لفظه** نه هم معلوم شو، دويم صفت چې **منقح** نو هغه في تحقيقه او تهذيبه نه معلوم شو، او دريم صفت سهل الماخذ هغه طلبا لتسهيل فهمه نه معلوم شو، نو دې دري واړو اوصافو كې تعريض، اشاره ده، تعريض په معنى د اشارې سره، چې **با نه لا تطويل فيه** چې په دې مختصر كې اوږدوالى نشته دى ځكه دا مختصر دى. دا **لاتطويل** مختصر سره ولګيدو، **ولاحشو** او حشوه نشته دى ځكه منقح دى، او **لاتعقيد** ځكه سهل الماخذ دى، **كما في القسم الثالث**، دا د منفي سره ولګوئ، لكه دغه تطويل او حشوه او تعقيد چې قسم ثالث كې شته دى. نو دا تعريض شو په سكاكي باندې، نو شبه راغله چې يا هلكه بيا خو ماتن غيبت وكړو د سكاكي او غيبت خو جائز نه دى. چې زما مختصر بنه دى، او د سكاكي قسم ثالث بنه نه دى نو دا غيبت شو كه سكاكي ژوندى وى نو به دې خفه كيدو. او كه نه طالب مولا لپاره جائز دې دا مستثنى دى

منم ملا اگر كرديم گنا هى مشو حيران كه كفر ندهم معاف است

چلاسي بابا وائي: ملا وائي چې ما ته بدعت او كفر تول معاف دي.

ازو پرمی که غیبت نیست عصیان        که غیبت از برائی او رواهست ([1])

د ملا نه تپوس وکړه چې غیبت گناه نه دی؟ تا لپاره جائز، ته کوه ته ملا نې
نو په ممبر باندې خاص يو کس مطعون کول دا نشته، دا غيبت کې داخل دی، بس حکم عامه بيانوه په خپله چسپان کيږي، چې **كل من اتصف بهذه الصفة فحكمه هكذا**، هغه زيد وي که عمرو وي که بکروي، هغه په خپله چسپان کيږي خکه پښتانه وائي د غل په سر اور بليږي، نو تاسو ووايئ چا ماتن دلته کې دا کار د غرض صحيح لپاره وکړو، يعني ترغيباً للطلاب، خکه ماتن په تلخيص جوړولو کې پوره کوشش کړی وو، چې علماء طلباء يې ووايي زما کتاب دوی مدرس کړي.
قال الماتن رحمه الله **واضفت الى ذالك**: معترض اعتراض وکړو چې يا هلکه **ذلك** کې خو اشاره ده أمثلو شواهدو او قواعدو ته نو هغه خو متعدد دي او ذلك خو اسم اشاره مفرد لپاره راځي نو اسم اشاره او مشار اليه کې مطابقت رانغلو نو شارح يې جواب وکړو چې المذکور چې يا هلکه هغه مؤول دی په تاويل د مذکور سره او مذکور هم مفرد دی نو اسم اشاره مفرد هم صحيح شو. بيا معترض شبه وکړه چې يا هلکه مذکور خو د دې خای نه واخلي تر بسم الله پورې ټول مذکور دی نو هغې ته خواشاره نه صحيح کيږي، نو شارح جواب وکړو **من القواعد وغيرها** چې يا هلکه مذکور نه مراد مطلق مذکور نه دی، بلکه دا قريب مراد دی چې قواعد امثله او شواهد دی. ماتن څه ضم کړی دی **فوائد**، **عثرت** شارح ورسره **اطلعت** ولګولو دا يې تفسير د غير مشهور په مشهور سره وکړو، معنی خبر شوی يم زه. او بل د دې لپاره که **عثرت** د عثار نه شي نو خويدلو ته هم وائي، او هغه دلته کې نه صحيح کيږي نو خکه يې په اطلعت سره تفسير وکړو **في بعض كتب القوم عليها** تعين د مرجع کوي ای على تلك الفوائد سره. **وزوائد** او ما هم ضم کړي دي د دې مذکور سره زائد مسائل **لم اظفر** تفسير د غير مشهور په مشهور سره کوي چې ای **لم افز** زه نه يوم کامياب شوی **في كلام احد بالتصريح بها** قال الشارح ای بتلك الزوائد دی سره يې تعيين د مرجع وکړو **ولابالاشاره اليها** دې زوائدو ته (ضمير واليها زوائد ته راجع دی من الجامع والكاتب) دا قوم نه اشارة ويلی وو او نه يې تصريح کړي وه بلکه ما خپلې قريحې نه دغه زوائد ضم کړي دي معترض راغلی شبه يې وکړه چې يا هلکه مقابله داشاري د **تصريح** سره نه صحيح کيږي، خکه چې دواړه عبارت دی د دلالة الكلام نه په مقصود باندې خو صرف په تصريح او صريح کې سوق شوی وي او په اشاره کې سوق نه وی شوی، باقې دلالت خو دواړه په معنی مراده باندې کوي، نو دا مقابله خو د دوی په مينځ کې صحيح نه شوه مقابله داسې چې ذکر د نفې د اشارې وروستو د تصريح نه مستدرك شو خکه يو شی دی، نو دې (شارح) راغلو جواب کوي په **بان يكون** سره چې د تصريح نه مراد قصداً

[1] - کلیات جلاسي: ۲۶

دی او اشاري نه مراد تبعاً دی **هغه** صریح اصولي او اشاره اصولي نه دی مراد خکه چې نصریح اصولي عبارة النص ته واني او اشاره اصولي اشارة النص ته واني نو مطلب دا شو چې دي فواندو ته دي قوم نه قصداً اشاره کړي ده او نه تبعاً نو خکه واني **بان یکون کلامهم علی وجه یمکن تحصیلها** ای الزواند **منه** ای الکلام **بالتبعیة**. چې دا کلام قصداً دلالت په یو معنی باندې کوي خو دا زواند ترینه بالتبع فهمیږي. داسې هم نه وه **وان لم یقصدوها** ای الزواند او واني **وسمیته** ای المختصر **تلخیص المفتاح** نو شبه راغله چې دا خو تلخیص د ټول مفتاح نه دی بلکه صرف د قسم ثالث دی نو بیاد ورته تلخیص المفتاح نوم څنګه کېښودو؟ نو ځوك واني چې دلته کې حذف د مضاف دی یعنې تلخیص قسم الثالث من المفتاح او ځوك واني چې دا نسبت ټول مفتاح ته مجازاً دی یعنې دا خو تلخیص د قسم ثالث وو، خو قسم ثالث په ټول مفتاح کې اشرف وو. نو ګویا که دا تلخیص د ټول مفتاح شو هلکه دا تلخیص المفتاح نوم دي ولې کېښود؟ نو واني **لیطابق اسمه معناه** خکه چې معنی د دې تلخیص مختصر وو ای ( الفت المختصر ) او نوم ورته ما تلخیص المفتاح کېښودو نو خلاصه د مفتاح مختصر وي. یعنې مطابق شي اسم علمي د دې معنی د ده سره شبه راغله چې مخکې تا نسبتونه وکړل خان ته، چې رتبتُ، اضفتُ، سمیتُ، دارنګه الفتُ، څلور نسبتونه شو، نو دې کې خو علو راغله، نو دې واني چې **وانا اسئل الله** چې یا هلکه تالیف دی که اضافت که ترتیب دی او که تسمیه ده مقارن دی په سوال زما سره د الله نه. شارح شبه کوي چې **قدم المسندالیه** چې مقدم کړو، ماتن مسند علیه دا ټول چې انا دی په مسند فعلي باندې چې اسئل الله دی، او مسند فعلي حرف نفي ته یلی نه دی. او تقدیم د مسندالیه په مسند فعلي باندې چې حرف نفي نه وي نو دا دوو فاندو لپاره کیږي: ۱ تخصیص لپاره. ۲ او یا د تقویت لپاره تخصیص لپاره لکه انا سعیت في حاجتك شو. اوس که زما دا خیال وو چې زما دی حاجت کې زید او عمرو دواړو سعي کړي ده، زید ووېل انا سعیت في حاجتك نو قصر افراد شو، چې ما کړی دی او عمرو ماسره ټل نه دی، یا زما دا خیال وو چې زما حاجت کې عمرو سعي کړي ده او زید نه ده کړي نو زید ما ته ووېل چې **انا سعیت في حاجتك** نو قصر قلب شو. نو اوس که دلته کې **انا اسئل الله** کې که د تخصیص لپاره شي نو معنی به دا شي چې خاص زه سوال کوم د الله نه او نور خلک سوال نه کوي، ما سره شریك نه دی. نو دې سره دوه بدی راغلې: ۱ یو خو د ماتن بد ظني راځي په نورو مؤمنانو موحدینو باندې. هر مؤمن او موحد د الله نه سوال کوي او پیغمبر ﷺ واني: **ظنوا المؤمنین** خیراً. او دویم دا بدي راغله چې زه یواځې سوال کوم نور ځوك خان سره دې کې نه پرېږدم نو ولې یې نه پرېږدي نو نور پرېږده چې شرکت سره دعا اوشي چې منصوص وي، نو هغې کې احتمال د اجابت شته

دی او چې خاتمه کښې نو هلته کې احتمال د اجابت او عدم اجابت دواړو شته دی[۱] او یا د تقویت لپاره کیږي نو هغه هم نه صحیح کیږي ځکه هغه مخکې انکار غواړي لکه زید قام کې شو **زید قام** کې تقدیم د مسند الیه شوی دی په مسند فعلي باندې نو دلته کې تاکید راغلو، یو ځل اسناد د قام ضمیر ته شو بیا مجموعه مسند زید ته شو نو د تکرر د اسناد د وجې نه تاکید راغلو نو تاکید خو انکار غواړي او مخاطبینو کې داسې منکر څوک نه وو چې هغه وایې چې ماتن سوال د الله نه نه کوي نو تقدیم د تقویت لپاره هم صحیح نه شو. نو شارح جواب وکړو **قصدا** وائي لپاره د قصد کولو د ماتن جعل د واو للحال. وائي چې تقدم د مسند الیه د دې وجې نه وشو چې ماتن قصد وکړو لپاره د ګرځولو د واو لپاره د حال او دا ولې؟ وائي ځکه چې که ته جمله فعلیه ذکر کوې اسئل الله نو یا به سره د واو نه ذکر کوي یا بغیر د واو نه. نو که سره د واو نه ذکر کوې نو دوه بدی راځي. یو دا چې هلته کې (ای في الواو) احتمال د استیناف او عطف دواړو دی نو خدا نه خواسته که مستانفه شي نو اقتران د سوال د ترتیب، تالیف، اضافت، او تسمیې سره راغی؟ نه او د ماتن غرض څه وو؟ اقتران وو. او دویمه بدي دا راغله که حالیه یې ګرځوې نو چې مضارع حال واقع شي نو هلته کې خو واو نه وي چې مثبت وي، بلکه ضمیر باندې اکتفا کیږي، واو په کې نه وي. او که نه ته دا جمله اسمیه ذکر کوې بغیر د واو نه نو هغه خو بیا نص شو په استیناف کې. نو چې استیناف کې نص شوه نو اقتران مخکې سره رانغلی. تالیف ،ترتیب ،اضافت او تسمیې سره .دې سره اقتران رانغلی ځکه اقتران خو د واو حالي د وجه نه وو او هغه تا رانه وړو نو بالضرور اسمیه به ذکر کوې سره د واو نه د دې لپاره چې احتمال د استیناف کښ شي احتمال د عطف کښ شي نو حالیه متعین شو. نو د استیناف احتمال خو کښ شو د واو حالي د وجې نه او احتمال د عطف کښ شو ځکه چې د اسمیې عطف په فعلي باندې کیدای شي؟ ځکه حسن نه دی نو حالیت پاتې شو. او حال مقارن دی او مقارنت راغلو. اوس دا جواب د شارح خو صرف په دې باندې شو دې لپاره شو، چې جمله اسمیه یې مختاره کړه په فعلیه باندې او بیا جمله اسمیه یې مختاره کړه بالواو په بغیر الواو باندې. نو جواب خو صرف دومره کړتې شو. او هغه بل سوال چې تقدیم د مسند الیه په مسند فعلي باندې کیږي د دوو غرضونو لپاره د هغې خو جواب ونه شو. نو د هغې نه جواب دا د شارح والانه صحیح کیږي د هغې نه جواب د بهر نه دی چې یا هلکه زه دلته کې تقدیم د تخصیص لپاره دی خو دلته کې تخصیص و قصر په سوال کې قصر حقیقي نه دی اضافي دی په نظر سره حاسدینو ته. چې زه سوال د الله نه د نفع د مختصر کوم او زما حاسدین نه کوي. یا په نسبت سره آمین ته دی چې سوال خو مونږ ټول کوو خو امین کې ما پورې سوال مقصور دی. سوال سره د امین نه صرف څه کوم حاسدین

---

۱. نو تخصیص صحیح نه شو.

هسې سوال کوي خو امين ورسره نه واني. يا وواني چې دلته کې تقديم د تقويت لپاره دى، خو دلته کې دا انکار عام دى، چې تحققاً وي او که توهماً وي، نو دلته کې اګر چې انکار محقق خو نشته دى خو توهم يې شته دى، متوهم دا توهم وکړو چې ماتن خانته دا ځلور نسبتونه وکړه نو په دې کې دې به سوال د الله نه نه کوي؟ نو ده (ماتن) ووېل چې زه سوال د الله نه کومه، نو تاکيد وشو او يا ورته وواني چې يا هلکه هر ځاى کې تقويت او تاکيد د حکم انکار نه غواړي بلکه کله کله متکلم تاکيد د حکم کوي چې دغه حکم د اسناد مرغوب د متکلم وي. نو دلته کې سوال د ماتن د الله نه مرغوب وو نو تاکيد سره يې ذکر کړو، لکه: ﴿وَإِذَا خَلَوْا إِلَىٰ شَيَاطِينِهِمْ قَالُوا إِنَّا مَعَكُمْ﴾ دى.

قال الماتن من فضله، شارح ترکيب کوي واني: حال، دا په اعتبار د متعلق سره حال دى د من ان ينفع به نه، او ان ينفع به د دې اسئل لپاره مفعول ثاني دى نو دا من فضله د هغې نه حال دى. خو فرق صرف دا شو چې حال مقدم شو په ذوالحال باندې او حال مجروره په ذوالحال باندې مقدم کيداى شي، جائز وي. اوس که څوك شبه وکړي چې يا هلکه ان خو موصول حرفي دى او په موصول حرفي باندې صله نه شي مقدم کيداى نو معمول د صلې څنګه مقدم شو چې من فضله بيا مقدم شو؟ نو تاسو وواييء چې يا هلکه عامل په دې کې ان ينفع به خو نه دى، عامل اسئل دى. ذوالحال ان ينفع به دى. عامل ان ينفع نه دى. نو تقديم د معمول د صلې په موصول باندې نه کيږي او دا خو معمول د ان نه دى، ذوالحال کرتې دى. به تعيين د مرجع کوي اى بهذا المختصر کما نفع باصله اصل څوك دى؟ دوه احتمالين ذکر کوي. يا د اصل نه مراد اصل مجازي دى، مفتاح دى. يا د اصل نه مراد اصل حقيقي دى او القسم الثالث منه د مفتاح نه. نو دا اصل حقيقي شو.

قال الماتن انه: شارح تعيين د مرجع کوي، اى الله تعالى، ولى ذلك: شارح تعيين د مشار اليه کوي النفع متصرف د دې نفع دى. اوس مخکې دوه دعوې وي، يو نفس سوال د الله نه کوم او دويمه دعوى دا ده چې د غير الله نه نه کوم. دا دويمه دعوى د مقام نه معلوميده، نفس سوال ولې د الله نه کوم واني؟ څکه دا الله متصرف د دې نفعې دى، نو قانون دا دى چې سوال سرى د مالك نه کوي او که نه د غير مالك نه کوي؟ نو مالك د نفعې الله دى نو سوال د هغه نه څکه کوم، دا دويمه دعوى چې د غير الله نه نه کوم، ولې؟ ويل څکه وهو حسبي څکه الله زما کافي دى. سوال: هلکه د حسبي حمل هو باندې نه صحيح کيږي، څکه حسب خو صرف وصف دى او هو ذات د الله دى، نو حمل نه صحيح کيږي. نو ده جواب وکړو اى محسبي چې حسب مصدر مبني للفاعل سره دى. يا هلکه حسب خو هغه چاته واني چې هغه حساب د دراهم او دنانيرو کوي، نو دا معنى نه صحيح کيږي، جواب يې وکړو چې وکافي چې محسبي په معنى د حساب د دراهم او دنانيرو سره نه دى کافي په معنى سره دى

**ونعم الوكيل** اوس شارح د عَطف یا د عُطف نه وروستو، دواړه صحیح کیږي، که عطفِ شي نو خبر د مبتداء محذوفې به شي چې هذا عطف، خو عطف په معنی د معطوف سره، اوس د شارح غرض دا دی چې یا اعتراض کوي په ماتن باندې او خان له خي، چې ته نعم الوکیل عطف کوي دا عطف نه صحیح کیږي؟ نو جوابونه بهر نه دي. اوس په دې باندې شبه راغله چې شارح خو دا عطف په شرح العقائد کې په خپله کړي دی نو اعتراض په ماتن باندې کول دا خو اعتراض په خان باندې شو، نو تاسو وایئ چې شارح کړي دی په شرح العقائد کې لیکن هلته اعتراض مجاب وو، او قانون دا دی چې اعتراض مجابه کلا اعتراض وي، نو شرح عقائد باندې اعتراض وو لیکن جوابونه ترینه وو. نو دارنگه دې اعتراض کوي په ماتن باندې جوابونه ترینه وو بهر نه، خو ده پرېښي دي، نو گویا که دا اعتراض په خان باندې نه شو. او یا ورته وواپه چې شارح بیان د واقع کوي. په ماتن باندې اعتراض کول مقصد نه دی، نو واني، عطف اما علی جملة **وهو حسبي** یا هلکه نعم الوکیل خو مخصوص بالمدح غواړي هغه چیرته دی نو واني **والمخصوص محذوف** چې هغه محذوف دی. نو تقدیر دا شو چې **ونعم الوکیل هو** واما علی حسبي یا به دا عطف وي په حسبي باندې په حسبي باندې عطف کولو کې دوه احتماله دي: یا عطف دی بې د تاویل نه، نو بیا عطف د جملې راځي په مفرد باندې، او یا به عطف کوي حسبي باندې سره د تاویل نه، چې حسبي په معنی د **یحسبني** سره واخلي، نو بیا عطف د انشاء په خبر باندې راغلو، خکه یحسبني خبر دی، ونعم الوکیل انشاء ده نو سائل سوال وکړو چې مخصوص بالمدح به بیا هم محذوف وي؟ ویل نه نه **وهو نعم الوکیل** چې مخصوص بالمدح همدغه هودی، هو کوم چې **هو حسبي** کې دی، **فالمخصوص هو الضمير المتقدم** یا هلکه مخصوص بالمدح چیرته مخکښې کیداې شي په فعل مدح باندې، نو ده جواب وکړو چې آو، علی ما صرح به صاحب المفتاح وغیره، (به په دې کون د مخصوص بالمدح باندې ضمیر متقدم) ترجمه: **في نحو زيد نعم الرجل** نو د نعم الرجل لپاره زید مخصوص بالمدح دی، او مقدم شوی دی. اوس شبه کوي چې **وعلی کلا التقدیرین قد عطف الانشاء علی الاخبار** خکه نعم الوکیل انشاء ده او هغه معطوف شوه په اخبار باندې، او اخبار هله کیږي چې **حسبي** په معنی د یحسبني سره شي، او که حسبي مفرد بغیر د تاویل نه پاتې کړي نو بیا دا اخبار نه دی هغه خو مفرد دی نو شارح حسبي نه مراد مع تاویل اخستی دی او بلا تاویل نه دی اخیستی. او د قد عطف الانشاء علی الاخبار نه معلومه شوه.

اوس تاسو جوابونه وکړئ بهر نه، یو جواب دا وکړئ چې یا هلکه دا **وهو حسبي** اگر که صورة خبر دی خو معنی دا انشاء دی، خکه دلته کې ماتن اخبار د کفایت الله ته نه کوي بلکه ایجاد د کفایت الله کوي. دا خبر مونږ ته نه راکوي چې ای مولیانو طالبانو تاسو خبر شئ چې الله زما کافي دی بلکه ایجاد د کفایت الله کوي. اخبار ولې نه ورکوي، خکه اخبار کې خو دوه فائدې وي: یا فائدة الخبر او یا لازم د

فائدة الخبر وي. نو فائدة الخبر نشته خكه مونږ او تاسو خبر يو چې الله كافي دى، ماتن هم او مونږ هم، نو فائدة الخبر خو رانغلو او لازم د فائدة الخبر په كې هم نشته، خكه زمونږ او ستاسو علم وو چې ماتن عالم دى په كفايت الله باندې، نو بالضرور دا ايجاد د كفايت الله شو. نو معنى كې دا انشاء شوه نو دا عطف د انشاء په انشاء دى. دويم جواب دا وكړئ چې دلته كې دا ونعم الوكيل خبر د مبتداء محذوفي دى نو تقدير دا شو چې وهو نعم الوكيل نو **هو نعم الوكيل** هم جمله خبريه شوه، غاية ما في الباب خبر يې صرف انشاء شو. يا دريم جواب چې دا عطف د قصه على القصه دى. عطف القصه على القصه ديته وائي چې عطف د يو جملې وكړې چې هغه مسوق لغرض وي په بله جمله باندې چې هغه مسوق لغرض اخر وي قطع لحاظ د انشائيت او اخباريت نه. نو تا عطف د يوې جملې وكړو چې **ونعم الوكيل** دى چې هغه مسوق لغرض ده. چې هغه بنه تعرف د الله دى په بله جمله باندې چې هغه مسوق لغرض ده چې هغه كفايت الله دى. او د انشائيت او اخباريت لحاظ دې نه دې كړى. څلورم يا جواب دا وكړئ چې دا عطف دى په وهو حسبي باندې خو هغه حسبي چې هغه متضمن معنى د يحسبني لره دى، او دغه درې جوابونه كوئ، يا ورته ووايې. پنځم جواب: چې دا يواځې په حسبي باندې عطف دى بغير د تاويل نه. او كه ته وائې چې عطف د جملې په مفرد باندې راغلو؟ نو وائي چې يا هلكه عطف د جملې په مفرد باندې هلته كې ناجائز دى.

چې د جملې لپاره محل من الاعراب نه وي، او د كومې جملې لپاره چې محل من الاعراب وي نو د هغې عطف په مفرد باندې جائز دى. نو دلته كې **ونعم الوكيل** عطف شو په حسبي باندې او حسبي خبر دى د مبتداء چې هو دى نو نعم الوكيل هم خبر د هو شو. خكه معطوف على الخبر څه وي؟ خبر وي. نو دغه ونعم الوكيل په ځاى د مفرد كې واقع شو او قانون دا دى چې يو شى چې واقع شي په محل د غير كې نو هغې لپاره حكم د دغه غير وي. نو دغه جمله گويا كه حكماً مفرد شوه. نو دا عطف د مفرد په مفرد باندې راغى او د جملې په مفرد باندې رانغلې. يعني عطف د مفرد حكمي راغى په مفرد حقيقي باندې او دا جائز دى.

# مقدمة

ماتن وويل: **مقدمة**: د شارح غرض د **رتب المختصر** نه تر اخر الفصاحة پورې څو اغراض دي بيان د اجزاؤ مختصراً كوي. **اولاً**: يعنى تلخيص چې رتب المختصر على مقدمة وثلاثة فنون او دليل د حصر وائي **ثانياً**: په دې قول سره چې لان المذكور فيه او رد كوي په بعضو باندې **ثالثاً**: بقوله وجعل الخاتمة خارجة عن الفن الثالث وهم او وجه د بيان د تنكير د مقدمې او د تعريف د فنون ثلاثه ؤ كوي. **رابعاً**: ولما اخبر كلامه سره، چې مقدمة نكره ذكر شوه او فنون ثلاثه معرفه ولې؟ او بيان د خلاف كوي په تنوين د مقدمة كې. **خامساً**: سره د رد نه په مخالفينو باندې لكه هغې ته يې اشاره وكړه په والخلاف سره، او ورته يې اشاره وكړه په مما لا ينبغي سره. او معنى لغوي د مقدمې بيانوي. **سادساً**: **والمقدمة ماخوذة من مقدمة الجيش** سره او دفع د اعتراض كوي، **سابعاً**: من قدم بمعنى تقدم سره. او تقسيم د مقدمې كوي قسمينو ته چې مقدمة العلم او مقدمة الكتاب دي. **ثامناً**: **يقال مقدمة العلم لما يتوقف عليه الشروع**... او **مقدمة الكتاب لطائفة** سره. او بيان د ما في المقدمة كوي. **تاسعاً**: په دې قول سره چې وهي **ههنا لبيان معنى** الفصاحة والبلاغة وانحصار علم البلاغة في علمي المعاني والبيان. او رد كوي په بعضو خلكو باندې چې هغوی فرق په مقدمة العلم او مقدمة الكتاب كې نه دی كړی په دې قول سره چې والفرق بين مقدمة العلم ومقدمة الكتاب ، رد پرې كوي چا باندې چې فرق خفي دی. **عاشراً**: نو اول وائي (ترجمه ليكم او متن به پريږدم، مرتب) مرتب كړی دی ماتن مختصر لره تلخيص لره په يو مقدمة او فنون ثلاثه ؤ باندې. نو اجزاء د مختصر څلور شو، دويم غرض بيانوي دليل د حصر، وائي څكه چې مذكور په دې مختصر كې يا د مقاصدو نه به وي په دغه فن كې **اولا** يا د قبيلې د مقاصدو نه به نه وي بلكه دوسائلو نه به وي .نو اوس بنكته په اجمال كې مقاصد يې مقدم كړل د شرافت د وجې نه او تفصيل كې يې **اولا** مقدم كړی وی الثاني المقدمة ،د اختصار د وجې نه. **والاول**، دا اول به خالي نه وي چې مقاصدو نه وي، كه چيرته وو غرض د دې نه احتراز د خطاء نه په تادية د معنى مراده كې نو **فهو الفن الاول**، **والا** او كه غرض د دې نه احتراز د خطاء نه په تادية د معنى مراده كې نه وو، نو بيا به خالي نه وي، پس كه وو غرض د دې نه احتراز د تعقيد معنوي نه نو دا فن ثاني شو. او كه نه غرض د تعقيد معنوي نه نه وو بلكه بيان د وجوه محسنه وو نو **فهو الفن الثالث** اوس هغه دريم غرض بيانوي، چې يا هلكه اجزاء د مختصر څلور نه دي پنځه دي، يو خاتمه د تلخيص هم را روانه ده چې خاتمة في السرقات الشعرية نو اجزاء پينځه شو يو په كې خاتمه ده. نو شارح په دې رد كوي، جواب كوي نو وائي وجعل الخاتمة...، او گرځول د خاتمې خارج د فن ثالثه نه او جزء مستقل د كتاب نه گرځول **وهم**، دا وهم دی، دا خاتمه د كتاب جزء نه دی بلكه د فن ثالث جزء دی. اعتراض : اوس يا هلكه ستا لپاره څه دليل دی چې دا جزء

مستقل نه د بلکه جز دی د فن ثالث نه او داخل دی په دې کې، نو واني دليل به مونږه هلته کې ان شاءالله شرحه کې بيانوو چې دا خاتمة جزء د فن ثالث دی او جزء مستقله د کتاب نه نه دی ځکه صاحب البيت ادری بما فيه دی هلته کې شارح نقل کړی دی کلام د ماتن د ايضاح نه چې ماتن هلته کې ايضاح کې ويلي دي په اخر د بحث د محسنات لفظيو او معنيو کې هذا ما تيسر لي باذن الله تعالی جمعه وتحريره من اصول الفن الثالث وبقيت اشياء يذکرها في علم البديع بعض المصنفين. نو في الکتاب يې نه دی ويلی، خو علم البديع نه دا جزء دی، نو دا جزء د کتاب نه شو بلکه د فن ثالث شو

اوس هغه څلورمه خبره کوي چې ولا انجر کلامه او هر کله چې رابنکلی شو کلام د ماتن په اخر د مقدمه کې انحصار د مقصود ته په فنون ثلاثه ؤ کې، نو د فنون ثلاثه ؤ لپاره معهود پيدا شو، نو مناسب ذکر د ددې فنون ثلاثه وو په طريقې د تعريف عهدي، ځکه معهود په مقدمه کې پيدا شو، نو الفن الاول والفن الثاني والثالث معرف باللام ويل صحيح شو اوپه خلاف د مقدمې نه، ځکه د دې نه مخکې چيرته د مقدمې بحث نه دی شوی، يعنې د مقدمې نه مخکې د مقدمې بحث چيرته نه دی شوی چې معهود پيدا شي نو نشته دی مقتضي لپاره د ايراد د مقدمې په لفظ د معرفې سره، ځکه معرفه چې ته مقدمه راوړې نو هغې کې الف لام عهدي خارجي به وي، نو مخکې چيرته د مقدمې تذکره خو نه ده شوې، نو نکرها نو نکره يې کړه مقدمې لره او واني ويل مقدمة او المقدمة يې ونه ويل. اوس هغه پنځمه خبره کوي چې بيان د خلاف دې سره د رد نه، نو واني چې او خلاف په دې کې چې تنوين په دې مقدمه کې لپاره د تعظيم دی او څوک واني د تقليل لپاره دی، نو څوک چې د تعظيم لپاره واني نو هغه فائدې ته نظر کوي، ځکه فائده په مقدمة کې زياته ده، او څوک چې د تقليل لپاره واني نو هغه حجم ته نظر کوي، ځکه حجم د مقدمې وړوکی دی. نو شارح وويل چې معا لا ينبغي چې دا خلاف د هغې قبيلې نه دی چې مناسب نه دی چې واقع شي په مينځ د علماؤ کې، ځکه چې په دې اختلاف باندې څه فائده نه مرتب کيږي، ځکه څوک چې واني تعظيم لپاره ده نو د کثرت د فائدې د وجې نه او چې څوک واني تقليل لپاره ده نو د قلت د حجم د وجې نه

اوس که څوک اعتراض وکړي چې يا هلکه د تعظيم مقابل خو تحقير راځي، او د تقليل مقابل خو تکثير راځي او تا للتعظيم او التقليل ويلی دی؟ نو تاسو وواييئ چې دلته کې کلام د شارح په صنعة الاحتباك باندې بنا دی، صنعة الاحتباك ، يعنې هغه کار د جولا، پخوا به د کپړو دا کارخانې نه وې دا کپړې چې به يې وودلې نو يو مُوګی به جُولا دلته کې ټک وَهُو او بل مُوګی هلته کې، او تارونه، سپنږسی به ئ موګو پورې اوترل .نو بيا د تار هغه ګوچه ، هغه به ئ پکښې لاندې اودله .نو چه دی موګی سره به وه نو اکتفاء به يې پورې موګي باندې کوله او چې هغه ګوچې او غوټه به هغه موګی ته لاړه نو اکتفاء به يې په دې موګي باندې کوله. نو ديته د جُولا کار واني. اوس په اصطلاح دعلم البديع

کې صنعة الاحتباك ديته وائي چې د يو فقرې نه ته يو کلمه حذف کړی او اکتفاء په لاحق باندي وکړي، او د لاحق نه حذف کړی اکتفاء په سابق باندي وکړي، نو دلته کې مخکي للتعظيم والتکثير وو والتکثير يې حذف کړو، ځکه مقابل د تکثير وروستو ذکر وو چې تقليل دی او وروستو په مقابل کې په تقليل کې تحقير حذف وو ځکه چې د هغې مقابل مخکې ذکر وو چې تعظيم دی، نو په هغې اکتفاء اوشوه نو اصل عبارت دا شو چې **ان تنوينها للتعظيم والتکثير او التقليل والتحقير**.

اوس شارح وويل **والمقدمة**، دا هغه بل غرض ذکر کوي، معنى لغوي د مقدمې. وائي مقدمه **ماخوذة من مقدمة الجيش**. که د ماخوذة ترجمه تاسو په مشتقه سره وکړئ نو دا به صحيح کيږي ځکه مقدمه مفرد دی، او مقدمة الجيش مرکب دی، او مفرد د مرکب نه نشي مشتق کيدای، نو د ماخوذة ترجمه وکړي په منقولة سره چې دا مقدمة منقول ده د **مقدمة الجيش** نه، دا هغه مخکې حصې د جيش ته ويلی شي يا هلکه مقدمة الجيش د څه لپاره وضع شوی ده، نواي موضوعة للجماعة المتقدمة منها، وضع کړی شوي ده لپاره د هغه جماعت چې متقدم وي د دې جيش نه. يعني هغه مخکې حصه چې هغه د جيش لپاره د اوبو انتظام او دارنگ د خارود و دانبو انتظام اود وودي او د شپې د ځای انتظام کوي. يو د جيش هغه حصه ده چې هغه اخر کې روانه وي. چې د چا نه سامان پاتې شي يا څوک بيمار شي د هغه د حفاظت لپاره هغې ته خلف الجيش وائي. يوه هغه حصه ده چې هغه ښي طرف د جيش ته روانه وي هغې ته **ميمنة الجيش** وائي، او يو هغه ده چې هغه کيڼ طرف ته روانه وي هغې ته **ميسرة الجيش** وائي. او يو هغه وي چې هغه بالکل په مينځ کې روانه وي هغې ته قلب الجيش وائي. من قدم سره اشاره کوي دفع د اعتراض ته، چې يا هلکه ته مقدمة يا به صيغه د اسم فاعل سره وائي يا په اسم مفعول سره، دواړه نه دي صحيح. که په صيغه د اسم فاعل سره وائي نو بيا معنى دا شوه چې دا مخکې کوونکې ده بل شي لره، ځکه باب تفعيل متعدي راځي. حالانکه دا بل شی نه مخکې کوي بلکه په خپله مخکې ده او که په صيغه د اسم مفعول سره راځي نو بيا معنى دا چې مخکې کړی شوي، نو تقدم جعلي معلوم شو او تقدم رتبي معلوم نه شو. چې جعل کې مخکې کړی شوی او په رتبه کې مخکې وي او که نه وي. نو شارح راغی جواب يې وکړو په اختيار د شق اول سرچې دا مقدمة په صيغه د اسم فاعل سره ده، خو دا باب تفعيل په معنى د باب تفعل سره د. نو دا قدم په معنى د تقدم سره شو. نو مقدمة په معنى د متقدم شوه. او باب تفعل لازمي راځي. معنى خپله مخکې کيدونکې، مخکې کوونکې بل شي لره نه. دا شارح يو جواب وکړو. دويم جواب يا دا وکړئ چې زه داپه صيغه د اسم فاعل ده او باب تفعيل هم په خپله معنى دی خو مطلب دا چې دا مخکې کوونکې ده عالم لره په مسائلو د تصديق باندي په جاهل باندي په بصيرة کې. يا دا مخکې کوونکې ده طالب لره د مسائلو د تصديق په قاعد باندي د طلب نه په بصيرة کې، اويا ووايئ چې دا مقدمة په صيغه د اسم مفعول سره ده. او که ته وائي

تقدم جعلي معلوم شو او تقدم رتبي معلوم نه شو؟ نو تاسو وايئ چي دلته كي تقدم جعلي مستلزم دى، تقدم رتبي لره. خكه ماتن څه ادنى سرى نه وو چي د په جعل كي دا مخكي ذكر كوله نو دا خكه ذكر كوي چي د دې رتبه مخكي وه. خكه چي د يو شي رتبه وروستو وي او مخكي ذكر كولى شي نو دا د جاهل كار دى د عالم كار نه دى. **يقال** سره هغه بل غرض ذكر كوي چي تقسيم د مقدمې د قسمينو ته، چي يو مقدمه د علم ده او بله مقدمه د كتاب ده، نو وائي **يقال الخ اى يطلق: مقدمة العلم لما.** اطلاق كولى شي د مقدمة العلم د هغه شي لپاره چي موقوف وي په دې باندې شروع كول په مسائلو د علم كي. هغه موقوف عليه څه شى دى چي هغه موقوف عليه في مسائله دى؟ هغه تعريف د علم مشروعه او دويم تصديق په موضوع د علم مشروعه به وي او دريم تصديق په غايه د علم مشروع باندې، خو دلته كي توقف يا په معنى د وجې د بصيرت كامله سره دى كه دغه امور ثلاثه تا وپيژندل، نو مسائلو كي شروع كولو سره بصيرت كامله درته حاصليږي او كه نه دا دري واړه څيزونه تا وته پيژندل نو شروع خو په مسائلو كي صحيح ده خو بصيرت كامله نه پيدا كيږي يا ورته ووايه چي دلته كي توقف په معنى د انْ وَجَدَ فَوَجَدَ سره دى، لولا لامتنع سره نه دى. يعني كه چيرته معرفت د دغه امور ثلاثه ؤ راشي نو وَجَدَ الشروع في مسائله او كه معرفت د امور ثلاثه ؤ را نه شي نو بيا هم شروع په مسائلو كي كولى شي خكه چي **ان وجد فوجد** كي موقوف عليه علت ناقص وي. دويم مقدمة الكتاب. مقدمة الكتاب څه ته وائي؟ **لطائفة من كلامه** يعني موضوعة، وضع كرى شوي ده لپاره د يو حصې د كلام د دې كتاب نه داسې حصه **قدمت** چي ذكر كرى شوى وي دغه حصه مخكي د مقصود نه، نو **قدمت** مونږ متضمن كره **ذكرت** لره، نو ذكر د امام وروستو د قدمت نه مستدرك نه شو، او دا حصه د كلام مخكي د مقصود نه ولي ذكر كوي نو شارح وائي د دوو غرضونو لپاره **لارتباط له بها** د وجې د ارتباط د دې مقصود نه د دې طائفي سره، او دويمه **فائده: والانتفاع بها فيه** او د وجې د انتفاع نه په دې طائفي سره په دې مقصود كي. خكه چي دغه مقصود مرتبط وي د دې طائفي سره او نافع وي دغه طائفه په دې مقصود كي. نو مقدمة الكتاب كي توقف رانغلو. اوس هغه بل غرض ذكر كوي چي دلته كي هغه ما في المقدمة څه دى؟ يعني دې مقدمة كي څه دى، او دا مقدمه د كتاب شوه او كه د علم؟ نو شارح تعيين كوي چي دا مقدمه د كتاب ده وهي ههناً لبيان معنى الفصاحة والبلاغة وانحصار علم البلاغة في علمي المعاني والبيان وما يلائم ذلك لكه بديع شو، دارنګه نسبت په فصاحت او بلاغت كي شو بيان د موصوف د بلاغت كوي وغيره. اعتراض: اوس دى وائي چي يا هلكه دا مقدمه د كتاب شوه نو هغې كي ارتباط د مقصود او نفع معتبر نه دى؟ نو دلته دا شته كه نام نو دي وائي چي دلته شته، ولا يخفى وجه ارتباط المقاصد بذلك نو مقاصد فنون ثلثه دي او هغه فنون ثلاثه ؤ كي هم دغه فصاحت او بلاغت بيانيږي. او په علم البديع كي محسنات بديعه بيانيږي نو نافع شو. اوس هغه بل غرض

بیانوي، **والفرق بین مقدمة العلم و مقدمة الکتاب، مما:** دا فرق د هغه قبیلي نه دی خفی علی کثیر من الناس خو دي کي فرق شته دی څنګه فرق؟ خکه دي کي فرق په اعتبار د مفهوم سره هم شته دی او فرق په اعتبار د مصداق سره هم شته دی په مفهوم د دي کي فرق دا دی چي مقدمة العلم کي توقف معتبر دی، ما یحتمل العلم دی، نو احتمالات په علم مدونه کي دري دي، ۱ مسائل کلیه، ۲. تصدیق په مسائلو کلیّو باندي۳ ملکه حاصله د تصدیق نه په مسائلو کلیّو باندي او مقدمة د کتاب ما یحتمل الکتاب دی، او په کتاب کي هم احتمالات ثلثه دی، ۱ الفاظ داله په معانیو مخصصو باندي ۲ معاني مدلوله لپاره د الفاظ خاصو، معاني او مسائل یو شی دی ۳ مجموعه د الفاظو او معانیو، نو علم کي هم دري احتمالونه شول او په کتاب کي هم دري احتمالونه شول، نو دري چي په دري کي ضرب کړي نو نهه احتمالات تري جوړیږي، نو نهه احتمالات شو، اوس په دي نهو وارو احتمالاتو باندي فرق شته دی، په مقدمة الکتاب او مقدمة العلم کي، لکه د مقدمة الکتاب نه الفاظ واخله، نو دري په کي جوړیږي او مقدمة العلم نه مسائل واخله، نو الفاظ او مسائلو کي فرق شته دی، فرق ذاتي دی، اوس د مقدمة الکتاب نه هم هغسي الفاظ واخله او د مقدمة العلم نه تصدیق بالمسائل واخله، نو الفاظ او تصدیق بالمسائل کي فرق ذاتي دی، بیا د مقدمة الکتاب نه الفاظ واخله او مقدمة العلم نه، ملکه حاصله د تصدیق بالمسائل، نو الفاظ او مسائلو کي فرق دی، فرق ذاتي راغلو، دري احتمالات لاړل، اوس مقدمة الکتاب نه معاني واخله، معاني او مسائل یو شی دی کما سبق منه، او مقدمة العلم نه هم معاني او مسائل واخله، نو دي کي اوس فرق اعتباري دی، او فرق ذاتي نه دی، خکه چي دغه معاني او مسائل ته په مرتبه د قیام کي واخلي نو دا مقدمة العلم ده، او چي دغه مسائل په مرتبه د من حیث هي کي واخلي، نو دا مقدمه د کتاب ده، نو په دي احتمال باندي اتحاد ذاتي او فرق اعتباري غونډي راغلو په مصداق کي، اوس د مقدمه د کتاب نه معاني واخله او مقدمة العلم نه تصدیق بالمسائل، نو بیا فرق ذاتي راغی، خکه علم او معلوم شو، اوس مقدمه د کتاب نه معاني واخله او مقدمة العلم نه ملکه حاصله نو بیا فرق ذاتي راغلی، نو شپږ احتمالات لاړه، اوس مقدمه د کتاب نه واخله مجموعة الفاظو او معاني او مقدمة العلم نه صرف معاني، نو مغایرت راغلی د کل او د جزء، او کل او جزء کي مغایرة بالذات وي، او مقدمة الکتاب نه واخله مجموعه او مقدمة العلم نه تصدیق بالمسائل، نو بیا فرق ذاتي دی. د علم او د معلوم، اوس د مقدمة الکتاب نه واخله مجموعه او مقدمة العلم نه واخله ملکه حاصله نو فرق ذاتي دی، نو به هر حال په دي کي مقدمة العلم والکتاب کي فرق راغلی مفهوم سره هم او په اعتبار د مصداق سره هم. خو په مصداق کي په یو احتمال کي فرق اعتباري راغلو فرق ذاتي په کي نشته او په باقي اتو وارو احتمالاتو باندي فرق ذاتي دی.

**قال للاتن الفصاحة:** شارح ورسره لګوي، هي في الاصل، د دي نه غرض د شارح معنی لغوي بیانوي نو

وبي ويل چې دغه فصاحت په لغت کې تنبئ عن الابانة والظهور دا تنبئ يې ولې زيات کړو، او داسې يې ولې نه ويل چې الفصاحة في اللغة عبارة عن الابانة والظهور؟ نو تاسو وايئ چې تنبئ کې اشاره ده دينه چې د فصاحت ديرې معاني دي: فصاحت نزع الرغوة تـه هم وائي، د يو شي نه پردې لرې کولو تـه. او فصاحت ذهاب اللبان من اللبن ته هم وائي، دپيو نه پيروی لرې کول، او فصاحت انطلاق اللسان تـه هم وائي، او فصاحت ظهور د ضوء د صبح ته هم وائي، اوس شارح اشاره وکړه ديته چې ما تـه پته نشته دي چې فصاحت په دې ټولو معانيو کې حقيقت دی او که نه ټولو کې مجاز دی او که نه بعضو کې حقيقت او بعضو کې مجاز دی. خو دا ټولې معنی خبر ورکوي د ابانة او د ظهور نه. اوس دا والظهور عطف تفسير شو د دې ابانة لپاره. نو معترض شبه وکړه چې د عطف تفسير نه خو څه غرض وي، نو غرض څه دی ولې عطف تفسير کوي، تاسو وواياست چې عطف تفسير د دې لپاره وشو چې په دې کې يې اشاره وکړه چې دا فصاحت لازمي هم راځي او متعدي هم راځي، نو الابانة کې تعديت ته اشاره وشوه او ظهور کې لازميت ته اشاره وشوه. نو اوس بيا شبه راغله چې يا هلکه نو بيا دا عطف تفسير څنګه جوړ شو؟ ځکه د فعل لازمي او د فعل متعدي مصداق خو يو نه وي او د مفسر او معنی مصداق خو يو وي، نو دا عطف تفسير خو بيا نه جوړيږي. نو تاسو جواب وکړئ چې دا الظهور چې عطف تفسير د ابانت لپاره کوو نو بالذات يې عطف تفسير نه کوو بلکه ابانة په بمعنی البيان واخلو نو بيا والظهور سره تفسير کوو، لکه ناکت چې ليکلي دي. نو دا عطف تفسير بالذات د ابانت لپاره نه شو، بلکه بمعنی البيان لپاره عطف تفسير شو، او بيان لازمي دی. او اصطلاح کې فصاحت درې قسمه دی. يوصف بها المفرد مثال بنا يې مثل كلمة فصيحة والكلام مثل كلام فصيح دا په کلام نثري کې وقصيدة فصيحة، دا په کلام نظمي کې نو دا دوه مثالونه يې وښودل، قيل د قيل نه بعد د شارح څلور غرضونه دي: ١اعتراض وارديږي په ماتن باندې ٢ او دويم نقل د جواب د بعضو کوي د ماتن د طرف نه، ثانياً، ٣ او رد کوي شارح په دې جواب د بعضو باندې ثالثاً وفيه نظر سره، او جواب کماحقه کوي د اصل اعتراض نه رابعاً على ان الحق سره نو څلور اغراض شو، وورود الاعتراض اولاً على المصنف ونقل جواب بعض الشارحين عن هذا الاعتراض ثانياً، والرد على هذا الجواب ثالثاً بقوله وفيه نظر والجواب عن اصل الاعتراض رابعاً بقوله على ان الحق اوس دا درې وروستی خبرې په کتاب کې دی (شرحه کې) او اعتراض په مصنف باندې هغه د بهر نه دی. اوس اعتراض په مصنف باندې بهر نه داسې وارد شو چې يا هلکه حصر د فصاحت په اقسام ثلاثو کې نه صحيح کيږي، مفرد او کلام او متکلم کې ځکه چې کله کله موصوف د فصاحت مرکب ناقص واقع کيږي، چې هغه مرکب اضافي او توصيفي دی، لکه ويلی کيږي چې مرکب فصيح او هغه مرکب اضافي او توصيفي خو په مفرد کې داخل نه دی، ځکه مفرد ديته وائي چې جزء د لفظ دلالت په جزء د معنی باندې نه کوي، هغه مرکب

اضافي اوتوصيفي خو دلالت كوي، او دغه مركب توصيفي او اضافي خو په كلام كې هم داخل نه دي، خكه په كلام كې خو اسناد وي، **الكلام ما تضمن كلمتين بالاسناد** نو په مركب اضافي او توصيفي كې خو اسناد نشته دى، نو حصر د فصاحت په اعتبار د موصوف سره په اقسام ثلاثو كې صحيح نه شو. خكه چې موصوف د فصاحت مركب ناقص هم واقع كيږي، او حالانكه هغه نه په مفرد كې داخل دى او نه په كلام كې داخل دى، او په متكلم كې خو نه دى نه دي، نو حصر د فصاحت په اعتبار د موصوف سره اقسام ثلاثه ؤ كې صحيح نه شو، بلكه قسم رابع هم راغلو چې مركب اضافي او توصيفي دى. نو اوس خلخالي د دې اعتراض نه جواب وكړو چې يا هلكه دغه مركب اضافي او توصيفي په كلام كې داخل دي، خكه مراد د كلام نه زمونږ **ما ليس بكلمة** دى، اوما ليس بكلمة عام دى نو دا مركب ناقصه ته هم شامل دى، او مركب تامه كلام ته هم شامل دى، نو **قيل المراد بالكلام ما ليس بكلمة**، او دا خكه مراد شو، **ليعم المركب الاسنادي وغيره**، چې مركب ناقصه دى، معترض شبه وكړه چې ته دا مركب ناقص ولې شاملوې جائز ده چې مركب ناقص موصوف د فصاحت دې نه واقع كيږي كنه، نو چې موصوف واقع نه شو نو شمول ته حاجت رانغلى، نو **فانه** سره قيل والادليل وائي چې مركب ناقص موصوف د فصاحت واقع كيداى شي، نو چې واقع شو نو تعميم ته حاجت راغلى، نو وائي: **فانه قد يكون بيت من القصيدة غير مشتمل على اسناد يصح السكوت عليه يعني** مركب توصيفي ناقصه يا اضافي وي، **مع انه يتصف بالفصاحة** نو چې مركب ناقص موصوف واقع كيږي نو تعميم ته حاجت راغلو، چې هغه هم داخل شي اوس شارح راخي په دې جواب د قيل باندې شبه كوي چې **وفيه نظر** په دې ما قال د قيل كې اعتراض دى. اعتراض د ده په اصل مدعى كې هم شته دى او په دليل كې هم شته دى، فانه كې چې دا د ده دليل وو، او مدعى دا ده چې كلام نه مراد ما ليس بكلمة دى، اوس په مدعى كې داسې نظر دى چې دا خو هله صحيح كيږي، چې د عربو نه چيرته نقل شوي وي، اطلاق د كلام په دغه مركب ناقصه باندې، او د عربو نه دا چيرته نه دى نقل شوى هغوى د كلام اطلاق چيرته په مركب ناقص ندى كړى ولانه انما يصح ذلك واما قال وقيل ومركب ناقصه دى په كلام كښې، **كله لو اطلقوا على مثل هذا المركب انه كلام فصيح نو لو اطلقوا** على مثل هذا المركب انه كلام فصيح دا مقدم د قياس شو او يصح دا تالي د قياس شو، نو تحرير د قياس داسې شو لو اطلقوا على مثل هذا المركب انه كلام فصيح يصح ذلك لكن التالي باطل فالمقدم مثله، اوس تالي ولې باطل دى دليل د بطلان التالي دا دى چې **ولم ينقل عنهم ذلك** او دليل د ملازمې دا دى چې په اطلاق د الفاظو كې احتياج عربو ته دى. اوس د **فتصافه** سره د ده په دليل باندې رد كوي، چې كه ته وائي چې د مركب ناقصه توصيف په فصاحت سره كيږي نو هلكه هلته كې فصاحت، ذات د مركب ناقصه فصيح نه دى، فصاحت په اعتبار د مفرداتو سره دې وي كنه، نو دليل بې هم خراب شو، نو وائي: **واتصافه** اى اتصاف د دې مركب ناقص په بالفصاحة يجوز ان يكون باعتبار

فصاحة المفردات، على ان الحق: نو اوس گوره دا **على** په مختصر المعاني کې دیر راځي، یعني کله د دې متعلق محذوف وی کله مبتداء وغیره وی چې دا په اعتبار د متعلق سره کله خبر جوړیږي نو دلته کې دا ووایه چې دا على جار سره د مجرور نه په اعتبار د متعلق سره خبر دی او د دې مبتداء محذوف ده، نو تقدیر دا شو چې **التحقيق ثابت على** نو معنی دا شوه چې دا مخکښینی خبره غیر تحقیق وو، او تحقیقي جواب دا دی، یا دا **على** په معنی د **لکن** استدراکیه سره دی نو مخکې نه توهم راغلو چې یا هلکه اتصاف د مرکب ناقصه په اعتبار د فصاحت د مفرداتو سره، دا خبره به صحیح وي؟ نو شارح دفع وکړه چې نه، **لكن ان الحق** چې حق دا دی چې دا مرکب ناقص په مفرد کې داخل دی، نو على په معنی د لکن استدراکیه سره شو. دریم دا چې على یا په معنی د مع سره کوئ چې **مع ان الحق** نو معنی دا شوه په دې وارو احتمالونو باندې چې مخکښی خبره غیر تحقیقي ده او تحقیقي خبره دا راتلونکې خبره ده. نو مخکښی خبره دا وه چې اتصاف د مرکب ناقصه په فصاحت سره په اعتبار د فصاحت د مفرداتو سره دی، دا تحقیقي نه شوه بلکه تحقیقي دا ده چې د مرکب ناقصه اتصاف په فصاحت سره بذاته کیږي او دا په مفرد کې داخل دی، نو وائي: **على ان الحق انه دا مرکب داخل في المفرد** اوس مفرد کې څنګه داخل دی مفرد خو دیته وائي چې جزء د لفظ دلالت په جزء د معنی باندې نه کوي، او مرکب خو دیته وائي چې جزء د لفظ دلالت په جزء د معنی باندې کوي نو دا خو نه شي داخلیدی، نو وائي مفرد خو یواځې د یو شي مقابله کې نه راځي، مفرد خو دیرو معانیو سره راځي، نو وائي، **لانه** یعني دا مفرد **يقال على ما يقابل المركب** نو دا مفرد څه ته وايي؟ چې جزء د لفظ دلالت په جزء د معنی باندې نه کوي، او مرکب دیته وائي چې کوي **وعلى ما يقابل المثنى والمجموع** او مفرد مقابل د تثنیې او د جمعې هم راځي، نو دا مفرد په معنی د واحد سره شو. نو معنی دا چې یو دې دوه نه دې درې نه دې. **وعلى ما يقابل الكلام** نو کوم مفرد چې مقابل د کلام دی، نو دا هغه ته وائي چې هغه مشتمل په اسناد باندې نه وي. نو دلته کې د مفرد نه دا اخر شو چې مقابل د کلام دي، او کوم مفرد چې مقابل د کلام دی نو هغه مرکب ناقصه ته هم شامل دی، څکه مرکب ناقصه هم مشتمل په اسناد باندې نه دی، شبه دې وائي چې قرینه څه ده چې دلته کې مفرد مقابل د کلام اخلې او د مرکب او د مثنی و مجموعه نه اخلې؟ نو وائي قرینه شته چې **ومقابلته بالكلام ههنا قرينة على انه اريد به المعنى الاخير اعني ما ليس بكلام** دا اعني ما ليس بكلام يې ولې ووییل، دا څکه چې دا معنی ثاني هم اخیر دی په نسبت سره اول ته، نو ده جواب وکړو چې د اخیر نه مراد اخیر حقیقي دی چې هغه دریم دی، نو وائي څکه وویل. که اخیر اضافي شي نو ثاني هم اخیر دی بالنسبة الى الاول نو شبه دې څوک ونه کړي چې اخیر خو موږ ته معلوم وو نو تفسیر یې څه ته وکړو؟... **ويوصف بها المتكلم ايضا يقال كاتب فصيح**، دا مثال په ناثر کې شو او **شاعر فصيح** په نظم کې شو. او دلته کې کاتب نه مراد ذات من له الکتابة نه دی، کاتب نه مراد من یولف الکلام المنثور دی، او د

شاعرنه ذات من له الشعر نه دى، بلكه شاعر نه مراد من يولف الكلام المنظوم دي نو دا دواړه متكلم شو او كه ذات من له الكتابة يا ذات من له الشعر شي نو هغه متكلم نه دى نو دا تقسيم وشو په فصاحت كې په اعتبار د موصوف سره، ذات د فصاحة دري قسمه نه دى خكه هغه خو معنى مصدري انتزاعي بسيط دى، نو تقسيم وشو په اعتبار د موصوف سره.

قال الثالث والبلاغة وهي: سره غرض د شارح يو معنى لغوي د بلاغت بيانوي، او دويم غرض دا دى چې بلاغت په معنى د نهايت سره هم راځي، او نهايت لازمي دى او بلاغت په معنى د بلوغ الرجل الى حد التكليف باندې هم راځي، خو دې تولو معانيو كې وې وائي ما ته پته نشته دى چې بلاغت په كې حقيقت دى او كه نه تولو كې مجاز دى او كه نه په بعضو كې حقيقت دى او په بعضو كې مجاز دى؟ خو دا تولې معاني مبني عن الاصول والانتهاء دي او په اصطلاح د علم معاني كې بلاغت منقسم دى قسمينو ته په اعتبار د موصوف سره، يوصف بها الاخيران فقط د اخيرانو تعيين مصداقي كوي ای الكلام والمتكلم دون المفرد كې پې اشاره وكړه د فقط معنى ته چې د فقط معنى څه ده؟ يعنې دون المفرد، مفرد موصوف د بلاغت نه شي واقع كيداى. لا سره غرض د شارح دا دى چې دليل د متن لپاره وائي، متن كې دوه دعوې شوې، يو ايجابي چې بلاغة سره موصوف كيږي اخيران، او يو دعوى سلبيه دون المفرد يعنې د بلاغت موصوف مفرد نه شي واقع كيداى، لانه لم يسمع سره دليل د دعوى سلبي دى، وائي چې مفرد ولې نه موصوف كيږي؟ خكه لانه لم يسمع كلمة بليغة سمع نه ده شوې، او پاتې شو د دعوى اول دليل، هغه شارح پرينبې ده د ظهور د وجې نه چې په دې باندې كلام او متكلم موصوف كيږي ولې؟ لا يسمع كلام بليغ والقصيدة بليغة والمتكلم بليغ، دا ئې پرينبې ده، والتعليل نه غرض د شارح دا دى چې د دې فقط لپاره بعضې خلكو دليل ويلى دى، شارح هغه دليل نقلي كوي اولاً او بيا پرې رد كوي ثانياً په وهم سره، چې دا چې چا ويلي نو دا وهم دى. او ما چې كوم دليل اووې چې لانه لم يسمع دى دا نبه دليل دى. دويم غرض د شارح دفع د اعتراض كوي د خان نه چې يا هلكه تا دليل د مفرد لپاره دا وويل چې لانه لم يسمع كلمة بليغة او خلكو دا ويلي چې مفرد موصوف د بلاغت نه واقع كيږي خكه چې بلاغت په اعتبار د مطابقت سره وى د مقتضى الحال سره، او مطابقت په مفرد كې نه شي راتللى، نو هغه دليل تا ولې ونه ويل چې تا دا دليل وويل چې لانه لم يسمع نو شارح جواب وكړو چې هغه دليل وهم وو او زما دليل صحيح دى. نو خكه ما دا وويل يعنې هغه دليل مقتضى د قوة واهمه وو او زما دليل مقتضى د قوة عاقله دى، نو زما هغه دليل نبه شو نو خكه ما د هغې نه عدول وكړو، نو وهمي دليل مردود وي، نو خكه وائي: والتعليل، او دليل بيانوول او ذكر كول د دې لپاره چې د بلاغت موصوف مفرد نه واقع كيږي، چې بلاغت متحقق كيږي په اعتبار د مطابقت ذكر كول د مقتضى الحال سره، او مطابقت د مقتضى الحال سره نه مستحق كيږي په مفرد كې، نو دا هم دى، اوس دا د وهم لپاره دليل

وائي شارح **لان ذلك** وائي خكه چي دي معلل باندي خلط راغلى دى، وائي چي مطابقت د مقتضى الحال سره دا خو په بلاغت المتكلم والكلام كې راځي، او مفرد دې موصوف شي د بلاغت په بله يو معنى سره، دليل تام شو؟ دى وايي دا خو خاص دى خو په بلاغة الكلام او متكلم كې خاص دى. او مفرد كې معنى اخر دې وي كنه، يعني دا خو په كلام او متكلم كې وي كنه.

**وانما قسم كلا من الفصاحة والبلاغة** دې سره شارح دفع د اعتراض كوي، چي يا هلكه تا ابتداء تقسيم د فصاحت وكړو په اعتبار د موصوف سره اقسام ثلاثه وو ته، دا رنګه بلاغت تا په اعتبار د موصوف سره تقسيم كړلو قسمينو ته، او قانون دا دى چي اول د مقسم تعريف كيږي او بيا تقسيم كيږي، نو اول د فصاحت تعريف كول په كار وو. او بيا تقسيم كول په كار وو، او اول د بلاغت تعريف كول په كار وو بيا تقسيم كول په كار وو، نو تا خو هغه ونه كړل، نو اول شبهې ته اشاره كوي چي **انما قسم كلاً من الفصاحة والبلاغة** نو كه څوك شبه وكړي چي تقسيم خو يي نه دى كړى، صرف د موصوف د فصاحت تعيين يي كړى دى، او دا رنګه د بلاغت د موصوف، جواب: تاسو وايئ چي د بلاغت د موصوف چي تعيين وشو نو دا ضمناً تقسيم شو. فصاحت په اعتبار د موصوف سره درې قسمه شو، نو خكه ناكت ورسره ويلي دي چي ضمناً لاصراحةً، صراحةً خو يي موصوف د فصاحت او بلاغت بنودلي دى، تقسيم يي نه دى كړى، خو دا ښودل د موصوف د فصاحت او بلاغت دا ضمناً تقسيم دى، نو دا د قانون نه خلاف دى اول تعريف كول په كار دى او بيا تقسيم كول په كار دى. **دا التعذر جمع المعاني المختلفة** دا جواب دى، چي د وجې د تعذر د جمع كولو د معانيو مختلفو غير مشتركو نه په يو مفهوم كې، داسې مفهوم چي **يجمعها** شامل وي دې معانيو مختلفو غير مشتركه و ته، د دې په تعذر كې څه شك نشته، خكه داسې يو تعريف نشته چي انسان او فرس دواړو ته شامل شي، او مفهوم غواړي اشتراك په اشتراك معنوي سره، هغه دوى كې نشته، نو تعريف ممكن نه شو، نو ما تقسيم وكړو بيا د هر يو قسم ما خان ته تعريف وكړو. معترض راغلو شبه يي وكړه چي يا هلكه د دې لپاره څيرته نظير شته دى؟ جواب: ويل هو، نظير شته دى، زه په دې كې متفرد نه يم **كما قسم ابن الحاجب** لكه تقسيم كړي دې ابن حاجب مستثنى متصل او منقطع ته، هلته كې **للستثنى منقطع او منفصل** يي ويلى دى، بيا د هر يوې تعريف يي كړى دى، جدا جدا، نو دا زما لپاره يو لوى دليل شو نظير شو خكه د مستثنى لپاره يو مفهوم په اشتراك معنوي سره نه وو، نو تعريف هم ممكن نه وو، نو اول يي تقسيم وكړو او بيا يي تعريف وكړو.

ماتن وويل: **فالفصاحة في المفرد**، نو دا فاء فصيحيه شوه، د دې شرط محذوف دى چي **اذا عرفت الاقسام الثلثة فالفصاحة في المفرد كذا وفي المتكلم كذا** شارح ورسره لګي چي **قدم الفصاحة على البلاغة** دې كې شارح اشاره وكړه اعتراض ته چي يا هلكه ماتن فصاحت مقدم كړو په بلاغت باندي او وجه د تقديم نه وه، نو ترجيح بلا مرجع لازم شوه بلكه ترجيح د مرجوح لازم شوه خكه كل بليغ فصيح ولاعكس دى، نو

بلاغت مخكي كول په كار وو، خكه چي بلاغت موقوف عليه د فصاحت دى او فصاحت موقوف عليه د بلاغت نه دى، نو بليغ خاص شو او فصيح عام شو، بلاغت خاص شو او فصاحت عام شو او خاص مقدم وي په عام باندي. شارح جواب وكړو لتوقف معرفة البلاغة على معرفة الفصاحة، ويل خكه يي فصاحت مقدم كړو بلاغت باندي چي معرفه د بلاغت موقوف دى په معرفه د فصاحت باندي، تتمه د جواب شارح نه ده كړي، تتمه د بهر نه وكړئ، خكه دا د شارح جواب پوره جواب نه جوړيږي، داسي چي بلاغت موقوف شو او فصاحت موقوف عليه شو، نو موقوف عليه مقدم وي په موقوف باندي، نو فصاحت يي مقدم كړو په بلاغت باندي، اى فكانت الفصاحة موقوفاً عليها والبلاغة موقوفاً و الموقوف عليه مقدم على الموقوف فقدم الفصاحة على البلاغة، نو تتمه وشوه، اوس دا مقدم په كي نظري وو چي معرفت د بلاغت موقوف دى تر معرفت د فصاحت پوري نو شارح د دي لپاره دليل وائي چي لكونها اى الفصاحة ماخوذة ملحوظ كړي شوى في تعريفها اى البلاغة، خكه چي فصاحت ماخوذ دى په تعريف د بلاغت كي، او قانون دا دى چي ماخوذ موقوف عليه وي د ماخوذ فيها لپاره نو فصاحت موقوف عليه شو د بلاغت لپاره.

اوس فصاحت په بلاغت الكلام كي څنګه ماخوذ دى؟ داسي، بلاغة الكلام څه ته وائي؟ مطابقة الكلام لمقتضي الحال مع فصاحته، نو فصاحة ماخوذ شو په تعريف د بلاغت كي او فصاحت ماخوذ په بلاغة المتكلم كي څنګه دى؟ بلاغة المتكلم ديته وائي چي: ملكة يقتدر بها على تاليف كلام بليغ نو په بلاغة المتكلم موقوف شو بلاغة الكلام پوري، او بلاغة الكلام كي خو فصاحت ماخوذ وو، نو بلاغة المتكلم كي هم ماخوذ شو بالواسطة، خكه شئ ماخوذ په ماخوذ د شئ كي ماخوذ په دغه شئ كي وي. فصاحت ماخوذ شو په بلاغة الكلام كي او بلاغة الكلام ماخوذ وو په بلاغة المتكلم كي، نو فصاحت ماخوذ شو په بلاغة المتكلم كي، خكه ماخوذ د ماخوذ د شئ ماخوذ د دغه شئ وي.

ثم سره شارح بلي شبهي ته اشاره كوي چي ثم قدم الماتن فصاحة المفرد على فصاحة الكلام والمتكلم او لپاره وجه نه وه نو ترجيح بلا مرجح لازم شوه، دا يو شبه: بلكه ترجيح المرجوح لازم شوه، خكه المفرد كي افاده او استفاده نشته دى، او په فصاحت الكلام او متكلم كي افاده او استفاده جواب وكړو لتوقفهما عليها، د وجي د توقف د دي فصاحة الكلام والمتكلم نه په دي فصاحة المفرد يي مقدم كړلو په فصاحت الكلام والمتكلم باندي، اوس دا فصاحة الكلام والمتكلم په فصاحة المفرد موقوف دى داسي خكه فصاحة الكلام وائي: خلوصه من ضعف التاليف وتنافر الكلمات والتعقيد مع فصاحتها نو فصاحت د كلماتو ماخوذ شو په فصاحت الكلام كي نو فصاحت الكلام موقوف شو په فصاحة المفرد باندي او فصاحة المتكلم، خكه هغه وائي: ملكة يقتدر بها على التعبير عن المقصود بلفظ فصيح نو لفظ فصيح مفرد او مركب دواړو ته شامل دى،

نو دوارو كي يعنى **فصاحة الكلام والمتكلم** كښې توقف بالذات راغلو
فصاحت المفرد دېته وائي **خلوصه** تعيين د مرجع كوي، خلوص المفرد خالي كيدل د مفرد دى، **من تنافر الحروف والغرابة ومخالفة القياس** (متن دومره دى اللغوي شرح ده) متوهم توهم وكړو چي هلكه د قياس نه مراد به قياس منطقي وي چي هو مؤلف من قضايا يستلزم لذاته قولاً اخر، نو د هغې نه خو دلته كې بحث نه كيږي، يا به قياس فقهي مراد وي، نو د قياس فقهي اصولي نه هم دلته كې بحث نه كيږي، نو ده جواب وكړو **اللغوي** چي د قياس نه مراد قياس لغوي دى، شارح چي ورسره دا لګوي چي **اى المستنبط من استقراء اللغة** دى كې يې يو اشاره وكړه مناسبت ته په مينځ د منسوب او منسوب اليه كې چي اللغوي كي ياء نسبتيه ده، يعني هغه قياس چي منسوب دى لغت ته، نو قياس منسوب شو او لغت منسوب اليه شو نو منسوب او منسوب اليه كې مناسبت په كار دى، نو ده وويل دې كې مناسبت دمستنبط او د مستنبط عنه دى، دغه قانون او قياس مستنبط دى د لغت د صرف نه، اللغة نه مراد صرفي قانون دى، دا علاقه شوه، نو دا د قبيلې دنسبت د مستنبط نه شو مستنبط منه ته، دويم غرض د شارح دفع د اعتراض كوي، اعتراض دا وارد شو چي يا هلكه د قياس خو نسبت قائس ته كيږي او تا دلته كې لغوي ته وكړو، خكه قياس صفت د قائس دى، نو دا نسبت لغوي ته خطاء شو نو دې راغلو جواب يې وكړو چي دا نسبت د وجې د ادنى ملابست نه دى، صدوراً نسبت د قياس كيږي قائس ته ليكن استنباطاً نسبت لغت ته كيږي. نو دلته نسبت په اعتبار د استنباط سره دى.
**وتفسير الفصاحة:** شارح شبه كوي خان له خي، وائي: **وتفسير الفصاحة بالخلوص لا يخلو عن تسامح يعني** تفسير د فصاحة بالخلوص كوم چي ماتن وكړو دا خالي نه دى د مجاز نه، تسامح چشم پوشي ته وائي په لغت كي او اصطلاح كي مجاز ته وائي. او تسامح او مجاز كي فرق دا دى، چي مجاز ويلى شي استعمال د لفظ په غير موضوع له كي لقرينة او تسامح ويلى شي استعمال د لفظ په غير موضوع له كې لالقرينة، قرينې ته حاجت نه وي بلكه د شهرت د وجې نه.
اوس دې تسامح په دوو طريقو سره بيان نورو شروحو كړى دى. يو طريقه دا ده چي فصاحة د دوى په نزد باندې كون الكلمة جارية على القوانين المستنبطة من استقراء كلام العرب دى. يعني د دې **كون** نه عبارة دى او **كون** صفت وجودي دى، او تا تفسير د هغه كون په خلوص سره وكړو نو دا خو تفسير بالمبائن شو، خكه كون صفت وجودي دى او خلوص صفت عدمي دى، او وجود او عدم كي مبائنت دى.
دويمه طريقه د تسامح: چي يا هلكه فصاحة المفرد دا صفت وجودي دى او **خلوص** عدم ته وائي، سلب ته، نو لازم شو تفسير د وجودي په عدمي سره او دا ناروا دى نو شارح جواب نه دى كړى، جواب تاسو بهر نه وكړئ: اول نه دا جواب وكړئ چي يا هلكه دا خلوص د دې **كون** سره لازم دى. خكه چي **كون الكلمة جارية على... الخ** دې سره لازم دغه خلوص دى. خكه دغه كون الكلمة جارية... دا هله كيږي چي

خلوص د دې درې ځيزونو نه راغلي وي، نو دا تفسير باللازم شو او تفسير باللازم ته څوك تفسير بالمباين نه وائي او دا تفسير باللازم يې ځكه وكړو للاختصار والتسهيل، ځكه دغه كون ډير اوږد وو. نو چې په خلوص سره يې وكړو نو دې كې اختصار هم راغي او اساني هم راغله او دا لازم هم وو د هغه كون سره او تفسير بالازم جائز دى. اختصاراً وتسهيلاً للامر دويم نه جواب دا وكړئ چې ګوره تفسير د وجودي په عدمي سره هله ناروا دى چې دغه وجودي رافع لپاره د دغه عدمي وي عدمي رافع لپاره د دغه وجودي وى، او دلته كې دغه خلوص عدمي ملائم دى، د دې وجودي سره رافع نه دى

اوس مخلات د فصاحت المفرد درې شو، نو په دې دريو كې د حصر لپاره وجه دا ده چې په مفرد كې درې ځيزونه دي: ١ وضع، ٢ دلالت ٣ استعمال دى، نو كه وضع كې قصور راشي نو هغې ته تنافر الحروف وائي او چې دلالت كې قصور راشي نو هغې ته غرابت وائي او چې په استعمال كې هينت كې يې راشي نو هغه ته مخالفة القياس وائي. نو په مفرد كې درې ځيزونه وو نو مخلات هم درې شو، اوس د هر يو مخل تفسير كوي ماتن، نو وائي **فالتنافر**.

اوس هر كله چې مخلات دفصاحت درې شو نو ماتن د هر يو تشريح كوي نو وائي **فالتنافر** اوس د تنافر تعريف ماتن نه وو كړى يا د اختصار د وجې نه او يا يې اكتفابالمثال كړي وه نو شارح د تنافر الحروف تعريف كوي نو وائي: **وصف في الكلمة** توجب ثقلها على اللسان، شبه هلكه ثقل خو دروندوالي ته وائي چې دا بار دروند دى او دا بار سپك دى او دروند والى او سپك والى خو په اجسامو كې راځي دلته كې دا تنافر خو څه جسم نه دى؟ نو جواب يې وكړو چې **وعسر النطق بها** يا هلكه ثقل دلته په معنى د دروندوالي سره نه دې ثقل په معنى د ګران والي سره دې، چې تلفظ كول پرې ګران وي **نحو** شارح ورسره **مستشزرات** كېښوده لپاره ددفع د اعتراض، چې يا هلكه قانون دا دى چې مضاف اليه د نحو او د مثل مقصود بالمثال وي او دلته خو تول شعر مقصود بالمثال نه دى؟ او حالانكه تا خو نحو مضاف كړى دې تول شعر ته نو شارح جواب وكړو چې د نحو مضاف اليه محذوف دى چې هغه **مستشزرات** دى **في قول امرء القيس** كې يې قائل ته اشاره وكړه چې امرء القيس دى. دويم دفع د اعتراض يې وكړه چې بنه د نحو مضاف اليه محذوف شو چې مستشزرات دى نو تول شعر بيا تركيب كې څه واقع شو؟ نو شارح جواب وكړو چې تول شعر مقوله د قول محذوفه دى چې **قول امرء القيس** او قول د امرء القيس څه دى؟ شعر نو تول مقوله د قول محذوفه شوه وائي: **غدائره** شارح تفسير وكړو په اى ذوائبه سره، دې كې يو بې اشاره وكړه تفسير دغير مشهور ته په مشهور سره ځكه ذوائب مشهور وو او غدائر غير مشهور وو. او بل اشاره يې وكړه ديته چې غدائر او ذوائب او دارنګې وروستو را روان دى چې عقاص دا تول يو شى دى يعنې دلته كې، اګر كه د لغت په اعتبار سره په كې فرق شته دى.

جمع سره تحقيق صيغې كوي په غدائر كې چې دا جمع دې كه مفرد او چې جمع شو نو جمع د غدير دې

او كه دغديرة دي، نو شارح جواب وكړو چې دا جمع دې مفرد نه دې او چې جمع شو نو د غدير نه دي بلكه د غديرة دي. شبه يا هلكه دې غدائرة كې دا ضمير چاته راجع دى، كه مرجع وي نو كوم ده او كه نه وي نو بيا اضمار قبل الذكر راغلى اودا جائز نه دي؟ نو ده جواب وكړو چې والضمير عائد الى الفرع، وينبتو ته چې هغه مخكې شعر كې دي چې فرع يزين المتن اسود فاحم چې وينبته د محبوب ښايسته كوي شا لره چې تک تور دى، مستشزرات كې شارح دوه احتمالين بيانوي، چې دا مستشزرات صيغه د اسم فاعل ده اى مرتفعات پورته كيدونكي او دويم احتمال او مرفوعات پورته كړى شوى، يقال سره غرض د شارح دا دى چې مستشزرات كې چې كوم دوه احتمالين چې مرتفعات يا مرفوعات دي دا اصالةً و ابتداء دي او كه بناء دي؟ نو شارح يقال سره جواب وكړو چې دا بناء دي. يعني كه دا باب لازمي شي نو بيا دا مستشزرات په معنى د اسم فاعل سره دى، ځكه دوى نه مفعول نه راځي. او كه دا باب متعدي شي نو بيا دا په معنى د اسم مفعول سره دى. نو دا دواړه احتمالين بنائي شو اصالتي نشو، نو واني يقال استشزره اى رفعه، نو متعدي شو ضمير مفعول ته راجع شو. او استشزر اي ارتفع نو لازمي نشو. نو لف نشر غير مرتب سره ولګيدو چې استشزر لازمي شو نو په اسم فاعل سره شو او استشزر په معنى د رفعه سره نو متعدي شو، نو بيا مفعول سره شو، نو معنى يئاء على اسم الفاعل پورته كيدونكي دي كمځئ د دي يا پورته كړى شوي وي الى العلى سائل تپوس وكړو چې ياهلكه دويمه مصرع كوم ده؟ شارح وويل چې دغه ده چې: تضل العقاص في مثنى ومرسل، معترض اعتراض وكړو چې يا هلكه تضل د ضلالة نه دى، د ضال نه دى، او ضال خو ګمراه كيدو ته واني هغه خو مكلفينو كې راځي او عقاص خو مكلف نه دى؟ نو جواب يې وكړو چې اى تغيب، چې دلته كې تضل په معنى د تغيب سره دى، نو د دې نه تائيد معلوم شو چې ﴿فَقَرَرْتُ مِنْكُمْ لَمَّا خِفْتُكُمْ وَّاَنَا مِنَ الضَّالِّيْنَ﴾ چې زه د دركيدونكو نه ووم ستاسو نه چې مدين ته لاړم، غائب شوم، يا ﴿أَنْ تَضِلَّ إِحْدٰهُمَا﴾ دا معنى نه ده چې ګمراه شي يو په دې ښځو كې، يعني وركه نه شي ګواهي د يوې نه، ځكه ښځو كې نسيان زيات دى، نو كه يو نه هير هم شي نو بله به ورته يادوي. عقاص كې تحقيق صيغې كوي چې يا هلكه عقاص جمع دى كه مفرد دى؟ ويل جمع دي او بيا جمع دى نو د عقيص دى. كه د عقيصة دى؟ ويل د عقيصة دى. وهي سره د عقاص تفسير كوي د غير مشهور په مشهور سره چې وهي الخصلة المجموعة من الشعر دا هغه مُوتې ته ويلى شي چې جمع كړى شوي وي د وينبتو نه، چې دا د سر وينبته جمع كړى شوى وي او بيا بره په سر په مزي باندې تړلى شوي وي او بره د سر دپاسه يې اينبودي وي، دا دجاجة المخلات ښځې كوي بيا پرې د پاسه لوپټه وغورځوي او بيا بازار ته ووځي چه خلک يې تماشه كوي چې بره د دي سر كې ګوره پندوسكې ښكاره كيږي. د مثنى تفسير كوي چې والمثنى المفتول، چې مثنى هغه أودلى شوى

وبښتو نه وائي **والوصل خلاف الشتی** چې هسې زورند يې پرېښې وي، أودلې يې نه وي. يعني **ان ذوائبه** نه غرض د شارح يو دفع د اعتراض دی، اعتراض دا وارد شو چې يا هلکه تا وويل چې دغه وېښته پورته کېدوونکي وو، بره طرف ته يا پورته کړی شوي وو بره طرف ته. نو وېښتو کې خو ثقل دی نو ثقيل شي خو بره طرف ته نه خي بلکه ثقيل شي خو ښکته راځي، نو وېښته څنګه پورته کېدونکي وو يا پورته کړي شوي وو، نو شارح جواب وکړو چې د قاصر د وجې نه لکه ګېته ښکته راځي خو تا ګذار وکړو، نو هغه يو حد پورې بره ځي، نو د دې وېښتو بره والي حرکت کسری شو طبعي شو. چې مزې سره ترلی شوي وي او بره کړی شوی وي. دويم غرض د شارح د دې نه دفع د توهم کوي چې هلکه د دې شعر نه معلوم شو چې د دې محبوب وېښته څلور قسمه وو يو غدائر بل عقاص، بل مثنى او څلورم مرسل؟ نو شارح دا توهم دفع کړو چې نه نه، وېښته څلور قسمه نه وو بلکه درې قسمه وو. او دلته غدائر او ذوائب او عقاص يو شی دی، لکه ما تاسو ته مخکې وويل. دريم غرض د شارح د يعني نه دفع د بل اعتراض دی چې يا هلکه د شعر نه خو يا مدحه مقصد وي يا ذم، نو مونږ پوهه نه شو چې دا مدحه کوي که ذم کوي، شارح جواب وکړو چې **والغرض بيان كثرة الشعر**، او کثرة د وېښتو دا د محسناتو نه شمارولې کيږي، د سر وېښته په ښځه کې. نو څکه وائي: يعني **ان ذوائبه مشدودة على الراس بخيوط**، دا اول اعتراض دفع ته يې اشاره وکړه، اوس هغه دفع د توهم ته اشاره کوي چې **وان شعره ينقسم الى عقاص ومثنى ومرسل والاول يغيب في الاخرين** او دريم ته اشاره کوي، **والغرض بيان كثرة الشعر** چې وېښته يې زيات وو.

**والضابطة**: سره غرض د شارح يو تطبيق د مثال کوي د ممثل سره چې يا هلکه مستشزرات کې څه تناؤ او ثقل راغلو چې دا مخل بالفصاحة شو؟ دويم غرض رد کوي په بعضو باندې چې خلخالي دي، چې هغه وائي چې دلته کې سبب د تنافر دُبعد المخارج حروفو جمع کېدل دي. دريم غرض رد کوي په زوزني باندې چې هغه ويلي وو چې قرب المخارج سبب د تنافر دي. اګر که دلته کې قريب المخارج حروف نه دي جمع شوي په شعر کې خو مذهب د هغه دغه وو نو د هغه په مذهب باندې رد کوي.

نو اول غرض ذکر کوي، تطبيق د مثال د مثل سره کوي چې **والضابطة**: چې قانون کلي ههنا په دې تنافر د حروفو کې دا دی، چې **ان كل ما يعده الذوق الصحيح ثقيلا متعسر النطق فهو متنافر**، نو مونږ چې خپل ذوق ته رجوع وکړو نو مونږ ته مستشزرات دوارو صيغو سره ثقيل لږي، او مرتفعات او مرفوعات ثقيل نه لګي، نو هغه متنافر شو او دا متنافر نه شو **سواء كان من قرب المخارج** دا رد دی په زوزني باندې، **او بُعدها** دا رد دی په خلخالي باندې **او غير ذلك** لکه توسط د شين شو په مينځ د تاء او زاء کې شبه يا هلکه په دې باندې ستا لپاره دليل څه دی؟ ويل دليل زما لپاره يو خو ضابطه شوه، چې دا دليل عقلي وو، دريم دليل زما لپاره د ابن الاثير قول دی، **على ما صرح به ابن الاثير في المثل السائر** وائي چې ابن الاثير امام اللغة دی هغه په مثل سائر، د دا هغه کتاب دی هغه کې هغه په دې باندې تصريح کړې ده، نو دا دليل

نقلي شو
اوس تفصیلي رد کوي په خلخالي باندي اول د هغه مذهب نقل کوي، او بیا په هغه باندي تفصیلي رد کوي، وائي، **زعم بعضهم ان منشا الثقل في مستشزرات هو توسط الشين المعجمة** چي په هغې باندي دري تکي لیکلی کیږي **التي هي من المهموسة**، یو کش غوندي سره ادا کیږي، **الرخوة** نرم ادا کیږي په مخرج کي ورته د زورحاجت نشته دی، **بين التاء التي من المهموسة**، نو په دي صفت کي شین خو د تاء سره موافق شو، خو رخوة صفت کي بعید شو، هلته کي رخوة وو دلته کي شدة دی، **والزاء المعجمة التي هي من المجهورة**، او شین د مهموسو نه وو، نو دا زاء ضد د مهموسه شوه، نو بعید المخرج حروف شو بیا خلخالي ویلي دي، **ولو قال مستشرفات لزال ذلك الثقل**، اوس **وفيه نظر** سره شارح په دي باندي رد کوي، چي ته وائي چي که مستشرفات یي ویلی وی نو ثقل به زائل شوی وی، دا ته خطاء وائي، خکه **لان الراء المهملة ايضا من المجهورة**، نو بیا خو مستشرف هم ستا په نزد باندي ثقیل شو. **وقيل** سره د زوزني مذهب نقل کوي، او رد پري کوي، خو دده دا مذهب شارح دلته کي هسي طرداً للباب ذکر کړی دی، په مثال کي ده له څه دخل نشته دی. **وقيل ان قرب المخارج سبب للثقل المخل بالفصاحة** نو معترض راغلی په زوزني باندي یي شبه وکړه چي یا هلکه بیا خو **الم اعهد** په سورة یاسین کي غیر فصیح ش خکه قریب المخرج حروف جمع شوي دي، حروف حلقیه، نو تول سورة یاسین غیر فصیح شو، او تول سورة یاسین ته غیر فصیح ویل کفر دی که اسلام؟ کفر دی. نو دی جواب کوي چي **وان في قوله تعالى الم اعهد ثقلا قريبا من حد التنافر فيخل بفصاحة الكلمة**، نو هلکه بیا خو تول سورة یاسین غیر فصیح شو، نو دی راغلی جواب یي وکړو چي **لكن الكلام الطويل المشتمل على كلمة غير فصيحة لا يخرج عن الفصاحة**، وائي چي تول سورة یاسین غیر فصیح کیږي نه، او وائي قیاس په دي باندي زما دلیل دی، نو گوره کلام طویله چي مشتمل دی په کلمه غیر فصیح باندي، دا مقیس شو، او مقیس علیه کما لایخرج الکلام الطویل المشتمل علی کلمة غیر عربیة عن ان یکون عربیاً، لکه قران ته الله عربي ویلی دی او ډیر کلمات په کي غیر عربي دی، لیکن هغه قران د عربیت نه نه وځي، لکه مشکوة شو قسطاط شو سجیل شو تنور شو دا الفاظ غیر عربیه دی او علت اشتمال په خلاف الجنس باندي او حکم عدم خروج شو په دواړو کي. هغه د فصاحت نه نه خارجیږي او دا د عربیت نه نه خارجیږي، نو شارح د ده مذهب نقل کړو، اوس پري رد کوي، **وفيه نظر** لیکن د دي صاحب قیل دوه دعوی وي او یو دلیل وو، اول دعوی د ده دا وه چي قرب المخارج حروف راتلل سبب لپاره د ثقل دي، دویمه دعوی د ده دا وه چي کلام طویله مشتمل په کلمه غیر فصیحة باندي د فصاحت نه نه خارجیږي، دریم د ده دلیل وو د دعوی ثاني لپاره، قیاس وو کما لا یخرج سره، نو شارح په دعوی اول باندي رد ونه کو، خکه هغه ظاهر وو، نو پاتي شوه دعوی ثاني او دلیل نو اول په دعوی باندي رد کوي بلکه دعوی باندي دوه ردونه کوي، اول رد منعي کوي او دویم رد

تسليمي کوي درد منعي حاصل دا دی چي یا هلکه نه واني چي کلام طویله مشتمل وي په کلمه غیر فصیحه باندي هغه د فصاحت نه نه وخي دا زه نه منم. سند او منع دا دی چي **ان فصاحة الکلمات ماخوذة في تعریف فصاحة الکلام**، او قانون دا دی چي ماخوذ موقوف علیه د ماخوذ فیه لپاره وي، نو فصاحة الکلمات موقوف علیه شو د فصاحت الکلام لپاره، نو چي یو کلمه غیر فصیح شي نو بیا کلام کله فصیح کیدای شي. او دغه فصاحة الکلمات ماخوذ کیدل په فصاحة الکلام کي **من غیر تفرقة دی بین طویل و قصیر** دا رد منعي تحقیقي وشو په دعوی باندي

**علی ان هذا** سره غرض د شارح رد منعي کوي خو الزامي رد کوي چي یا هلکه ستا په نزد باندي خو فصاحت د کلماتو یواځي په مرکب تام کي شرط نه دی، ستا په نزد خو په مرکب ناقص، مرکب اضافي او توصیفي کي هم فصاحت د کلماتو شرط دی چي مخکي دي د کلام تفسیر په **ما لیس بکلمة** سره کړی دی. نو تا مرکب ناقصه په کلام کي داخل کړی، او زمونږ په نزد خو صرف فصاحت د کلماتو د مرکب تام لپاره شرط دی. نو دا رد منعي الزامي شو نو واني **علی ان هذا القائل فسر الکلام بمالیس بکلمة** دا وروستو عبارت د مخکي سره ولګوئ: چي **ولو سلم** دی دا رد تسلیمي کوي په دعوی باندي، چي خه یره ما ستا دا دعوی ومنله چي کلام طویله مشتمل په کلمه غیر فصیحه باندي دا د فصاحة نه نه وخي، چي **ولو سلم عدم خروج السورة عن الفصاحة**، خو رد زه بیا دا کوم چي فمجرد اشتمال القران علی کلام غیر فصیح، کله چي په الم اعهد کي د فعل او فاعل دواړو لحاظ وکړي، بل علی کلمة غیر فصیحة کله چي صرف الم اعهد واخلي او د فاعل لحاظ ورسره ونه کړي، **مما یقود الی نسبة الجهل او العجز الی الله تعالی** تالي باطل دی خکه **تعالی الله عن ذلک علوا کبیرا**، نو مقدم مثل شو. دلیل د ملازمي د بهر نه دی چي یا هلکه الله پاك دغه کلام غیر فصیح چي راوړو یا کلمه غیر فصیحه چي یي په کلام طویله کي ذکر کوله نو الله به یا په هغه غیر فصیح باندي عالم نه وي، نو خکه یي غیر فصیح ذکر کړه او یا عالم وو خو فصیح یي راوړي نه شو. او بل شئ خو نشته. الله پري عالم نه وو، نو جهل راغلی، او که عالم وو خو راوړي یي نه شو نو عجز راغلی.

دا خو رد شو په دعوی ثاني باندي یو منعي نفس الامري او دویم منعي الزامي او بل رد تسلیمي یو وشو. اوس والقیاس سره د هغه په هغه دلیل باندي رد کوي. واني، **والقیاس**: او قیاس ستا په کلام عربي باندي **ظاهر الفساد** ظاهر الفساد دی، د یو خو وجوهو نه ١دا قیاس قیاس مع الفارق دی، خکه چي فصاحت د کلماتو دا د فصاحت الکلام لپاره شرط دی، او عربیت د کلماتو لپاره د کلام طویله عربي لپاره شرط نه دی، ٢ وجه دا ده چي جائز ده چي قران ته چي الله عربي ویلی دی نو یي په اعتبار د اسلوب او طریقي سره عربي دی، په اعتبار د الفاظو سره تول عربي نه دی چي اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ قُرْءٰنًا عَرَبِیًّا چي اسلوب او طریقه یي د عربي ده، اګر که هر لفظ په کي عربي نه دی ٣ وجه چي جائز ده چي په قران

کې او په کلام طویله عربیه کې کوم کلمات چې غیر عربي راغلي دي، هغه دې د قبیلې د مشترك اللغات نه وي، په عربي کې دې هم راغلي وو. او په عجمي کې دې هم راغلي وي یعنې اشتراك لغوي دې وي، نو قیاس صحیح نه شو، بل د مخلا تو نه غرابت وو.

**والغرابة** اوس د غرابت تعریف ماتن نه وو کړي یا يې اختصار کړی وو یا د اکتفاء بالمثال د وجې نه، نو شارح تعریف د غرابت کوي، نو وائي چې غرابت **کون الکلمة وحشیة** شبه راغله چې یا هلکه د وحشیة حمل په کلمة باندې نه صحیح کیږي، ځکه وحشي هغه حیوان ته وائي چې هغه نفرت کوي د انسان نه او د انسان نه تښتي، او کلمه حیوان خو نه دی. نو شارح جواب وکړو چې **غیر ظاهر المعنی**، یعنې هسې وحشي چې ظاهرة المعنی نه وي، یعنې دلته کې وحشیة په معنی د **حیوان یتنفر عن الانسان** نه دی. بلکه وحشي په معنی د غیر ظاهرة المعنی دی. یعنې د یوې کلمې معنی ظاهر نه وي. اوس معترض د بهر نه یو شبه وکړه چې هلکه تعریف د غرابت مانع نه شو د دخول د غیر نه داخل شو په دې کې متشابه او مجمل وخفي او مشکل د کتاب الله، ځکه هغه ټول غیر ظاهرة المعنی دي نو بیا خو هغه په غیر فصیح کې داخل شو، او هغوی ته غیر فصیح ویل صحیح نه دي. جواب. ناکت کړی دی چې معنی نه مراد مطلق معنی نه ده، معنی نه مراد معنی موضوع له ده، چې د هغه کلمې معنی موضوع له ظاهر نه وي. او متشابه او مجمل وخفي ومشکل کې د هغوی معنی موضوع له خو ظاهر وي خو معنی مراد د الله غیر ظاهرة المعني وي. معترض بیا راغلی شبه يې وکړه چې یا هلکه بیا غریب القران او غریب الحدیث، غریب القران لکه هلوع شو او غریب الحدیث لکه احادیث غریبه شو، هغه خو بیا غیر فصیح شو او هغې ته څوك غیر فصیح نه وایي. نو شارح جواب وکړو چې **ولا مانوسة الاستعمال** او نه به وي دغه کلمات اشنا کړی شوي د دې د استعمال سره، په خلاف د غریب القران او غریب الحدیث نه، هغه مانوسة الاستعمال دی غیر مانوسة الاستعمال نه دی، دغه تعریف شو.

اوس داغریب دوه قسمه دی، یو هغه دی چې د هغې معنی مخکې د تفتیش او تلاش د کتب متداوله ؤ د لغت نه معلوم نه وي او پس د تفتیش او تلاش د کتب متداوله ؤ د لغت نه معلومه شوې وي، لکه **تکاکاتم** او **افرنقعوا** شو، د دې معاني مخکې د تفتیش او تلاش او د لتون نه مونږ ته معلوم نه وي، اوپس د تفتیش نه د دې معنی مونږ ته معلومه شوه چې تکاکاتم په معنی د جمعتم سره دی، او **افرنقعوا** معنی تنحوا سره دی، او دویم قسم غریب دا دی چې د هغې معنی مخکې د تفتیش او تلاش د کتب متداوله ؤ نه هم معلومه نه وه او پس د تفتیش نه هم معلومه نه وي، هغه لکه مسرجاً شو.

**نحو** اوس شارح وویل چې **مسرج** دې سره دفع د اعتراض کوي، چې یا هلکه د نحو او مثل مضاف الیه خو مقصود بالمثال وي او مقصود بالمثال خو ټول شعر نه دی؟ نو ده جواب وکړو چې د نحو مضاف الیه دلته کې محذوف دی چې **مسرج** شو شبه: یا هلکه بیا دا شعر په ترکیب کې څه واقع شو؟ ویل **في**

**اول** چې دا مقوله د قول محذوف ده، او **ابن العجاج** کې بې تعیین د قائل او شاعر ته اشاره وکړه، او قول د ابن العجاج څه دی دغه شعر دی. شعر **ومقلة** کې ومقلة سره شارح د مصرع اول بیان کوي یعنې نو وائي **ومقلة** او کڅې د محبوب وحاجباً او روځې د محبوب **مزججا** وو، د مزججاً تفسیر کوي ای **مدققا مطولا**، یعنې نرۍ ورروځې یې وې او اوږدې وې، نرۍ هغه دا چې بره بنکته یې ډیر وینبته په ورروځو کې نه وو، پلنې نه وې غټې غټې هسې داسې نرۍ لیکه تللې وه، او مطولاً داسې دی دې خای ته رسیدلې وې لکه د ستر ګو نه اوږدې وې یو خوا بل خوا **وفاحما** شارح ورسره لګوي ای شعراً، دې کې یې اشاره وکړه چې **فاحما** اسم صفتې دی موصوف غواړي، نو هغه موصوف شارح کېښوده چې هغه **شعراً** دی وینبته دي، معترض شبه وکړه چې **فاحم** خو سکرو ته وائي، پښتو کې هغه مرو ته سکاره وائي او هغه بل ته سکروته وائي، نو بیا خو دا معنی شوه چې د ده وینبته سکاره وو، نو دا خو نه صحیح کیږي؟ نو شارح جواب وکړو چې **اسود** چې دلته کې **فاحم** نه **اسود** مراد دی، خکه **فاحم** خو سکارو ته وائي د هغې حمل خو په شعر باندې وینبتو باندې نه صحیح کیږي، نو لازمې معنی شوه، خکه د سکارو سره لازم توروالی دی، بیا معترض شبه وکړه چې یا هلکه بیا شارح د اسود نه په فاحم سره ولې تعبیر کړی دی، بیا خو دا **اسود** ویل په کار وو، نو شارح جواب وکړو چې **کالفحم** چې دلته کې دغه تعبیر د قبیلې د نسبت د مشبه نه شو مشبه به ته یعنې دغه وینبته تک تُور وو په شان د سکرو، نو دا فحم مشبه به شوه، او دا تور وینبته مشبه شوه، یعنې د هغه تورو وینبتو نسبت سکرو ته وشو، لکه د نسبت لپاره لابن او تامر چې راځي، تامر معنی منسوب الی التمر، لابن منسوب بسوئې لبن، نو فاحم معنی منسوب بسوئي فحم، **وموصنا** شارح ورسره لګوي ای انفاً دې کې یې اشاره وکړه مجاز مرسل ته، چې مرسن اصل کې د اوښ پوزې ته ویلی شي، هغه شي ته ویلی شي چې د اوښ په پوزه کې اچولی شوی وي، هغې ته پیزوان وائي، (بلکه هغې ته پښتو کې مهار وائي او د غوا، غوئي وغیره پوزه کې چې کوم پرې اچولی شوی وي هغې ته پیزوان وائي، من الجامع) خو دلته کې ترینه مراد مطلق پوزه ده، نو دا استعمال د لفظ مقیده په مطلق کې شو، او استعمال د لفظ مقیده په مطلق کې دا علاقه د مجاز مرسل ده، دا پوزه د محبوب **مسرجا** وو. اوس ګوره په دې قول د ابن العجاج کې راغلی **مسرجا**، دا صیغه د اسم مفعول ده د باب تفعیل نه سرّج یسرّج تسریجاً، اوس د هر مشتق لپاره مشتق منه په کار دی، نو مونږ تفتیش تلاش د کتبو د لغت وکړو نو د تسریج ماده چیرته مونږ بیانه مونده. نو دوه خبرې به کوو یا به نسبت د خطایۍ کوو ابن العجاج ته، چې دې په دې کې خطا شوی دی، او یا به د دې لپاره محمل صحیحه لټوو، نو نسبت د خطایۍ خو مونږ ابن العجاج ته نه شو کولی، خکه دی د فصحاء، بلغاء، شعراء د جاهلیت نه دی. نو د دې لپاره مونږه محمل صحیح ولټولو هغه دا دی من جمله د خواصو د باب تفعیل نه دا ده چې دې د نسبت لپاره راځي، لکه **فسقته ای نسبته الی الفسق او کفرته نسبته الی الکفر** نو دلته کې

هم دغه **مسرجاً** نسبت لپاره دی، نو ابن درید وویل چې دلته کې نسبت د دې پوزې **كالسيف السريجي** نُوري د سریجي ته دی، نو دا پوزه د ده محبوب مشبه شوه او سيف سريجي مشبه بـه شوه او الـه تشبيه كاف شو، وجه د شبه **في الدقة والاستواء** شوه **وسريج اسم قين ينسب اليه السيوف**. يعني دې پـه تـورو جوړولو کې مشهور وو، او ابن سعیده فرمائي: چې د دې نسبت سراج ته او دی، نو **كالسراج في البريق واللمعان** دا **في البريق واللمعان** وجه د شبه شوه، يعني دا پوزه د محبوب منسوب ده ډيوې ته په ټركېدو او رڼا كولو كې، اوس **فان قلت** سره شارح شبه كوي چې يا هلكه دا مسرجاً د غرابت لپاره مثال نه صحيح كيږي ځكه چې دا د سرج الله وجهه نه شي او د سرجه معنی بهجه او حسنه سره ده، نو مسرجاً به معنی د محسناً سره شوه، نو وائې **قـان قلت لم لم يجعلوه** ولې ونه گرځولو دې قـائلينو د غرابت د **مسرجا** دي مسرجاً لره، ضمير د جمع په **يجعلوا** كې قائلينو د غرابت ته راجع دی، اسم مفعول من سرج الله وجه اى بهجه وحسنه نو معنى د مسرجاً د محسناً شوه، نو دا مثال د غرابت صحيح نه شو، نو دى راغلى (شارح) د دې نه دوه جوابونه كوي يو وائې **قلت لاحتمال ان يكون متحدثاً ومولداً من السراج** دااحتمـال شـته چې **سرج** دا معنی بهج او حسن دی پیدا شوي وي او جوړه شوي وي د سراج نه، ځکه دا لازمي معنی د سراج ده، د سرج دا خپله معنی نه ده دې، بلکه دا متحدث دوی متاخرینو دي د سراج نه راخستـي وي، او ابن العجاج د قدماؤ نه دى، او قانون دا دى چې اخذ د سابق د لاحق نه نه شي كيداى، د ابن العجاج قول چې هغه د قدماؤ نه دی هغه په دې مستحدث او مولدينو په كلام باندې حمل كيداى نشي، چې د هغې نه دې اخذ كړى شوى وي من بهج وحسن، ځكه چې سابق اخذ د لاحق نه خو نـه شي كولى، ځكه چې دسابق پـه زمانـه كې هغـه لاحق نـه وي، او اصلي معنى د مسرجاً، هيڅ نشته، دويـم جواب كـوي تسليمي چې څه كه دا د مستحدثينو كلام نشي هم د متاخرينو نه شي، د دې معنی د حسن او بهج سره شي نو بيا هم دى غريب دى، خو صرف غريب په معنى ثاني سره نـه شـو پـه معنى اولى سره شو، ځكه قبل د تفتيش او تلاش د كتب متداولۇ دلغت نه دا معلوم نه وو، اوس معلوم خو شو چې حَسن او بَهج سره دى، خو بعد التفتيش او تلاش شو، نو دا د غرابت نه بيـاهم ونه وتـل، دريـم جواب كوي چې **او يكون من باب الغرابة ايضاً**، ايضاً يعني څنګه چې دا په معنى د حسن او بهج نه وو، نو د غرابت نه دې وو خو غايت مافي الباب دا شو چې كوم وخت په معنى د حسن او بهج سره نه وو، نو غريب په معنى ثاني سره وو، او چې معنى د ده حسن او بهج شوه، نو غريب په معنى اولى سره شو، فرق صرف دا شو.

**والمخالفة** بـل د مخلاتو د فصاحة المفرد نه مخالفة وو، نو مـاتن د مخالفة تعريف نـه وو كړى، يـا يې اكتفاء بالمثال كړې وه، يا يې د اختصار د وجې نه تعريف نه ووكړى، نو شارح تعريف كوي، چې مخالفة ديته وائي چې: **ان تكون الكلمة على خلاف القانون**، نو معترض راغلى شبه يې وكړه چې يا هلكه په مخالفة او ضعف التاليف كې څه فرق راغى، ځكه هلته كې هم كلمه خلاف وي د قانون، نو شارح

كيږي، څلورم كراهية في السمع هم دى، نو وائي **قيل فصاحة المفرد خلوصه**، اوس متن دا دى چې **قيل ومن الكراهة** نو شبه راغله چې **ومن الكراهة** كې واو خو عاطفه دى، څكه نور نه صحيح كيږي. او واو عاطفه معطوف عليه غواړي، نو معطوف عليه د دې كوم دى.ونيل چې مما ذكر دى چې حذف دى اوس **مما ذكر خلوصه من التنافر والغرابة ومخالفة القياس** وو ،دا معطوف عليه شو. او قانون دا دى چې ما قبل د معطوف عليه نه كالمعاد وي په معطوف كې نو هلته كې **فصاحت المفرد** لفظ وو نو دلته كې بې هم فصاحة المفرد وويستلو، چې فصاحة المفرد خلوصه مما ذكر او **ومن الكراهة في السمع** او كراهة في السمع څه ته وائي چې مكروه لګيدل په سامعه باندې، كراهت خو صفت د فعل د مكلف دى، چې دا فعل د مكلف مكروه دى، نو هغه څنګه په سمع باندې كريهه لګي؟ نو ده جواب وكړو چې كراهة في السمع ديته وائي چې قوة سامعه ورته تيله وكړي. نو وائي **بان يكون اللفظ بحيث يمجها السمع** دفع كړي دى لره قوة سامعه ويتبرا عن سماعها نحو الجرشي في قول ابي الطيب دې سره يې تعيين د شاعر وكړو شعر:

مبارك الاسم اغر اللقب كريم الجرشي شريف النسب

**مبارك الاسم** يعني هو مبارك الاسم، وائي مبارك دى نوم د دې ممدوح، څكه چې نوم د هغه علي وو، اغر اللقب مشهور اللقب دى، سيف الدولة لره تولـه دنيا پيژني، او كريم الجرشي، شريف النفس دى، او شريف النسب چې د بني العباس نه دى، والاغر، تحقيق د اغر كوي، چې **من الخيل الابيض الجبهة ثم استعير لكل واضح معروف**، اوس ماتن جواب كوي قيل ته چې **وفيه نظر** اوس د نظر بيان ماتن نه وو كړى؟ شارح يې كوي، وائي دې كې نظر دى **لان الكراهة في السمع، انما هي من جهة الغرابة المفسرة بالوحشة**، نو خلوص د غرابت نه دا خلوص من كراهة السمع هم شو، نو خان لـه جدا د دې نه خلوص ضروري نه شو. مثل: **تكاكاتم وافرنقعوا**، نو ستا نفس ديته تيله وركوي، دا د دې وجې نه چې دا غريب دى، ونحو ذلك: لكه اطلخم الليل په معنى د اظلم سره، نو اطلخم په تا باندې بد لګي، چې دا څه د پيريانو ژبه وائي، نو د دې **تكاكاتم وافرنقعوا**، شان نزول يا دا دى چې جوهري په صحاح كې وائي چې دا قول . اول د عيسى بن عمر نحوي دى، او زمخشري وائي په فائق كې چې ما ته جاحظ ويلي وو چې دا د علقمه قول دى، يعني شان نزول كې بهر حال هر څنګه چې وي خلاف دى، **وقيل** قيل سره د مولانا قيل غرض دا دى چې د قيل د ماتن بيان كوي، او غرض د شارح د نقل د دې نه رد كوي په دې باندې چې ستا دا بيان خطا دى او ما چې كوم بيان وكړو هغه تيك دى، نو وائي چې **قيل لان الكراهة في السمع وعدمها يرجعان الى طيب النغم وعدم الطيب**، او فصاحة صفت د لفظ دى د نغم نه دى، نو موږ دلته كې مخلات د فصاحة المفرد بيانوو، او كراهية في السمع دې سره مخل نه دى څكه هغه صفت د لفظ نه دى، ليكن شارح وائي **وفيه نظر** چې په دې تعليل كې نظر دى، للقطع باستكراه الجرشي دون النفس،

هغې جنب کې ذکر کول په کار وو

اوس شارح راغلو هغه څلورمه خبره کوي، رد کوي، نو واني **وفيه نظر** چې دې کې اعتراض دی. خک **لانه** خکه دا **قول حينئذ**، يعني اذا كان هو حال من الكلمات نو **يكون قيداً للتنافر لاللخلوص** او خلوص به پرې وارد شي، اوس ويلزم، دليل د دې واني، اوس دا ويلزم تالي کوي، او د دې مقدم مطوي رااوباسي، نو معنى دا چې **لو صح هذا التركيب** يلزم ان يكون الكلام المشتمل على تنافر الكلمات الغير الفصيحة فصيحاً به شي، زيد اجلل، دارنګه وشعره مستشزر وانفه مسرج دا به تول فصيح شي. ليكن تالي باطل، مقدم يې مثل شو، وجه د بطلان التالي د مسلماتو نه ده، خکه كلام مشتمله په كلمات غير فصيحيو باندې، فصيحه نه شي كيداى، خکه چې فصاحت د كلماتو شرط دی. نو مشروط بغير د شرط نه نشي راتللى، پاتې شو دليل د ملازمې، ولې؟ واني **لانه يصدق عليه** په دې كلام باندې چې خالي دى د تنافر د كلماتو نه په حال كون د دې كلماتو کې چې دا فصيحةٌ دي، دا صادق شو، غير فصيحة باندې چه مشتمل شو نو هغه به فصيح وي. **فافهم**: فافهم کې شارح اشاره وكړه دليل د ملازمې ته، تدقيق ته اشاره وكړه، چې دا ولې يصدق دی؟ ويل دا بنا دی په قاعدې باندې هغه قاعده دا ده چې نفي داخله شي په كلام مقيده باندې، نو نفي متوجه كيږي قيد ته. نو دلته کې دا تنافر د كلماتو مقيد شو په قيد د فصاحت خپل سره، او خلوص نفي پرې وارده شوه، نو دا نفي به متوجه فصاحت د كلماتو ته وي، چې دا كلمات فصيحه به نه وي، يعني كلمات متنافره به وي، خکه چې كلام مشتمله على تنافر الكلمات الغير الفصيحة، دا خالي د تنافر الكلمات نه دی.

يا دريم په فافهم کې ديته اشاره وشوه چې دا قيل واني چې دا يصدق په مونږ باندې نه لازميږي، خکه چې كلام مشتمله په تنافر د كلماتو فصيحو باندې، فصيح نه شو، نو كلام مشتمله په تنافر الكلمات باندې، فصيح نه كيدل په طريق اولى سره معلوم شو، نو دا اعتراض وارد نه شو، خکه چې ترجمه دا شوه چې كوم كلام چې مشتمل وي په كلمات فصيحو باندې نو هغه به فصيح نه وي، او كه كلام مشتمل وي په تنافر د كلماتو غير فصيحو باندې نو هغه به فصيح وي، نودا خو په طريق اولى سره معلوم شو، نو تاسو په جواب کې او واني چې دا خو دلالت التزامي شو او دلالت التزامي په تعريفاتو د علومو کې مهجور دی، دا خو استلزاماً تاسو معلوم كړه.

دريم يا په فافهم کې يې ديته اشاره وكړه چې قيل طرف نه شبه راغله چې يا هلكه دا ملازمه څنګه چې زمونږ په تركيب باندې لازميږي، نو دا ستا په تركيب باندې هم لازميږي، نو ما هو جوابك فهو جوابنا، نو شارح وويل چې فافهم، فكر وكړه دا زما په تركيب باندې نه لازميږي، خکه چې زما په تركيب باندې دا **مع فصاحتها** قيد شو دخلوص لپاره، خلوص مقيد شو، خلوص وارد په كلام مقيده باندې نه شو، او ستا په تركيب باندې خلوص وارد دی په كلام مقيده باندې، نو زما په تركيب باندې دا

ملفوظ نه وي د سره، بالکلية بلکه فهميږي د لفظ نه يا د سياق الکلام نه. د لفظ نه فهميږي. مثال لکه ﴿ اِعْدِلُوْا هُوَ اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى ﴾ نو هو ضمير عدل ته راجع شو، او عدل فهميږي د اعدلوا نه، او عدل ملفوظ حقيقة نه دی، او چې د سياق الکلام نه فهميږي، د هغې مثال لکه ﴿ وَلِاَبَوَيْهِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ ﴾ نو لابويه کې ضمير ميت ته راجع دی، او ميت مخکې مذکور نه دی نه لفظا مذکور دی او نه پرې لفظ دال دی، خو سياق الکلام نه فهميږي. خکه چې سياق الکلام په ارث کې دی په ميراث کې. خکه ميراث د ميت نه پاتې کيږي

او حکماً اضمار قبل الذکر ديته وائي چې دغه مرجع، نه ملفوظ وي او مفهوم معنی وي، يعني نه مدلول د لفظ وي او نه مدلول دسياق دی، بلکه هسې به متکلم په ذهن کې فرض کړی وي، لکه **نعم رجلاً** شو، **ربه**: د ير کرتې هغه، اوس مثال د ضعف التاليف لکه **نحو ضرب غلامه زيداً** شو، نو د نحو ضرب غلامُه زيداً، نه قاعده کليه واخلئ، يعني هر هغه ترکيب چې متصل شوی وي د فاعل متقدمه پورې ضمير راجعه مفعول متاخره ته، اوس دا ترکيب د جمهور نحاتو په نزد غير فصيح دی، خکه دې کې ضعف التاليف راغلو، خکه چې په دې غلامه کې ضمير راجع شو زيداً، مؤخر ته، هم لفظاً او هم رتبةً، خکه مفعول لفظاً هم وروسته دی او رتبةً هم وروسته دی، او داخفش او ابن جني په نزد باندې دغه ترکيب جائز دی، د دليل عقلي او نقلي د وجې نه، دليل عقلي هغوی دا وائي، چې دا زيداً اگر چې مؤخر دی، په لفظ کې ليکن په رتبه کې په د ضمير مجروره باندې مقدم دی، خکه چې مفعول په رتبه کې د فاعل نه نه شي مقدم کيدای او مضاف اليه د فاعل نه مقدم کيدای شي، نو اضمار قبل الذکر لفظاً راغلی او رتبةً رانغلی، نو دا جائز دی، ليکن مونږ ورته جواب کوو، چې يا هلکه په مضاف او مضاف اليه کې شدت اتصال وي، او شدت دا معنی چې د بل شي رتبه په کې نه خائيږي، نو چې د بل شي رتبه په کې خای نه شوه، نو چې د زيداً رتبه د غلام نه وروسته شوه، نو ده نه هم نه شي مخکې کيدای، دويم هغوی دليل نقلي وائي چې، **جزی ربّه عني عدي ابن حاتم جزاء الکلاب العاويات وقد فعل**، گوره دلته کې ضمير د فاعل متقدم پورې متصل شوی او مفعول متاخره ته راجع دی، ليکن د دې نه جمهور جواب کوي، چې دلته کې شعر کې ضمير عدي ابن حاتم ته راجع نه دی، بلکه ضمير راجع دی جزاء ته چې دال دی پرې فعل چې جزی ربُّه دی، نو د قبيلې د ﴿اِعْدِلُوْا هُوَ اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى﴾ نه شو ۲، والتنافر بل د مخلاتو د فصاحة الکلام نه تنافر وو، تنافر د کلماتو. نوماتن دهغې مثال وائي نو وائي والتنافر ای تنافر الکلمات شارح تعريف کوي چې **ان تکون الکلمات ثقيلة على اللسان**، معترض شبه وکړه چې يا هلکه په جمعې سره ولې وويل چې **الکلمات ثقيلة على اللسان** داسې تا ولې نه ويل چې **ان تکون الکلمة ثقيلة على اللسان**، نو شارح جواب وکړو چې **وان کان کل منها فصيحة**، چې يا هلکه هره يو

كلمه به فصيح وي خو دا اجتماع د كلماتو به ثقيل وي په لسان باندي، نو كلمات ما خكه جمع ذكر كړه. نحو ع. دا مصرع، چې **وليس قرب قبر حرب** يا هلكه حرب څوك دى؟ ويل **هواسم رجل. قبر** نو دا قبر اسم د ليس مؤخر شو، او قربُ دا خبر د ليس مقدم شو. اوس كه څوك شبه وكړي چې يا هلكه بيا خو اسم د ليس نكره شو او خبر دليس معرفه شو د دې لپاره چيرته نظير په نحوه كې شته؟ څكه چې قرب معرف شو مضاف شو حرب ته، او حرب علم وو، نو دا معرفه شوه، نو د دې نه ما ناسو ته دوه جوابونه كړي وو، يو چې دلته كې قرب په معنى د قارب سره دى، او د قارب اضافت قبر ته اضافت لفظي دي او اضافت لفظي مفيد لپاره د تعريف نه دي. يا ورته ووايي چې خبر د ليس محذوف دى، او دا قرب ظرف د خبر محذوفه دى، **اى وليس مكاناً قريب قبر حرب قبر** نو كوم چې خبر دى هغه نكره دى، او كوم چې معرفه دى هغه متعلق د خبر دى، خبر نه دى.

**وصدر البيت**. واو استينافيه كوي، شارح نه چا تپوس وكړو چې د دې شعر مخكينى مصرع كوم ده، نو شارح بيان كوي د مخكينى مصرع، نو وائي وصدر البيت د قبر حرب دا واو په دې قبر كې د شاعر په كلام كې نشته دى، **بمكان قفر** تفسير د غير مشهور كوي په مشهور سره اى خال عن الماء والكلاء.

لوش شارح د دې شان نزول ذكر كوي، چې ذكر كړى دى ماتن عبد الرحمن صاحب، عجائب المخلوقات د هغه كتاب دى، لكه حياة الحيوان چې د علامه دميري د كتاب نوم دى، چې **ان من الجن** [illegible] **فقال له الهاتف** دبدبه ناك اواز كوونكي داسې اواز چې د سړي روح گويا چې را وباسي، **فصاح واحد منهم من الجن على حرب بن أمية فمات** هغه يخ شو، او پيريانو يوړو او په يو خوشې خاى كې يې ښخ كړو، نو وارثانو تلاش كولو نو هغوى ونه موندلو، نو پيريانو دغه شعر وويل چې **قبر حرب...الخ. فقال** [illegible] **الجني هذا البيت**، او سبب د دې صياح لپاره څه وو؟ نو بعضې وائي چې سبب داسې وو چې يو [illegible] راغلى په صورت د مار باندې نو دى حرب ابن أميه په پښو سره وڅكولو، مړ يې كړو، نو پيريان [illegible] دغه هاتفي اواز يې وكړو هغه يې مړ كړو، څكه **من بدل حليته فلمه هدر** په حديث كې راغلي دا [illegible] نه دي. مصحح او څوك وائي چې د دې صياح سبب دا وو چې دغه **حرب بن اميه** او مرداس [illegible] دوه كسان يا دوستان وو يا حقيقي ورونه وو، د عكاض جنگ نه واپس راتلل، نو په لاره [illegible] راغلى، بنج دا د سوزولو لرگى، نو دې مرداس دې حرب بن امية ته وويل چې يا [illegible] دغه بنې د فضل لپاره دير بهترين خاى دى، نو راځه دلته كې دا وونې به وسوزوو او دلته كې به [illegible] وكړو، نو حرب بن أميه وويل چې ديره ښه ده، نو دوى هغه بنې ته اور ولگوو، نو په كې د پيريانو [illegible] ځالې وي، د هغوى هغه بچې په كې څه وسوزيدل، او څه چې وو هغوى چغې كړې وتښتيدل، نو پيرى [illegible] او په دې باندې يې دغه اواز وكړو، نو دوى هم يخ شو، نو دې حرب بن اميه يې يو خاى ته يوړو، [illegible] او ښخ يې كړو، بيا وارثان گرځيدل دې يې اوموندلو، نو پيرى دغه شعر وويل. **وقوله شعر**

كريم متى امدحه امدحه والورى معي و اذا مالمته لمته وحدي

شبه راغله چې يا هلکه دلته کې د اجزاء مفيد دفائدي جديدي نه شوه، ځکه چې شرط هم امدحه شو او جزاء هم امدحه، نو شارح جواب کوي **فالواو في الورى للحال وهو** الورى مبتدا و خبره معي، او حال قيد لپاره د عامل د ذوالحال وي، نو جزاء مقيد شوه، او شرط مطلق مدحه شوه، او ذکر دمقيد پس د مطلق نه مفيد لپاره د فائدې وي، اوس دليل پرې دا دى چې دا واو د حاليت لپاره دى او عطف لپاره نه دى، نو دليل يو دا دى چې که واو د عطف لپاره شي نو والورى معی، دا جمله اسميه ده، او مخکې هغه جمله فعليه ده، او عطف د اسميې په فعليه باندې حسن نه دى، دويم دليل دا دى چې وروستو وحدي حال دى، او متعين دى، او د هغې عطف نه صحيح کيږي، نو دلته کې هم مونږه دا حال ووېل ځکه موافقة اولى دى د مخالفة نه، واذا مالمته کې لمته وحدي، دا حال دى، حال کوني منفرداً. ځکه وحدي خو معرف شو او معرف خو حال نه واقع کيږي نو ماؤل په تاويل د منفرداً سره شو کافيه کې تاسو ويلي، وارسلها العراك ومثله متاول، جواب يې کړى دى، اوس شبه راغله چې يا هلکه مقصود د مثال نه توضيح د ممثل وي او توضيح د ممثل په يو مثال سره راتلو، نو دوو مثالينو ته څه حاجت وو، نو دى وائي **وانما مثل بمثالين** دې کې اعتراض ته اشاره وشوه، لان الاول متناه في الثقل دې کې جواب ته اشاره وشوه چې سړي چاى نه وي څکلي ستړى سړى يې نه شي ادا کولى، چه وليس قرب قبر حرب...الخ، لږ زور غواړي او **والثاني دونه** او ثاني څه لږغوندې انتهاء نه بښکته دى په ثقل کې، اوس وجه دا ده چې اول متناهي دى چې **لان منشاء الثقل في الاول نفس اجتماع الكلمات** چې قرب او قبر، حربٌ، دا اجتماع ثقل ده، وفي الثاني اجتماع حروف منها، د دې کلماتو نه، وهو او دا اجتماع د حروفو، في تکرير امدحه، نو معترض شبه وکړه چې يا هلکه چې مجرد حاء او هاء جمع کيدل ته وائي چې دا مخل بالفصاحة دى، نو بيا خو فسبحه، غير فصيح شو، نو ده جواب وکړو چې **دون مجرد الجمع بين الحاء والهاء لوقوعه في التنزيل مثل فسبحه، فيندفع القول بان مثل هذا الثقل مخل بالفصاحة**، يعنې دلته کې جمع کيدل په مينځ د حاء او هاء کې سره د تکرير د امدحه نه، دا مجموعه سبب مخل د فصاحت لپاره دى، او فسبحه کې علت موجود نه دى، صرف جمع راغلې ده، او تکرار په کې نشته دى، يعنې يو جزء د علت نشته دى، **ذكر الصاحب** چې هغه اسماعيل بن عباد دى، د دې نه غرض د شارح تائيد ذکر کوي د دې مخکې خبرې لپاره، چې ګوره مجرد جمع په ما بين د حاء او هاء کې دا مخل او متنافر نه ده، بلکه جمع سره دذلك نه، دا مخل الفصاحة ده صاحب د ده لقب وو او اسماعيل بن عباد د ده اسم محضه وو، چې **انه انشد قال هذه القصيدة، الأستاذ ابن العميد**، استاذ يې لقب وو، ابن العميد يې کنيه وو، او دا ابن العميد وزير وو، هغه وخت کې دا قانون وو، چې د وزير او د صدر خوا ته چې به څوك تلل د هغوى تحفه به دا وه چې د هغه په باره کې به يې يو قصيده ويله، څه مالتې او پيسې ميسې به يې نه ورلې،

وکړه، چې بیا تعریف د کلام [۱] مانع نه شو، د دخول د غیر نه داخل شو په کې متشابه، مجمل، خفي، مشکل د کتاب الله، ځکه هغه هم غیر ظاهر الدلالة دي په مراد باندې، نو بیا هغې ته هم غیر فصیح ووایه، حالانکه هغې ته غیر فصیح نه شو ویلی، هغه خو په قران کې موجود دی، نو ده جواب وکړو **لخلل** د نقصان د وجې نه، نو هغه خفي مشکل الخ خارج شو، هلته کې خلل او نقصان نشته دی. هلته کې د اخفاء د متکلم د وجې نه غیر ظاهر الدلالة دی لغرض لایعلمه الاالله، الله مونږ نه مراد پټ کړی دی، د نقصان د وجې نه ندی، واقع کې اشاره وکړه شارح چې دا انما في النظم دا په اعتبار د متعلق سره صفت د خلل دی، او ظرف مستقر دی، چې یا واقع وي په نظم کې، دیته تعقید لفظي وائي، یا هسې خلل واقع وي په انتقال کې، هغه تعقید معنوي شو، بسبب تقدیم او تاخیر، دینه غرض د شارح یو بیان د خلل کوي، چې خلل به په نظم کې څنګه راغلی وي، او دویم غرض د شارح دفع د اعتراض کوي، چې یا هلکه خلل په نظم کې دا معنی چې الفاظ کم وي او معنی زیاته وي، نو دیته خو ایجاز وائي او ایجاز مخل بالفصاحة دی؟، نو د خلل به دا مقصد وي چې الفاظ کم او مراد زیات، نو دا خو په قران کې موجود دی، او هغه قران خو فصیح دی لکه ﴿وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيٰوةٌ يَّاُولِي الْأَلْبَابِ﴾ دا یو جمله ده، او دې دلالة وکړو په دوو کربنو مراد باندې، بلکه دریو کربنو مراد باندې، نو ایجاز خو مخل بالفصاحة نه دی، نوده جواب وکړو چې د خلل في النظم دا مراد نه دی چې الفاظ کم وي او مراد ډیر وي، بلکه بسبب تقدیم او تاخیر، په سبب د تقدیم د یو لفظ سره او تاخیر د بل سره، یا په حذف سره یا په اضمار سره، وغیر ذلك په فصل سره په اجنبي سره په مبتداء اوخبر کې، صفت او موصوف کې، غیر ذلك څه شی؟ **مما یوجب صعوبة فهم المراد** دا دی یعني مراد ګران شوی وي په هغې کې اوس دې باندې شبه راغله چې یا هلکه ذکر د تاخیر پس د تقدیم نه مستدرك دی، ځکه چې مثلاً تا یو شی مقدم کړو نو دا بل شی په خپله ده نه مؤخر شو کنه، او دا بل دې مقدم کړو په دې بل باندې، دا بل بخود مؤخر شو. نو ذکر د تاخیر وروستو د تقدیم نه مستدرك شو، نو تاسو وایئ چې ته پوهه شوی نه یې کنه، تقدیم نه مطلق تقدیم نه دی مراد، او د تاخیر نه مطلق تاخیر مراد نه دی، بلکه تقدیم نه مراد تقدیم عن موضعه الاصلي دی، او تاخیر نه مراد تاخیر عن موضعه الاصلي دی، نو اوس تا دا مقدم کړو په دې باندې، نو دا بل مؤخر د دې خپل ځای نه نشو، خو دا به ته د دې بل ځای نه راوړې نو دا به د ده ځای ته راخې، نو مطلق تقدیم مستلزم وو تاخیر د ده لره، او تقدیم د موضع اصلي نه دا، مستلزم د تاخیر اصلي نه ندی، نو ذکر د تاخیر وروستو د تقدیم نه مفید شو مستدرك نه شو، ځکه چې مطلق تقدیم او تاخیر مراد نه دی، بلکه د موضع اصلي نه مراد دی، اوس دې مثال بنائي او په دې

---

۱- د تعقید الکلام.

د مبتداء او خبر كوي، دواړه ابو امه مبتداء ده. او ابوه خبر. فصل يې بالاجنبي الذي هو حي. درمې
وبين الموصوف والصفة كې **فعل** راغلو. اعني حي، موصوف دى او يقاربه ورله صفت دى، فصل يې
راغلى دى په اجنبي سره چې هغه ابوه دى، چې خبر دى دريم تقديم د مستثنى راغلو چې اعني مملكا
دى، په مستثنى منه باندې چې اعني حي دى، څلورم **وفصل كثير بين البدل وهو حي والبدل منه وهو مثله**
پينځم غرض د شارح تركيب د شعر كوي، نو وائي **قوله مثله اسم ما**، او ما مشابه بليس دى، وفي الناس
خبره ومملكا منصوب، حالانكه په كلام غير موجب كې مستثنى كې بدل مختار دى، او نصب خو
جائز دى، نو ولې منصوب څكه دى لتقدمه على المستثنى منه، او مستثنى چې مقدم شي اگر چې
كلام موجب دى نو هلته كې نصب واجب دى، او چې كوم وخت كې تا مؤخر را وويستلو نو بيا په كې
بدل مختار لكه شارح مملك ويلى دى په رفع سره

اوس شارح د شارح خلخالي اعتراض رانقل كوي او د هغې جواب رانقل كوي، قيل په اعتراض كې په
ماتن باندې چې **ذكر ضعف التاليف**، مخكې **يغني عن ذكر التعقيد اللفظي**، څكه تعقيد لفظي او ضعف
التاليف دا يو شى دى، فرق په كې نشته، نو د تعقيد لفظي ذكر وروستو د ضعف التاليف نه لغو او
تحصيل د حاصل او مستدرك شو، نو شارح پرې رد كوي چې وفيه نظر، چې ما قال د قيل كې نظر
دى، چې دا ضعف التاليف او تعقيد لفظي يو شى نه دى دي كې نسبت د عموم خصوص من وجه دى،
ماده افتراقي چې ضعف التاليف وي او تعقيد لفظي نه وي لكه چې ته روائي چې جاني احمد، نو دا
د قانون نحوي نه خلاف شو، خو تعقيد نشته دى، او تعقيد لفظي وي او ضعف التاليف نه وي، لكه
اجتماع د يو څو امورو په يو كلام كې وشي، چې د هغه كلام فهم گران شوى وي، او هغه امور د قانون
نحوي نه خلاف نه وي، نو هلته كې تعقيد لفظي راغلى اوضعف التاليف نشته، اوس ماده د اجتماع
چې دواړه وي لكه دغه شعر شو، نو اول لجواز ان يحصل التعقيد باجتماع عدة امور موجبة لصعوبة
فهم المراد وان كان كل منها جاريا على قانون النحو، نو دلته كې تعقيد لفظي راغلى، او ضعف
التاليف نشته دى، يعني قانون نحوي سره موافق دى.

**ولهذا يظهر** سره، يو بل اعتراض كړى وو زوزني په دې مثال باندې، چې يو په تعقيد كې تا دا شمار كړه
چې تقديم د مستثنى په مستثنى منه باندې، او تقديم د مستثنى په مستثنى منه باندې مخل
بالفصاحة نه دى، څكه دا جائز دى په شريعت نحوي باندې، نو شارح وائي چې ما مخكې دا خبره وكړه
چې تعقيد لفظي په اجتماع دعدة امور سره راځي نو دغه زوزني اعتراض هم دفع شو، څكه چې تقديم
د مستثنى په مستثنى منه باندې في نفسه خو جائز وو، ليكن اوس د دې نورو سره چې تل شو،
نو صعوبة المراد كې زيات شو، نو وائي وبهذا په دې تحقيق ثالث زما سره، يظهر دفع ما قيل هغه
اعتراض چې ويلى شوى دى **انه لاحاجة في بيان التعقيد في البيت الى ذكر تقديم المستثنى على المستثنى منه بل لا**

وجه له، بلكه د دي سبب تاخير د كرخولو لپاره هيڅ وجه نشته دى. لان ذلك جائز باتفاق النحاة؟ اوس دا فساد د ماقبل ظاهر دى. الا لا يخفى، انه چي دا تقديم د مستثنى په مستثنى منه باندي اگر كه في نفسه جائز دى، ليكن يوجب زيادة التعقيد. هو مما يقبل الشدة والضعف

واما في الانتقال شارح عطف على سره تعين مصداقي د واو كوي چي واو، واو عاطفه دى بل څه نه صحيح كيږي، استينافيه، حاليه، اعتراضيه وغيره نه صحيح كيږي على قوله اما في النظم، دي كي يې اشاره وكړه تعين د معطوف عليه ته، اى لايكون دي كي يې اشاره وكړه قاعدي د عطف ته، قاعده د عطف دا ده چي ما قبل د معطوف عليه نه كالمعاد وي په معطوف كي، نو د اما في النظم نه مخكي ان لا يكون الكلام ظاهر الدلالة وو، نو هغه دلته كي هم را اوباسي چي ان لا يكون الكلام ظاهر الدلالة على المراد لخلل واقع، دا ټول د معطوف عليه نه مخكي وو، في الانتقال شارح ورسره ولگول في انتقال الذهن، اشاره يې وكړه چي الف لام په دي الانتقال كي الف لام عهدي خارجي دي، معهود ترينه انتقال د ذهن دى، يا الف لام عوض دى د مضاف اليه نه، مراد ترينه انتقال د ذهن دى، اوس انتقال دري څيزونه غواړي: ۱ منتقل. ۲ منتقل عنه ۳ او بل منتقل اليه، نو منتقل ذهن شو، منتقل عنه من المعنى الاول، المفهوم بحسب اللغة دى المفهوم...الخ سره يې تعين د معنى اول وكړو، الى الثاني، معنى ثاني ته، چي المقصود، چي هغه مقصود د متكلم ده، چي هغه معنى مجازي شوه، اوس وذلك سره غرض د شارح سبب بيانوي د دي تعقيد لپاره په دي انتقال كي، چي په دي انتقال د ذهن كي د معنى اولى نه چي مقصود د متكلم وه، ولي گران والى راغلى سبب څه دى؟ نو وائي وذلك، دغه تعقيد په دي انتقال ثاني د ذهن كي، بسبب ايراد اللوازم البعيدة، اوس بعيد دى دليل يې دا دى چي المفتقرة الى الوسائط الكثيرة، يعني وسائط كثيرة په كي راغلي وي، او كوم شى كي چي وسائط كثيره راشي نو هغه بعيد وي، شبه يا هلكه وسائط كثيره راغلي وي خو چي قرينه په مقصود باندي وي نو هلته كي خو انتقال گران نه وي، نو جواب يې وكړو چي مع خفاء القرائن الدالة على المقصود، مثال لكه زيد كثير الرماد، نو د دي معنى لغوي دا ده چي د زيد كره ايري ډيري دي، او معنى مقصود د متكلم دا ده چي زيد سخي دى، او د دي ډيروالي د ايرونه انتقال سخا د زيد ته گران دي، خكه وسائط كثيره راغله، زيد كره ايري ډيري دي ولي؟ خكه لرگي ډير سوزوي، يو واسطه، لرگي ولي ډير سيزي وبل اخلي پخلي ډير كوي، دريم واسطه اخلى پخلى ولي ډير كوي، خكه خورونكي ډير دي. دريمه واسطه، خورونكي ولي ډير دي خكه دى سخي دى، ميلمانه يې ډير راځي، نو دريو واسطو سره انتقال وشو، نو دا انتقال گران شو.

دارنگه لكه زيد هزال الفصيل شو، د زيد د غوا سخي خوار دى، نو دا خو يې معنى لغوي شوه، معنى مقصود زيد سخي دى، اوس دلته كي انتقال معقد شو، خكه د زيد سخي خكه خوار دى چي پي شوده هغه ته نه ميلاويږي د غوا نه، پې خكه نه ميلاويږي چي چاى كي لگي، چي ډير پخوي، چاى

ډيرې خکه پخوي چې دی سخي دی ميلمانه يې ډير راځي، دارنګه **زيد جبان الكلب** د زيد سپی بزدل دی، دا معنی لغوي شوه، او معنی مقصودي زيد سخي دي، نو دلته انتقال معقد شو سپي يې بزدل دی، خکه چې خلک ډير خي راخي، ميلمانه ډير خي راخي، ويل خکه چې زيد سخي دی، **كقول الاخر** تعين مصداقي د اخر کوي چې اخر څوك دی، **هو عباس بن الاحنف** دی، ولم يقل سره شارح شبه کوي. او بيا يې جواب کوي، دي ماتن كقوله ونه ويل حالانکه كقوله مختصر وو، **كقول الاخر** نه، او مبني د متونو بالاختصار دی، نو كقوله ويل په کار وو، جواب کوي چې **لئلا يتوهم عود الضمير الى الفرزدق**، يعني مخکې فرزدق ذکر وو، او دا شعر د فرزدق نه دی نو ضمير يې رانه وړو، او اسم ظاهر يې راوړه الاخر يې وويل شعر: **ساطلب بعد الدار عنكم لتقربوا**، اوس د تسکبُ کې قراءتونه (بلکه صحيح اعرابونه) د رفع هم شته دی، او په نصب سره اعراب هم شته دی، نو شارح نه سائل سوال وکړو چې دلته کې تسکبُ بالرفع ولولو او که تسکبَ بالنصب و وايو، نو شارح جواب وکړو چې بالرفع لوله، نصب سره يې مه لوله. اوس رفع سره خکه لوله دليل وائي شارح چې خکه چې **وهو الصحيح**، هم دراية او هم رواية، يعني هم عقلا او هم نقلاً او نصب وهم دی، لکه مطول کې يې ويلي دي چې **والنصب** وهم دی، او دراية رفع صحيح ده، او نصب وهم دی، ويل خکه چې ته چې يې د نصب سره لولې نو دوه طريقې دي، يا به دا عطف کوې په بُعدَ باندې، مؤول په تاويل د سبك سره، او يا به يې ته عطف کوې په **لتقربوا** باندې، بله وجه د نصب نشته، نو که ته دا عطف وائي په بُعدَ باندې نو د طلب لاندې داخل شو، نو معنی داشوه چې زه طلب کوم بُعد الدار او طلب کوم سبك الدموع، يعني تويول د اوښکو، نو ويل زه تانه تپوس کوم، چې دا سبك الدموع تا ته حاصل وو، او که نه نه وو، په حين د فراق کې، که حاصل وو **سبك الدموع**، او ته يې بيا طلبوي،نو دا خو تحصيل د حاصل راغلی او که سبك الدموع تا ته حاصل نه وو، په حين الفراق کې نو بيا په عشق کې ته کاذب شوې، نو دراية خو خکه دا وهم شو.

او که په دويم باندې يې عطف کوې، چې لتقربوا دی، نو هغه علت دی د **اطلب** لپاره، او دا خو علت نه شي کيدای، خکه معنی به دا شي چې طلب کوم بعد الدار چې تاسو نږدې شئ او بعد الدار سبك الدموع لپاره، نو بعد الدار خو د سبك الدموع لپاره نه طلب کيدو، بلکه خوشحالۍ لپاره طلب کيدای شو، خکه قرب خوشحالي وه.

او رواية دا رفع صحيح ده او نصب وهم دی، ويل خکه شيخ چې د دې شعر معنی کړې ده، نو اوس وروستو را روان دی نو هغه روايت د رفع سره کړی دی، نه د نصب سره، ترجمه**لتجمدا**: د دې لپاره چې دا دواړه سترګې خوشحاله شي، شاعر دا وائي چې اخر کې به دا خوشحاله شي او اوښکې به نه غورځوي، نو دا هغه د خوشحالۍ نه کناية کړې ده، اوس **جعل**: نه غرض د شارح دا دی چې يو اشاره کوي چې دلته کې دوه انتقالونه دي، دويم غرض يې دا ويل چې په دې اول کناية کې دا شاعر اصاب

دی، خکه هغې کې انتقال ګران نه دی، او دا دويمه کناية خطاء ده، خکه دی کې اخطأ دي، دريم دفع د اعتراض کوي، چې يا هلکه دي شاعر دلته کې دوه انتقالونه کړي وو، او دوه کنايې کړي وي. نو ماتن په دويمه کنايه باندې رد وکړو او په اول باندې ونه کړو دا ولې؟ ترجيح بلا مرجح راغله نو شارح جواب وکړو چې اول باندې مې رد خکه نه دی کړی چې هغې کې دې اصاب دی، او دويم باندې رد وکړو خکه دي کې اخطأ وو، نو جعل گرځولی دی دې عباس بن الاحنف سبك الدموع كناية عما يلزم، چې لازم دی دغه څيز، **فراق الاحبة،** نو ګوره جدائي د دوستانو ملزوم شو، او سبك الدموع لازم شو، نو معنی لغوي د سبك الدموع خو اوښکي تويول شو، او معنی مقصود د عباس بن الاحنف **من الكآبة والحزن،** چې زه بد حاله او خفه يم، **والحزن:** دا عطف د سبب وشو په مسبب باندې، خکه د بدحالي لپاره سبب حُزن وي خفګان وي، نو دي کې دي اصاب دی څه واسطې نشته دی، خکه د سبك الدموع سره سړی بدحاله دی او خفه دی، نو دي کې اصاب دی، خکه څه تعقيد معقيد نشته دی، خکه چې عرب سبك الدموع کناية د کآبة او د حزن نه ګرځوي، دا مشهوره ده، **لكنه اخطأ في جعل جمود العين** کنايةً عما يوجبه دوام التلاقي، نو دوام التلاقي موجب شو، او دغه **من الفرح والسرور** موجب شو' ويل اوس په دي کې دی اخطأ دی، نو دا **فان الانتقال من ....الخ،** دا دليل د اخطأ لپاره شو، د دي مدعی محذوف شوه، ويل خکه چې فان الانتقال من جمود العين الى بخلها بالدموع حال ارادة البكاء، نو د جمود العين معنی خو اوچ والی د سترګو، دا معنی لغوي شوه، او معنی مقصود دا شوه چې دا سترګي بخل کوي په اوښکو باندې په حال د اراده د بکاء کې، نو دي کې څه تعقيد نشته دی، او دا بخل بالدموع حال ارادة البكاء، دا حالت د حزن دی، دا حالت د فرح او سرور نه دی، **على مفارقة الاحبة،** نو اصل په دې شعر کې تعقيد خو نه وو، خو شاعر دغه معنی اخستو سره تعقيد په کې راوستو، لانه دی انتقال د جمود العين نه، **الى ما قصده اى الشاعر من السرور،** چې سبب دی د سرور لپاره د **الحاصل بالملاقاة** دی، نو شاعر د دې جمود العين نه فرح او سرور واخستو، نو د دي وجې نه په کې تعقيد راغلو، تعقيد معنوي، او تعقيد معنوي داسې راغلی چې وسائط کثيره خفيه په کې راخي، چې يا هلکه زما سترګې د اوښکو نه خالي دي، دامعنی د جمود العين شوه بلکه دا چې زما سترګي اوچې دي، خکه چې ويل اوښکي په کې نه دي راغلي، يو دا واسطه شوه، او اوښکي ولې نه دي راغلي ويل خکه چې زه خفه نه يمه، خکه چې فراق د احبو نه دی راغلی، دويم واسطه شوه، او چې فراق، د احبو رانشي نو خوشحاله يمه، نو درې واسطې شوې نو د دې وجې بيا ترې تعقيد جوړ شو.

اوس ومعنی البيت سره معنی د بيت کوي مطابق دشيخ سره څنګه چې هغه په دلائل الاعجاز کې کړي ده، نو وائي و **معنى البيت اني اليوم،** نو دي کې اشاره وکړه چې **ساطلب** کې سين لپاره د استقبال نه دی، سين لپاره د تاکيد دی، **اطيب نفساً،** خوشحالووم خپل نفس او تسلي ورکوم **بالبعد والفراق،** دا ئې د بعد

الدار، ترجمه وكړه **واوطنها**، او زه صبر ورکوم دي نفس ته على مقاساة الاحزان، په برداشت كولو د خفګانونو باندي، والاشواق، اوپه برداشت كولو د شوقونو باندي، په مصائب او تكاليفو باندي، و **اتجرع غصصها**، او ګوټ ګوټ څكم هغه غوټي د دي احزانو. يو غم راخي هغه مرى كي غوټه كوم هغه لاندي تيروم بل راخي داسي... ، تجرع ويلى شي اوبه څكل چي هغه مرى كي انخلي او بيا بنكته تيريږي، يتجرعه ولايكاد يسيغه، **واتحمل لاجلها حزنا**، او زه برداشت كوم د دي احزانو او اشواقو د وجي نه (اى الضمير في اجلها يرجع الى الاحزان) خفګان لره، د وتسكب **عيني** ترجمه ته راخي، داسي خفګان (اى حزناً. دا موصوف شو) يفيض الدموع عن عيني، (جمله صفت د حزناً. كاتب) دا څكه **لا تسبب بذلك** چي زه سبب جوړ كړم په دغه توطين او په تحمل سره **الى وصل يدوم**، دا يي ترجمه د **لتقربوا** وكړه، **ومسرة لا تزول**، دا يي ترجمه د لتجمد وكړه، او څكه چي **فان الصبر مفتاح الفرج** (خوشحالي) ومع كل عسر يسراً وي، ولكل بداية نهاية وي، او دا ترجمه وي ما خان نه نه ده كړي، بلكه **والى هذا اشار الشيخ عبد القاهر في دلائل الاعجاز** شبه يا هلكه څه نوري ترجمي خو هم وي كنه، تا هغه ولي ونه كړي، نو وائي **وللقوم ههنا كلام فاسد اوردناه في الشرح** ويل دا مختصر دى اوپه مطول كي هغه مونږ راوړي دي.

هغه كي يي دا راواړي چي خنو د دي شعر دا ترجمه كړي ده چي شاعر عباس بن الاحنف وائي چي تر اوسه پوري ما د يو شي اراده كوله او زماني به زما د مقصودو مطلوب عكس را وستلو، نو ما اراده د وصال كوله نو زمانه به ولګيده فراق به يي راوسته، او ما به اراده د سرور كوله او زماني به حزن راوستو، او زه د دي زماني په دي چل باندي پوهه شوى نه وومه، اوس ويل پوهه شوم چي زمانه ويل ما سره ضد كوي، زما چي كوم مقصود وي نو دا د هغي نقيض راوړي، نو ما اوس د دي نه پس دا شروع كړو چي **ساطلب بعد الدار ...الخ**، نو زمانه به ولګي لتقربوا بـه وكړي، احبة به ماته نږدي كړي، او د تسكبَ عيناي الدموع، زه به خان خفه كوم بدحالي بـه خان باندي راولم نو زمانه بـه خوشحالي راوړي، اى لتجمدا، اوس شارح ديته فاسداً وويل نو دا فاسد د دي وجي نه دى چي زمانه چي نقيض د مطلوب او عكس چي راوړي نو په واقع كي راوړي، **ويظهر للمرء** لپاره، خو نقيض او عكس د مطلوب نه راوړي، خو د يو سړي مقصود يو وي اوپه واقع كي زمانه بل شى ظاهر كوي، او زمانه دا نه وائي چي د ده سره زما دشمني ده، خو تاسو د دي هم جواب كولى شئ اګر چي شارح فاسد ورته وويل، چي يا هلكه شاعران خو **في كل واد يهيمون** دي كنه، نو هغوى دا وائي چي بس دا زمانه مونږ سره عداوت كوي نو جواب د دي داشو، دريمه ترجمه د دي شعر مبرد كړي ده، چي دغه شاعر خوار او فقير وو نو دي يو خاى ته مزدورى ته تللو نو د ده اهل او عيال ژړا كوله، نو په تسلى كي ده دا وويل چي **ساطلب بعد الدار** چي اوس خو ستاسو نه خم او لري سفر كوم تجارت لپاره، خو هلته كي پريمانه پيسي وګتم او بيا بـه لتقربوا تاسو بـه نږدي شئ، بيا به هميشه په يو خاى كي كينو، **وتسكب عيناي الدموع**، اوس خو زه خفه يم بدحالي يم، خو

شواهدو ته خو بيا ضرورت رانغلو، نو د دې توهم دفع شارح وکړه چې **دالة على نجابتها**، چې يا هلک داسې شواهد چې هغه دال وو، په کړه والې د دې آس باندې چې دا دير کره آس دى، او د **نجابت** وصف لپاره شواهد په کار دي خکه هغه محسوس نه دى

**قيل** سره غرض: ذکر د اعتراض د زوزنې دى چې هغه په ماتن باندې کړى دى، چې يا هلکه دا مثال مطابق د ممثل سره نه دى، خکه ممثل ستا كثرة التكرار وو، او تکرار وائي مجموع الذكرين ته مجموعه د دوو څيزونو، او بيا مجموعه د دوو، نو اول مجموعه د دوو دا اصل راغلى، او بل مجموعي د دوو سره تکرار راغلى دريم واري مجموعي سره كثرة راغلى، نو نفس تکرار حاصليږي په تربيع سره، او كثرة حاصليږي، په تسديس سره، او په بيت کې نه تربيع شته او نه تسديس شته، بلکې بيت کې تثليث دى، چې لها، عنها، عليها، درې پيرې يې ويلى دى، نو شارح راغلى د ماتن د طرف نه د دې اعتراض جواب کوي زوزني ته چې تا ته دا چا ويلي دي چې تکرار عبارة دى د مجموعة د ذکرينو نه، تکرار وائي، ذكر الشئ مرة بعد اخرى، مثلاً اوس تا يو خل يو شى ذکر کړو، نو دا اصل راغلى. دويم پيرې تا ذکر کړو نو تکرار راغلى، دريم پيرې دې ذکر کړو نو كثرت راغلى، نو تثليث سره كثرة حاصل شو، اوس شبه راغله چې يا هلکه كثرة خو جمعي ته وائي، او اقل د جمعي درې دي، نو اول خل ذکر کړو نو اصل راغلى دويم پيرې نو تکرار راغلى نو دوه پيرې نور ذکر کړه نو هله به كثرة راځي، خکه چې نصاب د جمع به هله پوره کيږي، نو په دې معنى سره خو به بيا كثرة په تربيع سره راځي، او په بيت کې خو تثليث دى تربيع خو نشته دى، تاسو جواب وکړئ چې دلته کې جمع لغوي مراد ده، يعني ما فوق الواحد ترې مراد ده، لکه مطول کې يې ويلي دي، جمع اصطلاحي مراد نه ده **ولا يخفى انه لا يحصى كثرته بذكره ثالثا** دا خو زوزني وويل، اوس شارح پرې شبهه کوي چې **وفيه نظر لان المراد بالكثرة ههنا ما يقابل الوحدة ولا يخفى حصولها بذكره ثالثا**، ترجمه، مطلب اسان دى فتركت الاول ولم يذكر الشيخ الثاني فافهم **وتتابع الاضافات** دې کې شارح اشاره وکړه چې تعدد د مثال بناء دى په تعدد د ممثل باندې، خکه ممثل دوه وو، نو دويم مثال د ممثل ثاني دى، كقوله: لکه دا قول د ابن بابك شه، شعر:

حمامة جرعى حومة الجندل اسجعي
فانت بمرأى من سعاد ومسمع

اوس دا مثال مطابق د ممثل سره دى، خکه ويل ففيه اضافة حمامة الى جرعى او جرعى اضافت راغلى حومة ته (الى حومة)، او د حومة اضافت راغلى الى الجندل جندل ته، اوس **والجرعاء** سره شارح شبه کوى، او بيا وروستو جواب کوي، شبه چې يا هلکه جرعى مؤنث د اجرع ده، او د اجرع مؤنث جرعاء راځي، او دلته کې شاعر جرعى، مقصور ويلى دى، دا خو صحيح نه ده، نو دې جواب کوي چې **والجرعاء تانيث الاجرع، قصرها للضرورة**، دا جواب شو چې دائې مقصور کړى د ضرورة شعري د وجې نه.

اوس تفسير د الفاظو غريبو کوي، جرعى وائي **وهي ارض ذات رمل** هغه زمکې ته چې خاونده د شګو

تبوس كوم **ان لثقل اللفظ بسببه** (**اى بسبب كل**) لاى سبب كل من كثرة التكرار وتتابع الاضافات) **على اللسان** نو فقد حصل الاحتراز عنه بالتنافر، خلوص د دي نه هم شو، **والا** او كه دغه كثرة التكرار وتتابع الاضافات ثقيل نه وو په ژبې باندې نو بيا **فلا يخل بالفصاحة**، اوس د دې ملازمې دليل چې **والا لم يخل**... هغه دا دى چې **كيف** څنګه به مخل بالفصاحت شي حال دا دى چې **وقد وقع في التنزيل**... قران كې كثرة د تكرار شته دى، او تتابع الاضافات شته دى، **د تتابع الاضافات** مثال، لكه مثلُ داب قوم نوح، مثل مضاف داب ته داب قوم ته او قوم نوح ته، او بل مثال، **ذكر رحمة ربك عبده**، ذكر مضاف شو رحمة ته او رحمة رب ته او رب كاف ته، نو تتابع د اضافاتو راغله، كثرة د تكرار لكه **ونفس وما سواها، فالهمها فجورها وتقواها** نو دې كې كثرة د تكرار راغلى او دا مخل بالفصاحة نه دى.

هر كله چې فارغ شو مصنف د فصاحة الكلام نه نو اراده د شروع يې وكړه، په فصاحة المتكلم كې نو وي ويل چې **والفصاحة في المتكلم**، نو شارح ورسره لګوي چې **وهي كيفية** د دې نه غرض د شارح تعريف د ملكې كوي اولاً، ځكه چې لفظ د مَلكې په تعريف د فصاحة المتكلم كې راغلى نو د دې تعريف كوي، بيا تعريف د كيفيت كوي ثانياً، ولې؟ ځكه په تعريف د ملكه كې كيفيت راغلى، نو ملكه به ته هله پيژنې چې ته كيفيت وپيژنې چې د كيف تعريف څه دى؟ بيا فوائد بيانوي د قيوداتو د تعريف د كيف ثالثاً، **فخرج بالقيد الاول** سره، او دفع د اعتراض كوي د ماتن نه رابعاً، په دې قول سره چې **قوله ملكة** نو تر هغه يقتدر (متن آتى) پورې د شارح څلور اغراض شو.

اوس اول د مَلكې تعريف كوي، نو وائي چې وهي اى دا ملكه، **كيفية** يو صفت وجودي دى، كيفيت نه مراد صفت وجوديه، يعني هغه صفت چې هغه په موصوف كې موجود دى، اوس كوم صفت چې په موصوف كې موجود وي نو دا دوه قسمه دى، يو هغه دى چې ابتداء كې موجود شي، لكه كتابت په انسان كې ابتداء راشي، نو هغې ته حال ويلى شي، او دويم صفت وجودي هغه دى چې هغه په موصوف كې راسخ شوى دى، لكه كتابت په انسان كې موجود شي، پس داستمرار او دوام نه، او پس د ممارست نه، نو ديته قسم صفت وجودي ته ملكه ويلى شي نو **راسخة** سره حال خارج شو، نو دا صفت به په چا كې وي په اجسامو او محسوساتو كې به وي او كه نه، **في النفس** يعني كيفيت نفسانيه به وي، اوس د كيفيت تعريف كول په كار دي، ځكه د ملكې په تعريف كې كيفيت راغلى، نو: **والكيفية عرض لا يتوقف تعقله، اى تصوره على تعقل الغير ولا يقتضي القسمة واللاقسمة في محله اقتضاء اوليا**، په غوښتنې بالذات سره، اولياً: په معنى د بالذات سره شو، بالذات نه قسمت غواړي او نه لاقسمت غواړي، نو كه معترض شبه وكړي چې يا هلكه بنا په دې باندې ارتفاع د نقيضينو راغله، چې دې تقاضه د قسمت هم نه كوي او د لاقسمت هم نه كوي، نو دا خو نقيضين پورته شو، نو تاسو وايئ چې دا ارتفاع د نقيضينو د مرتبې نه ده، او دا جائز ده، او ارتفاع د نقيضينو د مرتبې نه مطلب دا چې دا قسمت و لاقسمت د دې مفهوم كې داخل نه دى، دا

المتكلم صفة دی، نو ده جواب وکړو چې ملکة ماتن وویل او صفة يې ونه ويل، وائي اشعار په دې کې خبرداری دی، دا جواب شو. **بانه لو عبر عن المقصود بلفظ فصيح لايسمى فصيحاً في الاصطلاح ما لم يكن ذلك.** دا وصف راسخ په متکلم کې نو ملکة کې ديته اشاره وشوه، او د صفة اطلاق په حال باندې هم کيده، نو که هسې يو متکلم قادر شو د مقصود نه په لفظ فصيح باندې، خو دغه رسوخ په کې نه وو شوې. يعنې هسې د ړوند د لاس غرګی وو، نو ديته متکلم فصيح نه شي ويلې، هله ورته ويلی شي چې دا صفت په کې ښه راسخ شي، مضبوط او دائم شي، نو ملکة يې ځکه وويل، **وقوله**، سره غرض د شارح په دې **قوله** سره شبه کوي، او **اشعار** سره جواب کوي، نو دا وائي **قوله ای** الماتن چې **يقتدر المتكلم بها**، ای بالملکة په دغې ملکې سره، على التعبير عن المقصود دا يې وويل، او دون ان يقول يعبر، يعنې يُعبر يې د يقتدر په ځای ونه ويل، او حالانکه يعبر ويلو کې اختصار وو، او **يقتدر بها عن التعبير** کې طوالت وو او مبنی د متونو هم په اختصار ده، ځکه يقتدر بها على التعبير کې اوږدوالی دی او يعبر کې اختصار دی، نو دا طوالت ختميدو، نو په کار وه ماتن له چې يعبر ويلی دی خو دا يې ولې ونه ويل او يقتدر يې ولې وويل؟ نو شارح جواب کوي **اشعار** داسې يې کړی دی لپاره د خبر داری ورکولو بانه چې دغه متکلم يسمى فصيحا، مسمى کولی شي په فصيح سره **اذا وجد فيه تلك الملكة** (ترجمه) نو چې دغه ملکه په متکلم کې موجوده شوه، نو ديته فصيح ويلی شي، **سواء وجد التعبير** يعنې تعبير بالفعل موجود دی، او لم يوجد، اوس که يُعتبر يې ويلی وی نو بيا خو به يې متکلم ته فصيح هله ويلی کيدای چې بالفعل يې تعبير کولی په لفظ فصيح سره، او يقتدر چې يې وويل نو تعبير بالفعل کوي، او که نه کوي خو چې دغه ملکه وی نو ده ته فصيح وائي.

**وقوله** سره اعتراض کوي، چې يا هلکه تا داسې وويل چه **بلفظ فصيح** نو داسې دې ولې نه ويل چې **بكلام فصيح**، او د مقصود نه تعبير هم په کلام فصيحه سره کيږي په مفرد سره نه کيږي، ځکه کلام فصيحه کې فائده استفاده شته دی، او مفرد کې خو فائده استفاده شته دی، نو **بكلام فصيح** ويل په کار وو، نو شارح جواب کوي، چې **ليعم المفرد والمركب**، چې ماتن دغسې وويل چې بلفظ فصيح او بكلام فصيح يې ونه ويل د دې لپاره چې دا بلفظ فصيح شامل شي مفرد ته هم او مرکب ته هم؛ معترض شبه وکړه چې مرکب کې خو ظاهر دی، چې هلته کې تعبير د مقصود نه په مرکب سره خو کيدای شي، ليکن تعبير د مقصود نه په مفرد سره خو نه شي کيدای، هلته څه کوي؟ ځکه مفرداتو کې خو فائده استفاده نشته دی، نو دی وائي: **اما المركب فظاهر** چې فائده او استفاده په کې نشته دی؟ **واما المفرد فكما تقول**، چې يا هلکه هلته کې مفرد کې اګر چې فصاحت په هر ځای کې نه راځي، خو بعضې اوقاتو کې راتلی شي، کله ته وائي، **عند التعداد**، چې ته هغې ملقی باندې اشياء شماروی، لکه ما تا ته وويل چې بره دې بازار ته لاړ شه يو ما لپاره دار واخله، يو غلام، يو جاريه، بل ثوب، بل بساط، بستره، ته بازار ته لاړې، نو تا

هغوي وائي چي مطابقت عبارت دی، د صدق نه، او مقتضى الحال عبارة دی د کلام کلي نه. د خصوصيت نه نه دی عبارت، اوس مثلاً مخاطب کي انکار دي د حال نه، نو انکار د قيام د زيد نه. دا حال شو، او مقتضى الحال، کلام مؤکد شو، تاکيد نه، بلکه مقتضى الحال کلام مؤکد شو. او مطابقت عبارة شو د صدق د دي کلام مؤکد نه په دی **ان زيداً لقائم** باندي، چي دغه کلام مؤکد صادقيږي، په **ان زيداً لقائم** باندي، او داسي ويلی کيږي، چي **ان زيداً لقائم**، کلام مؤکد، څلورم غرض د شارح ترجيح ورکوي، مذهب د محققينو ته په مشهورينو باندي په دي قول سره چي **فارجع الى ما ذكرنا في الشرح في تعريف علم المعاني**، چي په تعريف د علم المعاني کي مذهب د محققينو صحيح کيږي او د مشهورينو نه صحيح کيږي، نو مذهب د مشهورينو مرجوح شو، او د محققينو راجح شو.

نو اوس راغلی د والحال تفسير کوي، شبه نو والحال خو مضاف اليه وو، نو د دي تفسير يي ولي مقدم کړو، د مضاف اليه تفسير مقدم کول په کار وو، جواب نو تاسو وائي چي دا اگر چي په لفظ کي مضاف اليه وو، خو په معنی کي دي سبب وو، او مقتضى الحال مسبب وو، او سبب مقدم وي په مسبب باندي، نو تفسير يي وکړو چي حال امر داعي ته وائي، هغه امر ته وائي چي هغه باعث وي په جانب د مخاطب کي، لکه انکار شو، خلو د ذهن شو، انکار شديد شو، انکار ضعيف شو، يا هغه حال چي هغه داعي دی حذف د مسند اليه ته يا ذکر ته يا تعريف يا تنکير ته، **الى ان يعتبر** کي شارح دفع د توهم کوي، چي يا هلکه دغه حال چي داعي دی د مقتضى لپاره نو اعتبار متکلم وکړي، او که ونه کړي نو دا به د مقتضى الحال لپاره داعي کيږي، نو هسي يو سړی د قيام د زيد نه منکر وو، نو تا قصداً ونه ويل، هسي اتفاقاً د رانده د لاس غرگی وو، تا وويل: **ان زيداً لقائم**، نو دي ته خو فصاحت نه شي ويلی، خکه متکلم خو قصداً د مطابقت نه دی کړی هسي يي د خلي نه دا خبره مطابق د حال سره را اووته، نو دلته کي دا داعي شو، ليکن اعتبار او قصد د متکلم لره خو دخل نشته، نو دا دي بليغ شي، او ديته خو څوک بليغ نه وائي، نو شارح جواب وکړو په دي تکي سره چي الى ان يعتبر، چي يا هلکه اعتبار او قصد د متکلم شرط دی، چي متکلم قصد او اعتبار د دغه امر داعي به رعايت کړی وي.

دويم توهم دا راغلی چي يا هلکه دغه حال چي امر داعي دی د مقتضى لپاره نو دا مقتضى به مستقل په تلفظ کي وي؟ چي انکار مثلاً په متکلم کي راغلی، نو انّ به وائي، يا انّ لّ به وائي، په تلفظ کي به دي مستقل داعي وي د مقتضى لپاره؟ نو شارح جواب وکړو چي نه، **مع الكلام** چي دا داعي د دي مقتضى لپاره سره د کلام نه به وي، او خيله په تلفظ کي به مستقل نه وي، نو دا دويم توهم يي دفع کړو د دي مع الكلام سره، الذي (صفت للكلام) يودي **به اصل المراد**، نو که الى ان يعتبر شي په صيغي د معلوم سره، نو بيا ضمير راجع دی، متکلم ته، او خصوصيةً ما، دا مفعول شو، او که ان يُعتَبَر شي په صيغه د مجهول سره نو بيا خصوصية ما، مرفوع شو نائب فاعل شو، يو خصوصيت د خصوصياتو

نه، دا ما، د تاكيد د دې ابهام لپاره شو خو تعيين نشته دی، وهو مقتضى الحال، غرض د شارح په دې باندې، تفسير د مضاف كوي چې مقتضى ده او دويم دفع د توهم كوي. چې يا هلكه الى ان يعتبر مع الكلام الذى...الخ دا بـه د دې حال د تعريف نـه بـه جزء وي؟ نو شارح جواب وكړو (چې نه دا دحال د تعريف نه جزء ندی دا مقتضي الحال دی د حال تعريف په دې تكي ختم شو چې هو الامر الداعي، يعنې دا خصوصية مقتضى الحال دی، او تذكير د ضمير په وهو مقتضى ...الخ كې لپاره د رعايت د خبر دی، اوس شارح مونږه تاسو په مثال جزئي سره پوه كوي، وانې مثلا كون المخاطب منكرا للحكم يعنې د نسبت د قيام د زيد نه منكر وي حال دی، تقتضي تاكيد الحكم، نو دا تاكيد مقتضى الحال (بالمفعول) شو، او حال مقتضى (بالفاعل)، او مطابقت څه معنى؟ وقولك له د دې مخاطب منكره لپاره چې ان زيدا في الدار په حال كون د دې قول كې چې مؤكد دې په ان سره اى مؤكدا بـان دا كلامٌ مطابقٌ لمقتضى الحال، نو مطابقت په معنى د اشتمال سره شو، او وتحقيق ذلك، نه مذهب د محققينو بيانوي، خو په دې دوو الفاظو كې، حال كې اتفاق دی، چې دا امر داعي دی په هغې كې دا دوه مذهبونه ندي، خو په مطابقت او مقتضى الحال كې مذهب د محققينو جدا دی، نو اشاره يې وكړه چې دا مخكښيني مذهب د مشهورينو وو، اوس مذهب د محققينو ته وانې غوږ كيږده، نو وانې وتحقيق ذلك، چې تحقيق د دې مطابقت و مقتضى الحال دا دی لانه، چې دغه كلام مذكوره چې ان زيدا في الدار دی، دا من جزئيات ذلك الكلام، دا جزئياتو د دې كلام نه دی هغه كلام تقتضيه الحال، نو حال تقاضه د كلام مؤكد كوله او كلام مؤكد د جزئياتو نه ان زيدا في الدار، هم يو جزء يې دی، د هغې د افرادو نه يو فرد دی، ويل خكه چې فان الانكار مثلا، دا خوحال شو، يقتضي كلاماً مؤكداً دا مقتضى شو وهذا او دغه كلام جزئ چه ان زيداً في الدار دی مطابق لـه مطابق دی د دې كلام مؤكد سره، مطابق د هغې بمعنى انه صادق عليه، چې دغه كلام مؤكد كلي صادق دی په دې كلام جزئي باندې چې ان زيداً في الدار دی يعنې داسې ويلى كيږي چې ان زيدا في الدار، كلام مؤكد، نو معترض راغلى هغه شبه وكړه چې يا هلكه دلته كې تا نسبت د صدق مطابق ته وكړو، او منطقيان نسبت د صدق مطابق ته كوي، خكه چې دلته كې دغه كلام جزئي مطابق شو، او دا كلام مؤكد مطابق شو، هغوى وانې الكلي مطابق للجزئيات، نو كلي مطابق شو او جزئيات مطابَق شو،نو شارح جواب كوي چې دا اصطلاح گانې جدا جدا دي، ولا مشاحة في الاصطلاح، هغوى نسبت مطابق ته كوي، او علم معاني والامطابق ته كوي، نو هيڅ باك نشته، على عكس ما يقال ان الكلي مطابق للجزئيات، يعنې صادق دی على الجزئيات، خو دغه عكس والى هسې عنوان كې دی، هسې خوله كې دی معنون بيا هم يو دی، خكه چې هلته كې چې بې ويلې چې وهذا مطابق له، دغه مثال جزئي مطابق دی د دې كلام مؤكد سره، نو د دې مطلب هم دغه دی، چې كلام مطابق صادق شو په دې كلام جزئي باندې، نو دا عكس په اعتبار د عنوان سره دی، نه په اعتبار

د معنون سره بلکه معنون په لحاظ سره دواړه يو دي خکه د دي مطلب دا شو چي کلي صادقيږي په جزئي، او د هغوى مطلب هم دا دى چي كلام مؤكد صادق دى په كلام جزئي باندي، اوس شارح هغه څلورمه خبره ذكر كوي چي ان اردت تحقيق المقام ثابتول د دي كلام په دلائلو سره، چي د مطابقت معنى صدق دى، او مقتضى الحال عبارت دى د كلام مؤكد نه، ته دليل غواړي چي دا دويم مذهب تحقيقي ولي شو، خكه تحقيقي شي بغير د دليل نه نشي كيداى، نو ويل دلته كي نه شم ذكر كولى، دا مختصر دى، فارجع الى ما ذكرناه في الشرح في تعريف علم المعاني.

ماتن وويل وهو شارح ورسره لګوي اى مقتضى الحال دي كي شارح اشاره وكړه تعيين د مرجع ته چي مقتضى الحال مختلف دي يو نه دى، ويل خكه چي فان مقامات الكلام متفاوتة، دا دليل شو، شارح د دليل لپاره دليل واني ديته تدقيق وائي، چي يا هلكه مقامات الكلام متفاوت كيدو سره مقتضى الحال ولى متفاوت كيږي؟ نو واني خكه چي لان الاعتبار اللائق بهذا المقام چي خلوٓ وي د تاكيد نه بغاير الاعتبار الائق بذاك په دي مقام سره چي هغه خلوٓ د ذهن دى، نو مقتضى د حال مختلف شوه د مقامات الكلام د وجي نه، خكه چي يو كي مقام انكار وو، نو هلته كي تاكيد راغى، بل خاى كي خلوٓ د ذهن وه نو هلته كي خلوٓ د تاكيد نه راغلى، وهذا عين تفاوت مقتضيات الاحوال، د دي نه غرض د شارح دفع د اعتراض كوي، اعتراض پري دا وارد شو چي يا هلكه قانون دا دى چي مقتضى كي اختلاف چي راخي نو د وجي د مقتضى نه راخي، نو د مقتضى مقتضى حال وو، نو چي حال مختلف شي نو مقتضى مختلف كيږي، نو داسي ويل په كار وو چي فان احوال الكلام متفاوتة او تا په دليل كي اى ماتنه فان مقامات الكلام وويل، نو مقامات خو مقتضى د مقتضى الحال نه دى، نو شارح جواب وكړو چي وهذا چي دغه تفاوت د مقاماتو د كلام عين تفاوت مقتضيات الاحوال دي، نو څنګه چي د مقاماتو اختلاف سره مقتضى د حال مختلف كيږي نو دا عين دى د مقتضيات الاحوال سره، چي د احوالٌ په مختلف كيدو سره مقتضيات د احوالو هم مختلف كيږي، ويل د ا دواړه يو شى دى، ولى يو دى؟ لان التغاير بين الحال والمقام انما هو بحسب الاعتبار يعني تغاير په دي دواړو كي حال او مقام كي بحسب الاعتبار دى، هسي فرق اعتباري دى او ذات د دواړو يو دى، نو دلته كي دوه دعوى شوي ۱ يو دعوى دا چي ذات او ماهيت د مقام او د حال يو دى ۲ دويمه دعوى ده چي حال او مقام كي فرق اعتباري شته دى، تغاير اعتباري شته دى، د اول دعوى اثبات شارح په شرح كي نه دى كړى، د ظهور د وجي نه چي حال هم مثلاً دى انكار ته وائي او مقام هم دي انكار ته وائي، نو ذات يو شو، او دويمي دعوى اثبات شارح كوي چي دي حال او مقام كي فرق اعتباري شته دى، وهو، ويل هغه تغاير اعتباري دا دى چي ان يتوهم چي توهم كولى شي په حال كي، في الحال، كونه زمانا لورود الكلام فيه، وفي المقام. او توهم كولى شي په مقام كي كونه محلاله، كون د دي مقام محل لپاره د دي ورود د كلام يعني دغه يو انكار دى په مخاطب كي،

چې دا يو حال دی چې انکار دی د قيام د زيد نه، دې کې تا دا لحاظ وکړو چې دغه انکار د قيام د زيد نه زمانه ده د پاره د ورود د کلام مؤکد چې **ان زيدا لقائم** دی، نو ديته حال ويلی شي، او که دې کې تا دا توهم وکړو چې دغه انکار دقيام د زيد نه، مکان دی، محل دی لپاره د ورود د کلام مؤکد چې **ان زيدا لقائم**، دی، نو ديته مقام ويلی شي، نو فرق اعتباري شو. او دا يُتَوَهَّمُ يې خکه وويل چې په واقع کې دا انکار نه زمان دی او نه مکان دی.

دويم دليل د تغاير لپاره شارح په مطول کې ويلی دی، او دلته يې نه دی ويلی، هلته کې يې دا ويلي دي چې د حال اضافت کيږي مقتضی ته، لکه حال الانکار، حال خلو الذهن، حال الشك. او د مقام اضافت کيږي مقتضی ته، لکه مقام التنکير، مقام الاطلاق، مقام الذکر، مقام التقديم، نو په دې اعتبار سره فرق اعتباري راغلی، دغه يو انکار دی که ديته اضافت د حال اوشي نو ديته حال وائي، او دغه يو انکار دی که اضافت اوشي مقتضی ته نو ديته مقام وائي.

اوس شارح وائي **وفي هذا الكلام**، غرض د شارح د دې عبارة نه غرض د مصنف بيانوي چې د دې ماتن غرض د دې عبارة نه چې **وهو مختلف** نه څه غرض دی؟ نو شارح وائي د ماتن دوه غرضه دي: ١ يو غرض يې اشاره اجمالي ده ضبط د مقتضياتو د احوالو ته، ضبط د مقتضيات د احوالو ته داسې اشاره وشوه چې مقتضيات د احوالو درې قسمه دي، يو قسم هغه وي چې هغه خاص دی اجزاءُ د جملې واحدې پورې، دويم قسم هغه دی چې هغه په اجزاءُ د جملتينو فصاعداً کې راځي، او دريم قسم هغه دی چې هغه نه جمله واحدې پورې خاص وي او نه جملتينو پورې، بلکه دواړو کې راځي، نو اول قسم ته يې اشاره وکړه په **فمقام كل من التنكير** سره او دويم قسم ته يې اشاره وکړه په **ومقام الفصل يباين مقام الوصل** سره، او دريم قسم ته يې اشاره وکړه په مقام الايجاز يباين مقام خلافه سره، نو دا اشاره يې وکړه خو دا اجمالي ده، د دې تفصيل وروستو علم معاني کوي.

او دويم غرض د ماتن د دې عبارة نه دا دی چې **وتحقيق لمقتضى الحال** په دې کلام کې ثابتول دي مقتضی الحال لره، ثابتول دا معنی چې مقتضی الحال مصداق لري، مفهوم بلا مصداقه نه دی د عقلاء پشان، بلکه د مقتضی الحال مصداق شته دی، د دې د وجې نه يې اخر کې ويلي **فمقتضى الحال هو الاعتبار المناسب فمقام كل من التنكير والاطلاق والتقديم والذكر يباين مقام خلافه**، نو اوس شبه راغله چې يا هلکه ضمير په خلاف کې يا به ته راجع کوي مجموعه ته يا به راجع کوي کل ته، بل احتمال خو نشته دی، نو که مجموعه ته يې راجع کوي نو بيا ترجمه دا شوه چې مقام د هر يو د تنکير نه مباين دی، د مقام د کل نه، نو مقام د تنکير صرف مباين د مقام دتعريف نه دی د کل نه خو نه دی، نو دا خو صحيح نه شو، خکه تنکير صرف مخالف د تعريف نه دی کل نه، مجموعه نه دی مقام د اطلاق صرف مخالف د تقيد نه دی، مجموعه نه مباين نه دی، او که ضمير راجع کوي **كل منها** ته نو بيا هم دغه شبه راځي، مآل يو

دی، خکه چې مقام د تنکیر مباين صرف د تعريف نه دی د کل نه نه دی، د خپل مقابل نه مباين دی او کل نه نه دی، نو شارح اختيار د شق ثاني وکړو چې **کل منها**، اوس تا ويل چې خلاف د کل نه خو نه دی صرف د خپل مقابل نه مباين دی، نو تاسو وايئ چې ضمير راجع شو کل ته، نو دا په معنی کې جمع شوه، او مخکې هم جمع وو، او جمع چې مقابل د جمع راشي نو تقسيم د أحادو په أحادو باندې کيږي. نو دا د قبيلې د رکبوا دوابهم او د لبثوا ثيابهم نه شو، **يعني للقام الذي يناسبه تنكير المسند اليه** غرض د شارح د عبارة نه يو تفصيل کوي د دې متن، تشريح د متن کوي، دويم دفع د اعتراض کوي چې يا هلکه دمقام اضافت تا تنکير ته وکړو، حالانکه د مقام اضافت خو تنکير ته نه کيږي، بلکه د مقام اضافت کيږي کلام ته يا اجزاء د کلام ته، مقام د تنکير نه وي، جواب کوي چې اضافت د مقام تنکير ته د وجې د ادنی ملابست نه دی، خکه چې د تنکير نه مراد، تنکير د مسند اليه وو، او مسند اليه جزء د کلام وو، او تنکير صفت وو، نو مقام خو صفت د مسند اليه وو، خو تنکير ته يې د دې وجې نه وکړو چې تنکير صفت د مسنداليه يا د مسند دی، مثال د هغه مقام چې هغې سره مناسب تنکير د مسندالیه وي لکه اجل جاء شو، نو دغه مقام مقام د تنکير د مسند اليه دا مباين دې د هغه مقام نه چې د هغې سره مناسب تعريف د مسند اليه وي، لکه زيد قائم شو، يا مقام د تنکير د مسند، لکه زيد قائم شو دا مباين دی د هغه مقام نه چې مناسب وي د هغې سره تعريف د مسند، لکه زيد القائم شو، «دا مخکې قوله ترجمه ومطلب شو د **والمسند يباين القام الذي يناسبه التعريف** خو استاد محترم الفاظ ونه ويل» ومقام اطلاق الحکم، يعني اطلاق د اسناد په مابين د مسند اليه کې، د دې حکم نه مراد اسناد دی، لکه زيد قائم کې، نو زيد قائم کې دا کوم اسناد چې دی دا مطلق دی، دا عبارة اوس داسې لګوئ چې **مقام اطلاق الحكم يباين مقام تقييده بمؤكد** لکه چې ان زيداً قائم دی، او اداة قصر دا هم دې سره لګوئ، چې اطلاق د حکم لکه زيد قائم کې شو، چې دلته کې مسند قائم دی مطلق دی، دا مباين دی د مقام د تقيد د دې حکم سره په ادواتو د قصر سره چې ما زيد الاقائم شو، نو دا دواړه ( **مقام تقييده او اداة قصر**) ولګيدل د دې اطلاق الحکم سره، اوس تعلق ته راشئ، وي **مقام اطلاق التعلق**، تعلق دلته کې عبارة دی د تعلق د مسند نه خپل معمول پورې، نو ګوره تعلق راځي مسند او معمول کې او حکم راځي په مسند او مسند اليه کې، نو مقام د اطلاق د تعلق د مسند خپل، لکه ضربت زيداً کې شو، نو اوس د ضربت نسبت زيداً ته دغه تعلق مطلق دی دا يباين تقييده، مباين دی د تقييد د دې تعلق نه باداة قصر په اداتو د قصر سره، نو دا مقام تقييده بمؤکد او اداة قصر دواړه د اطلاق الحکم سره لګي او د تعلق داطلاق سره صرف باداة قصر لګي. فافهم مثال د اطلاق التعلق چې مباين وي د مقام د تقييد د دې نه باداة قصر لکه ما ضربت الازيداً نو دا مباين شو، نو ګوره دا تقييده بمؤکد صرف اطلاق الحکم سره ولګيدو، او اداة قصر دواړو سره ولګيدو، نو د ناکت دا نکته چې **راجع الى اطلاق**

وائي يا هلكه دلته دا مقام الوصل مختصر اختصر هم دی او اظهر هم شو، هلكه اخصر دی خكه چي الوصل كي څلور حروف دي لام دي واو، صاد، لام او همزة وصليه په درج كي ساقط دي او خلافه كي پينځه حروف دي، خ، ل، ا، ف، ه او څلور په نسبت سره پينځو ته اخصر وي، دويم دا چي د الوصل اظهر هم دی **لان خلاف الفصل انما هو الوصل** خكه چي خلاف د فصل صرف وصل دی، نو كه اوس داسي ماتن ويلي وي چي **بيابن مقام خلافه** نو بيا دا توهم به كيدو چي يا هلكه د فصل خلاف به ډير څيزونه وي، دوه، درې، څيزونه به يې خلاف وي، او دوه، درې څيزونه نشته دی، يو شی دی چي وصل دی، بيا شبه راغله چي يا هلكه بيا دا **ومقام الايجاز يباين مقام خلافه** دا ماتن ولي جدا كرى دی؟ دا هم مخكي دا خلول په كار وو كنه، نو شارح جواب وكړو **وللتنبيه على عظم الشان** ويل دا لپاره د خبر دارې ورکولو د ماتن دی په لوی والي د مرتبې باندې فصّل قوله ،نو كه اوس معترض شبه وكړي چي يا هلكه مخكي تا ويل چي عظيم الشان باب دَ فصل او وصل دی اوس دلته كي تا وويل چي عظيم الشان ايجاز او اطناب او مساوات دی، نو دوه څيزونه، دواړه عظيم الشان نه شي كيداى، نو تاسو وايئ چي د فصل او وصل دا عظمت د شان په اعتبار اومعرفت سره وو، او د دې ايجاز او د خلاف د ايجاز عظمت د شان په اعتبار د مسائلو سره دى، نو د فصل او وصل عظمت په اعتبار د معرفت وو، چي پيژندل يې ډير لوی كار وو، او دلته عظمت باعتبار المثل وو، عظمت په يو جهت سره نه شو بلكه په جهتينو سره شو، **ومقام الايجاز يباين مقام خلافه** اى، د خلاف تعيين مصداقي كوي، چي **الاطناب والمساواة، وكذا خطاب الذكي مع خطاب الغبي** وائي دغسي خطاب د ذكي مخاطب سره مباين دی، دي سره خطاب د خطاب د غبي مخاطب نه، اوس ګورئ په دي كذا كي دوه احتمالين دي، يو احتمال دا دی چي د دي كذا په ذا كي اشاره ايجاز ته وكړي نومعنى دا شوه چي په شان د دي ايجاز خطاب الذكي دى مع خطاب الغبي، نو ايجاز او مخالف د ايجاز مشبه به شوه او خطاب الذكي مع خطاب الغبي دا مشبه شو، او اله د تشبيه په كي كاف شو، وجه د شبهې تباين مقامي شو، يو توجيه دا ده، دويمه توجيه دا ده چي كذا كي يې اشاره ايجاز ته اونكي، مقام الايجاز ته وكړي، نو مقام الايجاز مشبه به شوه، او خطاب الذكي او خطاب الغبي مشبه شوه، او اله د تشبيه كاف شو، او وجه د شبه تباين شو، مقام ورسره مه وايئ: تباين وايئ؛ اوس د شارح غرض د فَإن نه، شارح احتمال ثاني غوره كوي چي مشبه هم مقام شي او مشبه به هم مقام شي، دويم غرض د شارح اشاره كوي دفع د اعتراض ته، چي يا هلكه په احتمال ثاني باندې مشبه مقام الايجاز شو، او مشبه خطاب الذكي مع خطاب الغبي شو نو تشبيه صحيح شوه؟ خطاب الذكي خو مشابه د مقام الايجاز سره نه دى، نو شارح جواب وكړو چي دلته حذف د مضاف دی، مراد د خطاب الذكي نه مقام خطاب الذكي دی، هغې ته شارح اشاره وكړه چي **فان مقام الاول يباين مقام الثاني**، نو مقام حذف شو، نو اوس تشبيه صحيح شوه، نو د شارح دوه غرضه شو، يو اشاره يې وكړه اختيار د

اوس دا دویمه مقدمه ممهده ذکر کوي لپاره د تفاوت د مراتبو د بلاغت چې که کلام کې ارتفاع او انحطاط نه وي، بلکه ټول کلام په ارتفاع کې برابر شي یا ټول کلامونه په انحطاط کې برابر شي، نو تقسیم د بلاغت اعلی او اسفل او متوسط ته نه صحیح کیږي، نو دا دویمه مقدمه ممهده شوه. نو وي ویل چې **وارتفاع شان الکلام في الحسن** په ښایسته والي في نفسه کې والقبول په قبلولو د بلغاء کې یا سامع کې، د ارتفاع راځي بمطابقته په مطابقت د دې کلام سره د اعتبار مناسب سره، **للاعتبار المناسب** وانحطاطه کې تعیین د مرجع کوي، **ای انحطاط د شان الکلام شانه، ای الکلام**، بعدمها تعیین د مرجع کوي ای **بعدم مطابقته للاعتبار المناسب**

**والمراد** سره شارح دفع د اعتراض کوي، چې یا هلکه مطابقت د کلام د اعتبار مناسب سره بیخي ممکن نه دی، ځکه کلام عبارت دی د هغه لفظ نه چې مشتمل وي په اسناد باندې، نو هغه لفظ شو، او اعتبار خو صفت د معتبر دی، لفظ د صفت، صفت د معتبر سره نه شي مناسب کیدای، نو دا مطابقت صحیح نه دی، ځکه اعتبار خو صفت د معتبر ته وائي او کلام خو هغه لفظ دی چې مشتمل وي په اسناد باندې، نو هغه خو ذات شو، اوس د ذات فصاحت مطابقت د وصف د معتبر سره کیدای شي؟ نو شارح راغلی جواب یې وکړو چې **والمراد بالاعتبار المناسب، الامر الذي اعتبره المتکلم مناسباً للمقام**، چې یا هلکه ذکر د اعتبار دی او مراد ترینه امر معتبره شو، علاقه دا ده چې ذکر د سبب شو، او مراد ترینه مسبب شو، ځکه اعتبار سبب دی د امر معتبره لپاره، نو اوس خبره تهیک شوه، مثلاً کلام ان زیدا لقائم شو، په دې کلام کې متکلم یو امر معتبر کړی دی چې هغه تاکید دی او دغه تاکید په دغه **ان زیدا لقائم** کې امر معتبره شو، دا مطابق دی د حال او مقام د مخاطب سره چې هغه انکار وو، او د مطابقت معنی اشتمال شو چې دغه کلام چې **ان زیدا لقائم** دی، دا مشتمل دی او دغه تاکید مشتمل دی.

اوس که معترض شبه وکړي چې هر کله مراد د اعتبار نه امر معتبره وو، نو بیا امر معتبره یې ولې نه ذکر کولو، داسې یې ولې نه ویل چې **وارتفاع شان الکلام في الحسن والقبول بمطابقته للامر المناسب**، دا ښه وو، نو تاسو وایئ چې اعتبار یې ذکر کړی دی کې یې دا اشاره کړې ده چې دا ارتفاع هله راځي چې متکلم قصداً او اعتباراً دغه کلام په دغه امر باندې مشتمل کړی وي، او که هسې د روند د لاس غرګی وو، بې د اعتبار نه متکلم وویل ان زیدا لقائم نو دا کلام څه مرتفع نه دی دیته بلیغ نه شي ویلی. **بحسب السلیقة** اوس تقسیم د متکلم کوي چې متکلم دوه قسمه دی، یو متکلم هغه دی چې هغه دا کلام مناسب د مقام ګرځوي نو بحسب السلیقة، په اعتبار د خپل ذوق سره او په اعتبار د خپل طبیعت سره چې دغه مقام دغه حال، غواړي دغه کلام، کله چې متکلم د عرب العرباء نه وي.

او **بحسب تتبع تراکیب البلغاء**، یا په اعتبار د تفتیش، تلاش، لټونې د تراکیبو د بلغاء سره، چې هله مونږه او تاسو شو، چې هغه وائي چې مونږه تتبع د تراکیبو د بلغاء کړی دی، نو بلغاء ویلی دي چې

**يعني** سره غرض د شارح، اشاره كوي چې دغه فاء په فمقتضى الحال كې د نتيجه لپاره ده، دويم غرض د شارح دا دى چې فاء د نتيجې لپاره شي نو هغه مخكې دوه مقدمتين قياس غواړي، نوشارح هغه دوه مقدمتين بيانوي، يو مقدمه د كلام المتن نه معلوم ده، او دويمه مقدمه د كلام القوم نه معلوم ده، نو شكل ثالث به جوړ شي، نتيجه به هم دغه راووځي.

دويم غرض د شارح دليل واني چې مقتضى الحال او اعتبار مناسب يو شى دى، والا ماصدق سره دليل واني، نو واني چې يعني **فاعلم** قصد كوي ماتن كله چې معلوم شو د متن نه چې **ان ليس ارتفاع شان الكلام الفصيح في الحسن الذاتي الا بمطابقته للاعتبار المناسب** او دا د ې مخكې متن نه چې تير شو معلوم شوه، معترض راغلى شبه يې وكړه، چې يا هلكه دا خبره خو د متن نه معلوم شوي وه خو حصر سره خو نه وه معلومه شوي، حصر خو په كې نه وو، او تا په كې اى شارحه حصر وكړو، هلته خو ماتن دا ويلي وو چې **وارتفاع شان الكلام في الحسن والقبول بمطابقته للاعتبار المناسب** او دعوى د حصر خو يې نه وو كړى، نو تا په كې دا حصر دكوم خاى نه راوويستلو، نو شارح جواب كوي چې دا حصر بناء على ما يفيده اى الحصر اضافة المصدر، خكه ارتفاع مصدر دى هغه مضاف شو شان الكلام ته، او قانون دا دى چې مصدر مضاف شي يو شي ته او قرينه د عهد نه وي نو هغه نص وي په حصر كې او اختصاص كې، لكه ته وواييې ضربي زيداً في الدار نو معنى دا چې زما ضرب وهل زيد لره مقصور وو په كور كې متجاوز د كور نه بهرته نه وو، نو دا دمتن نه معلومه شوه.

**ومعلوم** د كلام القوم نه چې انه دغه كلام، يا انه شان دا دى **انما يرتفع**(اى الكلام) **بالبلاغة التي هي عبارة عن مطابقة الكلام الفصيح لمقتضى الحال** نو اوس كوم مقدمه چې متن نه معلوم شوي ده، هغه به تاسو صغرى كوئ، او كومه مقدمه چې د كلام القوم نه معلومه شوى هغه كبرى كوئ، نو شكل ثالث به جوړ شي، حداوسط به په دواړو كې موضوع وي، نو داسې به واني چې **وارتفاع شان الكلام بمطابقته للاعتبار المناسب، وارتفاع شان الكلام بمطابقته لمقتضى الحال** نو نتيجه دا راغله، چې فالاعتبار المناسب مقتضى الحال، اوس دا راوتلى نتيجه موجبه ده، نو دې كې عكس وكړو، خكه چې د موجبې عكس مطلقاً موجبه راځي، نو فمقتضى الحال هو الاعتبار المناسب نو متن كې هم ماتن دغسې ويلي وو.نو بس **فقد علم ان المراد بالاعتبار المناسب و مقتضى الحال واحد**، نو چې اعتبار مناسب او مقتضى الحال يو شو نو مقتضى الحال او اعتبار مناسب هم يو شو كنه خكه متن كې يې دغه ويلي دى. اوس هغه دريمه خبره كوي، دليل واني چې دا دواړه يو ولې دى؟ يعني دې كې نسبت مساوات دى، يو واني والا يعني كه دا دواړه يو نشي او دې كې نسبت مساوات نه شي نو يا أحد الحصرين باطليږي يا دواړه حصرين باطليږي، نو ما صدق چې انه لا يرتفع الكلام الا **بالمطابقة للاعتبار المناسب ولا يرتفع الا بالمطابقة لمقتضى الحال** يا دا دواړه مذكور حصرين باطليږي او يا احد الحصرين باطليږي، يا هلكه لما صدق خو باطل، تالي، خكه ماتن

**لها الكلام**، چې هغه مقتضيات د احوالو او احوال دی، لاباعتبار الالفاظ المفردة، هغه مفرد وي يعني خالي وي د اعتبار د افادې نه، والكلم المجردة نو دا الكلم تفسير شو د الفاظو، او المجردة والمفردة په طريقې د لف نشر مرتب سره، نو دالفظ منطوق دی مثلاً او په دې کې اعتبار د افادې د معنی نشته نو صرف دې سره نه بليغ کيږي

**وكثيراً** اما اوس په متن کې دا كثيراً منصوب وو، نصب لپاره دولس طريقې دي، يا هلکه نصب بنا بر څه شو؟ نو وائي نُصبَ او نصب على الظرف، يعني منصوب على الظرف شو، يا هلکه ظرف خو يا زمان يا مکان وي او كثيراً خو نه زمان دی نه مکان، نو ديته خو ظرف ويل صحيح نه شو، نو جواب وکړو چې **لانه من صفة الاحيان** يعني يا هلکه دا ظرف چې ورته زه وايمه مجازاً، په اعتبار د موصوف محذوفه سره، چې حيناً كثيراً بيا موصوف حذف شو او دا كثيراً د هغه په ځای قايم شو، نو هغه خو ظرف زمان وو. نو دا هم منصوب بنا بر ظرف شو، او كثيراً ما کې دا ماء کوم يو ما ده، صفتيه ده موصوفه، موصوله ده. د تاکيد د معنی د کثرة لپاره، يعني ډير کرته، سائل سوال وکړو چې دا نصب بناء بر ظرف شو نو عامل غواړي، په دې کې عامل څوك دی؟ ناصب څوك دی؟ نو جواب يې وکړو چې **والفاعل فيه قوله يسمى، ذلك الوصف المذكور** سره تعيين د مرجع د ضمير د يسمى کوي، چې مطابقة الكلام لمقتضى الحال سره دي، فصاحة ايضاً په فصاحة سره هم، د ايضا معنی کوي شارح ويل **كما يسمى بلاغة** يعني ديته فصاحت هم وائي، لکه څنګه چې بلاغت هم ورته وائي، نو د فصاحت دوه معنی شوې، يو فصاحت هغه دی چې مقدمه کې تير شو، چې **خلوصه عن ضعف التاليف وتنافر الكلمات والتعقيد مع فصاحتها**، او فصاحت مرادف د بلاغة الكلام دی، هغه وائي **مطابقة الكلام لمقتضى الحال** ته

**فحيث** سره دليل وائي چې يا هلکه ستا لپاره په دې څه دليل دی، چې دغه وصف مذکور ته فصاحت ويلی شي لکه څنګه چې ورته بلاغة وائي، نو وائي چې دليل زما لپاره اطلاق د علماءُ دی، ويل څکه فحيث په هغه مقام کې چې وويلی شي چې اعجاز د قران من جهة کونه، په دې جهت سره چې قران کريم په اعلى طبقاتو د فصاحت کې دی، يعني د قران کريم هر کلام مطابق دی د حال د مخاطب سره، نو دې ځای کې د فصاحت نه د مقدمه والا فصاحت مراد نه شي اخيستی، فصاحت نه مراد **يراد بها هذا المعنى** چې بلاغت دی.

**ولها** شارح تعيين د مرجع کوي، وائي **اى لبلاغة الكلام**، اوس هر کله چې تمهيد نه فارغه شو، نو اوس شروع کوي په تقسيم د بلاغت کې مراتبِ متفاوتو ته، چې د بلاغت لپاره مراتب متفاوته دي، او د دوه مقدمتينو ممهدينو نه فارغ شو، نو ويل د دې بلاغت الكلام لپاره، طرفان دوه طرفونه دي، يو اعلى يو اعلى دی، وهو او دغه اعلى حد الاعجاز دی، نو د حد الاعجاز يو مفهوم دی او بل مصداق دی نو ماتن مفهوم د دې نه وو بيان کړی نو شارح يې بيانوي، وائي حد الاعجاز ديته وائي **ان يرتقى الكلام في**

**الاعجاز لايكون من الطرف الاعلى** ځکه اعلى نه مراد هغه نهايت دى، چې جزئي بسيط دى يا نوع بسيط ده، چې د هغې نه بره بله مرتبه نه وي، نو اوس قريب دى حد الاعجاز ته اعلى نه شي کيداى، ځکه اعلى کې تعدد نه ځائيږي، هغه د مراتب علياؤ نه شو، اعلى نه شي کيداى، ويل هلکه بله څه وجه د غلطي کيداى شي؟ وائي او **وقد اوضحناذلك في الشرح**، نو دويمه بدي دا ده چې تقسيم د ما لاينقسم راغى، ځکه چې اعلى نه مراد هغه نهايت دى چې هغه بسيط وي، او بسيط تقسيم نه قبلوي، دريم فساد داچې اخبار راغى د متعدد نه په واحد سره، ځکه مقسم محمول په اقسامو وى، نو د متعدد نه اخبار ته په بسيط سره نه شي ورکولى، چې ته ووائي چې دا حدالاعجاز او ما يقرب منه د حد الاعجاز دواړه اعلى دى، نو اعلى خو بسيط ته وائي، او بسيط کې تعدد نه شي راتلى، نو درې بدى شوې **واسفل** او بل د بلاغت طرف اسفل دى.

**وهو ما اذا غير الكلام عنه الى ما دونه** وائي دا اسفل هغه مرتبه ده د بلاغت چې مغير کړى شي کلام د دې ما نه مادون ته، نو اسفل په خپله بليغ دى خو ما دون بيا بليغ نه دى، د بلاغت نه خارج شو، اوس شارح ورسره لګوي، **الى مرتبة** دې کې اشاره وشوه چې دا ما عبارت دې د مرتبې نه، دويم دې کې يې اشاره وکړه چې دا ما موصوفه ده، موصوله نه ده، ځکه مرتبة نکره سره يې تعبير وکړو، **هي ادنى منه** چې دغه مرتبه بنکته وي د دې اسفل نه، دې کې يې اشاره دفع د اعتراض ته وکړه، چې يا هلکه دون خو په معنى د سوى سره هم راځي، لکه جاءني القوم دون زيد، معنى سوا زيد، نو بيا معنى دا شوه الى ما هغه مرتبې ته چې علاوه وي د دې اسفل نه، نو علاوه د اسفل نه اعلى وو، نو بيا اعلى هم **التحق باصوات الحيوانات** شو، نو شارح جواب وکړو چې دون په معنى د سوى سره نه دى، دون په معنى د ادنى سره دى، نو بيا شبه راغله چې يا هلکه ادنى خو په معنى د قرب سره راځي يا قريب سره راځي، لکه **اذ انتم بالعدوة الدنيا** په هغې کناري نږدې مديني ته، وهم بالعدوة القصوى، نو چې ادنى په معنى د قريب شو، نو بيا معنى دا چې الى ما هغه مرتبې ته چې هغه قريب وي دې اسفل ته، نو قريب اسفل ته په بلاغت کې وي، هسې خو قريب نشته، نو بيا خو ما دون هم بليغ شو، او هغه خو بليغ نه دى ځکه چې التحق بيا څنګه شو، نو ده جواب وکړو چې وائي چې يا هلکه دلته کې ادنى په معنى د اقرب سره نه دى، بلکه انزل سره دى، نو التحق دغه کلام **عند البلغاء باصوات الحيوان** شبه يا هلکه دغه کلام ځکه د اصوات د حيواناتو سره ملحق شو چې د اعراب په اعتبار سره صحيح نه دى، ويل نه نه، **وان كان صحيح الاعراب** يعنې اګر که د اعراب په اعتبار سره صحيح دې وي څه ضعف التاليف تنافر د کلماتو، او تعقيد لفظي معنوي به نه وي، خو مطابق د مقتضى الحال سره به نه وي، **عند البلغا باصوات الحيوان**، حيواناتو نه مراد علاوه د انسان نه دى، يعنې بيا د بيزې او د سرې په اواز کې څه فرق نشته دى، دارنګه د اوبن او د سرې په اواز کې څه فرق نشته په اعتبار د فصاحت او بلاغت سره، اګر چې هسې فرق خو شته، شبه يا هلکه د **اصواتو** نسبت وشو حيواناتو

اشاره په تتبعها سره كيده او ولها سره نه كيدله. دويمه فائده په تتبعها كي دا ده چي **والى ان هذه الوجوه انما تعد محسنة بعد رعاية المطابقة والفصاحة** او دا د **تتبع** نه معلوميږي، خكه چي تابع د متبوع نه وروستو وي، او كه لها يې ويلى وي، نو دغه تبعيت نه معلوميدو **وجعلها** سره شارح شبه كوي او وروستو جواب كوي، شبه دا كوي چي وجعلها دا وجوه، **تابعة لبلاغة الكلام دون المتكلم** او حالانكه متكلم لپاره دا هم صفت واقع كيداى شي، جواب كوي، لانها ويل خكه دغه وجوه **ليست لما يجعل المتكلم متصفا بصفة**، معترض شبه وكړه چي ولې نه شي ګرځيدى، يو متكلم كلام طباقي ذكر كړو، نو المتكلم مطبق ورته وائي، يا يو متكلم كلام ترصيعي ذكر كړو، نو المتكلم مرصع ورته وائي، يا يو متكلم كلام جناسي ذكر كړو، نو المتكلم مجنس ورته وائي، نو تاسو په كي تكى اړدوئ، چي دغه **وجوه ليست مما يجعل المتكلم متصفا بصفة**، **عرفاً** چي په عرف كي په دغه وجوه سره توصيف د متكلم نه شي كيداى، او په لغت كي كيداى شي، خكه چي لغت كي صدق د مشتقي قيام د مبدى غواړي، هغه صحيح دى، خو عرف كي دانه شي ويلى چي المتكلم مترصع يا مطبق يا مجنس، او فصاحت او بلاغت ويلى شي چي، المتكلم فصيح، المتكلم بليغ

**والبلاغة في المتكلم ملكة يقتدر بها على تاليف كلام بليغ**، داسي كلام چي هغه مطابق د مقتضى الحال سره وي مع فصاحته، اوس معترض شبه وكړه چي بنا په دي بانديا يو متكلم كلام جوړولى شي، كلام ترهيبي مطابق د مقتضى الحال سره، ترغيبي نه شي جوړولى يا بالعكس يا كلام مدحي جوړولى شي او كلام ذامه نه شي، يعني يو نوع د كلام مطابق د مقتضى الحال سره جوړولى شي، بله نوعه نه شي جوړولى نو بيا دي هغه ته بليغ وويلى شي، نو تاسو وواييئ چي ته پوهه شوى نه يې كنه، دلته كي كلام موصوف دى، او بليغ صفت دى، او د نحوي قانون دى چي **النكرة اذا وصفت عمت** نو داسي كلام چي بليغ وي خو اي كلام كان هر كلام چي ورته وراندي شي، نو مطابق د مقتضى الحال سره جوړولى شي، لكه تا وويل چي **اكرم رجلاً عالماً** چي ته عزت وكړه د يو سړي چي عالم وي، نو دلته كي يو مخصوص عالم مراد نه دى، اي عالم كان د هغه عزت وكړه.

**فعلم مما تقدم** ماتن وويل، او دي قول د ماتن كي فاء راغله، شبه چي يا هلكه فاء د ډيرو معانيو لپاره راخي، دلته كي فاء د څه لپاره شوه؟ شارح ورسره ولګول چي ماتقدم، اشاره يې وكړه چي دا فاء تفريعيه ده، اوس څه معلوم كړى شو، ويل يو دا خبره چي **ان كل بليغ فصيح** نو معترض اعتراض وكړو، سائل سوال وكړو چي يا هلكه كل په مضاف اليه كي تعدد غواړي، او دلته بليغ كي تعدداً نه وي، نو چي نشته نو اضافت د كل ورته صحيح نه شو، نو شارح جواب وكړو چي **كلاما كان او متكلما** تعدد شته دى، نو چي تعدد راغى نو اضافت د كل صحيح شو، يا غرض د شارح دفعه د اعتراض كوي، چي يا هلكه ته به د بليغ نه كلام بليغه اخلي فقط يا به متكلم اخلي فقط يا به دواړه اخلي كه كلام

لپاره دليل واني چي عكس خكه نشته **لجواز ان يكون كلام فصيح** يو كلام فصيحه دي وي چي خلوص او ضعف التاليف تنافر د كلماتو، **والتعقيد مع فصاحتها** دي وي خو غير مطابق لمقتضى الحال وي، نو دا فصيح شو، او بليغ نه شو، دا خو په بلاغت الكلام كي شو وكذا په بلاغت المتكلم كي واني چي يجوز ان يكون لاحد ملكة يقتدر بها على التعبير عن المقصود بلفظ فصيح نوفصاحت المتكلم راغلي. خو **من غير مطابقة لمقتضى الحال** قادر په تاليف د كلام بليغه باندي نه وي، نو بلاغة المتكلم رانغی

**وعلم ايضاً** دي كي شارح اشاره وكره چي **وان البلاغة** دا عطف دي په مخكي **ان كل بليغ** باندي او هغي نه مخكي هلته كي عُلم وو، نو دلته كي هم ده عِلم راوويستو، ايضاً كي يې اشاره وكره چي په دي تفريع كي دوه جزونه شو، يو جز اول، او دا جزء ثاني د تفريع دى، نو ايضاً كي اشاره ديته وشوه چي لكه چي دا مخكي متفرع وو په ما تقدم باندي نو دا هم متفرع دى، چي ان البلاغة في الكلام مرجعها شارح ورسره لګوي **اى ما يجب ان يحصل** دي كي شارح اشاره كوي چي مرجع مصدر ميمي دي، يا صيغه د ظرف، هر څه چي وي، خو دلته كي په معنى د موقوف عليه سره دى، رجوع معنى سره نه دى، او څاى د رجوع هم نه دى، واني هغه شى چي هغه حاصل شي چي هغه احتراز دى او تميز دى، **حتى يمكن حصولها ( حصول البلاغة )** نو امكان او حصول د بلاغة موقوف تر د احتراز او تمييز پوري شو، نو هغه موقوف عليه شو او بلاغة موقوف شو، شبه يا هلكه داسي چيرته نظير شته دى؟ چي مرجع په معنى د موقوف عليه سره وي؟ ويل هو، مرجع الجود الى الغنى، يعني موقوف عليه د جود غنى ده، چي غنى راشي نو هله جود راځي، غنى نه وي نو جود نه شي راتللی، نو موقوف عليه د بلاغت دوه څيزونه دي، **الى الاحتراز عن الخطاء في تادية المعنى المراد**، يو احتراز دى الخ معنى مراد نه مراد اغراض مصوغه لها الكلام دى، شبه يا هلكه دا موقوف عليه د بلاغت ولى دى؟ دليل واني، والاكه احتراز د خطايي نه ونه شي او بلاغت راشي، نو ربما ادى المعنى، دلته كي بنه دا ده چي رُبَ لپاره د تحقيق وواني نه تقليل او تكثير نو اعتراضونه ختم شو، واني په تحقيق سره ادا كول شي معنى مراد په يو لفظ سره چي هغه مطابق د مقتضى الحال سره نه وي، ليكن تالي باطل دى مقدم بي مثل، هر چي ده وجه د بطلان التالي فلا يكون بليغاً، خلاف المفروض راغى، تا فرض كړي بليغ، او بليغ نه شو، او هر چي دى دليل د ملازمي نو ظاهر دى، خكه چي احتراز عن الخطائي ته موقوف عليه نه واني، بي د دي نه هم يو كلام ته بليغ واني نو ادا د معنى مرادي ته **بلفظ غير مطابق لمقتضى الحال** ته هم بليغ ووايه، حالانكه بليغ ويلى نه شي، دويم **والى تميز الكلام الفصيح** دويم مرجع جداني د كلام فصيح د غير فصيح نه، دا راشي نو هله بلاغت راځي د دي دليل دا دى، والاكه د تميز نه بغير د بلاغت راشي نو **ربما اورد الكلام** هلته كي احتراز عن الخطاء كي يې ادى وو، او دلته كي أورد، دا تفنن في العبارة دى، او دلته كي رُب د تحقيق لپاره وواييځ چي خبره ختمه شي **اورد الكلام المطابق لمقتضى الحال (حال كون ذلك الكلام)**

متن تكې يې ولې زيات كړو، نو دې اعتراض ته اشاره كوي چې **وانما قال الماتن متن اللغة**، اى معرفة دا جمله معترضه ده، اود متن اللغة تعريف كوي چې متن اللغة اصل اللغة څه ته وائي؟ ويل **اى معرفة اوضاع المفردات** متن اللغة ويلې شي چې پيژندګلې د وضعو د الفاظو مفرداتو، چې دغه لفظ مفرد د څه لپاره وضع شوى دى، دغه لفظ مفرد د څه لپاره وضع شوى دى، دغه لفظ مفرده الخ ديته متن اللغة وائي، اوس جواب كوي شارح چې كه دا يې ويلې وې چې **فى علم اللغة**، نو علم اللغة اطلاق په صرف باندې هم كيږي، او نحوه باندې هم كيږي، او حالانكه تميز السالم من الغرابة عن غيره په صرف او نحو كې بيانيږي؟ وايه نه، ويل **لان اللغة اعم من ذلك** د دې متن اللغة نه، نو ما خكه متن زيات كړو چې صرف او نحو خارج شي

**يعني** دې سره دفع د اعتراض كوي، چې هغه اعتراض وو په مثال باندې، نو شارح يې اظهار كوي، چې يا هلكه په علم متن اللغة كښ غرابت خو نه بيانيږي، دا خو نه ويلې كيږي چې دا لفظ غريب دى، او دا لفظ غير غريب دى، بلكه په علم متن اللغة كې خو تميز بيانيږي، نو دې راغې جواب يې وكړو چې يعني به يعرف چې پيژندلې شي په دې علم متن اللغة سره **تميز السالم من الغرابة عن غيره**، نو عبارة په حذف د مضاف شو، بمعنى سره د زوزني اعتراض دفع كوي، زوزني اعتراض كړى وو چې يا هلكه علم متن اللغة كې مونږ ته دا سبب خو نه ښائي، چې دا لفظ غريب دى، او دا سالم دى د غرابت نه. نو دماتن دا حواله په علم متن اللغة باندې صحيح نه شوه خطاء شوه، نو شارح په ان من تتبع سره رد اجمالي كوي، او بيا رد تفصيلي كوي وبهذا تبين فساد ما قيل سره، او رد داسې كوي، چې يا هلكه د دې مطلب دا دى چې په علم متن اللغة كې، او كتب مشهوره ؤ متداوله ؤ د علم اللغة كې د كوم الفاظ مفرده وو معنى مانوسه تا معلومه كړه، دې نه پته ولګيده چې د دغه الفاظ مفرده وو نه علاوه، نور څومره چې الفاظ مفرده دي هغه غريب دي، يا په معنى اولى سره يا په معنى ثاني سره، اول غريب دا معنى چې محتاج دى تنقير، تفتيش، تالاش ته، يا تخريج بعيده ته، دا معنى نه ده چې په علم متن اللغة كې مونږ ته وائي چې دا لفظ غريب او دا غير غريب دى، وائي بمعنى ان من تتبع الكتب المتداولة چې لاس په لاس اخستلې كيږي، او مشهور دى او تعليم او تعلم د هغې كيږي، **واحاط بمعاني المفردات المانوسة علم ان ما عداها**، هغه الفاظ چې علاوه دي د دې معاني د دې مفرداتو مانوسه ؤ نه، عما د هغې قبيلې نه دى يفتقر الى تنقير لكه تكاكاتم، وافرنقعوا، دا غريب په معنى اولى سره وو، او تخريج بعيد لكه مسرجاً شو، نو فهو دغه ماعدا **غير سالم من الغرابة**.

**وبهذا** او په دې تحقيق ثالث سره په دې بيان مذكوره سره چې بمعنى ان من تتبع دى، **تبين** ظاهر شو، **فساد ما** فساد د هغه اعتراض **قيل**، دا اوس رد تفصيلي كوي، او معترض زوزني وو، چې انه شان دا دى **ليس في علم متن اللغة،ان بعض الالفاظ يحتاج في معرفته الى ان يبحث عنه في الكتب المبسوطة في اللغة**، او

**الا لايعرف** سره شارح يو دليل وائي د متن لپاره، چې دا علاوه ولې دی؟ دويم دفع د اعتراض کوي چې **ماعدا، وخلا او حاشا وغيره** ادوات د استثناء متصل دی، او استثناء متصل ديته وائي چې مستثنی د جنس د مستثنی منه به وي، نو مستثنی منه خو ما وو، او ما تميز وو، او تعقيد معنوي خو تميز نه دی، نو دلته کې ماعدا ذکر کول صحيح نه شو، نو شارح جواب کوي پټ، چې دلته کې حذف مضاف دی، ما عدا تميز التعقيد المعنوي، اذ لايعرف بتلك العلوم ولا بالحس تمييز السالم، تمي يې په کې راوويستلو، **من التعقيد المعنوي عن غيره نه**.

**فعلم** سره شارح تفريع کوي، او توطيه او تمهيد ايږدي دې متن ته چې **وما يحترز به عن الاول** چې ماتن د عبارة ولې ووېل؟ نو وائي **فعلم ان مرجع البلاغة بعضه مبين في العلوم المذكورة وبعضه مدرك بالحس ويقي الاحتراز عن الخطاء في تادية المعنى المراد والاحتراز عن التعقيد المعنوي فمست الحاجة**، پس باعث شو حاجة، **الى علمين مفيدين لذالك**، د دې احترازينو لپاره يا ددی احتراز لپاره، نو **فوضعوا** ای العلماء **علم المعاني للاول**، لپاره د احتراز د خطايې نه **وعلم البيان للثاني واليه اشار بقوله**، نو دا تمهيد شو.

نو وه يې ويل **وما يحترز به عن الاول** شارح ای سره تعيين مصداقي د اول کوي، او دفع د اعتراض کوي، اعتراض دا وارد شو چې يا هلکه ستا مراد، د اول نه اول د متن به وي، نو اول د متن خو احتراز دی د خطايې نه (كما مر على ۲۱ لمختصر المعاني) ، نو اوس ترجمه وکړه، ويل هغه شی چې په هغې سره احتراز کولی شي داحتراز عن الخطاء نه، نو احتراز عن احتراز الخطاء خو خطاني ده، نو بيا خو ترجمه دا شوه چې کوم شی چې خطاني په کې راتللی شي، هغې لپاره علم معاني دی، نو په علم معاني سره په تادية د معنى مراده کې خطاني راځي؟ دی دا بيانوي، (يعنی علم معاني خو دا نه بيانوي) شارح جواب وکړو چې اول نه مراد اول د متن نه دی، او د تفريع نه دی، اول نه مراد اول د امرينو باقيينو دی، او اول د امرينو باقيينو خطاء في تادية المعنى المراد وو، نو وه يې ويل ای **الخطاء في تادية المعنى المراد علم المعاني، وما يحترز به عن التعقيد المعنوي علم البيان، وسموا هذين العلمين علم البلاغة** دې سره يې اعتراض ته اشاره وکړه، د اعتراض حاصل دا شو، چې يا هلکه بيا د علم بلاغت موقوف عليه لکه څنګه چې علم المعاني او بيان شو نو علم الصرف او علم اللغة او علم النحو خو هم دی، نو دا څه وجه ده چې تاسو صرف بلاغة دوه فنينو ته وايې؛ او علم الصرف او علم متن اللغة او علم النحو ته بلاغت نه وايې؛ او حالانکه علم بلاغت کې هغوی لره هم دخل دي، هغوی هم موقوف عليه د بلاغت دي، نو ده وويل چې مسمی کړی دی علماؤ دغه دواړه علمين په علم البلاغة سره نه نور، دا اوس جواب دی چې **لمكان مزيد اختصاص لهما بالبلاغة**، د وجې د وجود د زيادة علاقې نه دی د دې دواړه علمينو د بلاغت سره. د دوی مناسبت د بلاغت سره زيات وو، داسې زيات وو چې دا په منزله د علت صوري وو د بلاغت لپاره، او علت صوري چې راشي نو په معلول کې حالت منتظره نه وي، او دا نور علوم په منزله د علت

مادي د بلاغت لپاره دي، او علت مادي او فاعل راتلو سره معلول بالفعل نه راخي. د دې وجې نه د دوی د بلاغت سره علاقه زياته وه، نو ديته يې علم البلاغة وويل ګويا دا علم البلاغة شو لاغيرهما، وان كانت البلاغة تتوقف على غيرهما من العلوم، ثم احتاجوا سره تمهيد ږدي متن لپاره، او دويم دفعه د اعتراض كوي چې زمونږ مقصود موقوف عليه د بلاغت بيانول دي، هغه خو ختم شو، نو اشتغال د مصنف په وما يعرف به وجوه التحسين علم البديع دا اشتغال بما لايعني دی، نو شارح جواب كوي چې نه لايعني نه دی، بلكه دا دريم متن ته احتياجي ثابتوي

ثم احتاجوا دا علماء لمعرفة توابع البلاغة الى علم اخر فوضعوا لذلك اى المعرفة علم البديع، واليه اشار بقوله وما يعرف به...الخ، علم البديع ولما كان سره، شارح دا تعيين د اجزاء د مختصر كوي، چې د دې مختصر اجزاء، مختصر دا تلخيص درې دی، نو وائي ولما كان هذا المختصر في علم البلاغة وتوابعها انحصر مقصوده في ثلاثة فنون كه څوك اعتراض وكړي چې شارح خو د اجزاء تعيين مخكې په مقدمه كې كړی وو، نو تاسو وايئ چې هلته كې يې تفصيلاً تعيين كړی وو، او اوس دا يې اجمالاً بيا وكړو، ځكه چې تفصيل بعد الاجمال اوقع في الذهن وی، نو دغسې اجمال بعد التفصيل هم اوقع في الذهن وي، ځكه چې تفصيل ږير اوږد شي نو د سړي ذهن ورته نه رسي، نو بيا وروستو خلاصه او اجمال راوباسي چې ذهن ورته ورسي، او قران كې شته، چې يو سړی متمتع وي او د هديه قيمت ورسره نه وي يا د هدي قيمت وي خو موندلی كيږي نه هديه نو هغه به لس روژې نيسي، ګوره ثلثة في الحج، وسبعة اذا رجعتم، رجعتم اى فرغتم، كورته رسيدلی وی كه نه كه لاره كې نيسي بيا هم جائز دی، نو بيا الله اجمال راووستلو چې تلك عشرة كاملة نو دا مخكې تفصيل او دا اجمال شو.

وكثير من الناس سره اصطلاحات ذكر كوي، يو اصطلاح خو دا شوه چې فن اول ته علم المعاني وائي، ځكه په دې سره معلوميږي ايواد د معانيو چې د هغې لپاره بنا كړی شوی وي كلام او دې دويم ته بيان وائي، ځكه په دې كې بيان د معنى واحدې وي په طرقو مختلفو سره، او دې دريم ته علم البديع وائي، ځكه چې دی د محسنات بديعيو نه بحث كوي، او دويمه اصطلاح وكثير من الناس دا درې واړه مسمى كوي په علم البيان سره، ځكه بيان نطق فصيح معرب عما في الضمير ته وائي دا درې واړه هم دا بيانوي، دريمه اصطلاح وبعضهم يسمى الاول علم المعاني د وجې د مامر نه، والاخيرين يعني چې البيان والبديع دی علم البيان، ځكه نطق فصيح معرب عما في الضمير د وجې نه، څلورمه اصطلاح والثلاثة علم البديع مسمى كوي دا درې واړه په علم البديع سره، ځكه چې په دې دريو واړو فنونو كې بحث كيږي د علومو غريبه ؤ بديعيه ؤ نه چې د هغې نه ښكته په علم نحو كې تري بحث نه دی شوی ولا يخفى وجوه المناسبة او دا ما تاسو ته په خوله باندې وويل.

# الفن الاول علم المعاني

ماتن وويل الفن الاول علم المعاني، فن اول علم المعاني دی، په دې باندې يو اشكال راغی چې يا هلكه داخو اخبار راغی د مجهول نه په معلوم سره، او قانون دا دی چې اخبار د معلوم نه په مجهول سره كيږي، لكه مبتداء معلومه وي او خبر مجهول وي په خبر سره د مبتداء نه اخبار كيږي اخبار د مجهول نه په معلوم سره نه شي كيداى، او دلته په كلام د متن كې اخبار د مجهول نه راغی په معلوم سره، خكه چې علم المعاني مونږ ته مخكې د مقدمې نه معلوم شوی وو، په **وما يحتزز به عن الاول علم المعاني** كې او نن اول مونږ ته د مقدمې نه نو معلوم شوی، نو فن اول مجهول شو او علم المعاني معلوم شو، نو دا اخبار راغی د مجهول نه په معلوم سره، نو دا خلاف دی د واقع، قانون او د اصل نه، نو تاسو به د دې نه جواب وكړئ، چې په دې علم المعاني كې دوه حيثيتونه دي، يو حيثيت د احتراز والی دی، او يو حيثيت د اول والي، نو په حيثيت د احتراز والي سره دی مونږ ته معلوم وو په **وما يحتزز به عن الاول علم المعاني** سره، ليكن په حيثيت د اول والي سره چې مرتبه كې دی اول دی كه دويم دی كه دريم دی دا مونږ ته نه وو معلوم، نو دا اخبار مونږ وركوو په علم المعاني سره د فن اول نه، نو دا په حيثيت د اول والي سره وركوو، نه په حيثيت د احترازوالي سره، نو كوم حيثيت سره چې مونږ ته معلوم وو، نو هغه حيثيت سره مونږه اخبار نه دی وركړی او كوم حيثيت سره چې مونږ اخبار وركړی دی، نو په هغه حيثيت سره دی مونږ ته مخكې معلوم نه وو

دويم دا اعتراض راغی، چې يا هلكه دا خو حمل اولي جوړ شو، او حمل اولي خو مفيد نه وي، چې فن اول نه دی مگر علم المعاني دی او علم المعاني نه دی مگر فن اول دی، نو دا خو حمل اولي شو او حمل اولي خو مفيد نه وي، نو تاسو جواب وكړئ چې دلته كې تقدير دی، يا تقدير داسې وكړئ چې مسائل دفن اول مدلولات د الفاظو د علم المعاني دی، يا بالعكس كوي، الفاظ د فن اول دا دال دی په مسائلو د علم المعاني باندې، نو تاويل سره صحيح شو او حمل اولي نه شو.

اوس شارح **قدمه على البيان** سره اعتراض ته اشاره كوي، او **لكونه** سره جواب ته، اعتراض داسې كوي چې ماتن مقدم كړو علم المعاني لره په علم البيان باندې او وجه د تقديم نه وه نو ترجيح بلامرجح لازم شو، اوس شارح جواب وكړو لكونه سره، چې د وجې د كيدو دَ علم المعاني نه د علم البيان نه **بمنزلة المفرد من المركب** دی خكه چې دا علم المعاني د علم البيان نه په منزله د مفرد من المركب دی، تتمه د جواب د بهر نه ده په كې متن كې نشته دی هغه دا چې مفرد مقدم وي په مركب باندې طبعاً، نو بمنزلة المفرد هم مقدم وي په بمنزلة المركب باندې طبعاً نو ماتن مقدم كړو وضعاً لپاره د موافقت د وضعي

صرفي دی، د دي دا معنی چي په نحوه کي ده ته داسي ملکه حاصله شوي ده چي هره یوه جزئي مسئله د عمومي ورته وراندي کړي، نو حل کولی شي، فلانکی صرفي دی، د دي دا معنی چي په صرف کي ورته داسي ملکه حاصله ده چي هره یوه مسئله جزئیه ورته وراندي کوي نو حل کولی يې شي، نو کثرت د استعمال عرف شو، نو شارح وویل چي **ملکة یقتدر بها** هسي **ملکةً یقتدر بها**، دي سره تعریف ملکي ته اشاره کوي **علی ادراکات جزئية** په ادراکاتو د مسائلو جزئیو باندي، **ویجوز** سره دویم احتمال ته اشاره کوي، ویل جائز ده چي **ان یراد به** ای العلم **نفس الاصول** اعتراض یا هلکه د اصولو اطلاق خو پر ادلو باندي هم کیږي، د اصولو اطلاق په اولی او راجح باندي هم کیږي او د اصل اطلاق په استصحاب الحال باندي هم کیږي، اصل مبنی علیه ته هم وائي، دا ټولي معنی خو دلته نه صحیح کیږي، دي جواب وکړو **والقواعد** چي یا هلکه اصول دلته کي په معنی دقواعدو سره دي داسي قواعد **المعلومة** د غسي وایو چي کل کلام مع خالي الذهن یجب ترك تاکیده کل کلام **مع الشاك یجب توکیده بموکد کل کلام مع المنکر یجب توکیده بحسب الانکار** دا قواعد معلومه دي، اوس هغه دریم احتمال شارح ذکر نه کړو، چي علم نه مراد تصدیق بالمسائل شي، خکه چي هغه دلته کي نه صحیح کیږي، د دوو وجو نه ۱ یو د دي وجي نه چي که علم تصدیق واغستی شي نو **یعرف** هم په معنی د یُصدق سره دی، نو سببیت د شئ خپل نفس ته راخي، چي تصدیق کولی شي په سبب د دي تصدیق سره، دویم د دي وجي نه چي هغه محتاج دی حذف ته، خکه چي تا وویل چي **وهوای علم المعاني** علم تصدیق، تصدیق خو مصدق غواړي، نو **علی المسائل** به راوباسي، هسي نه صحیح کیږي

**ولاستعمالهم** سره شارح دفع د اعتراض کوي د ماتن نه، چي یا هلکه تا یُعرف وویل نو یعلمُ دي ولي نه ویل، یعرف به احوال اللفظ العربي چي تا وویل یُعلم به احوال ..... دي ولي نه ویل؟ نو ده جواب وکړو چي **ولاستعمالهم ای العلماء المعرفة في الجزئيات** او په بسائطو کي او علم په کلیاتو او مرکباتو کي، نو قال ماتن وویل **یعرف به احوال اللفظ العربي** احوال د لفظ عربي جزئیات وو، نو د دي سره مناسب یُعرف وو، یُعلم نه وو، **ای هو علم یستنبط** دي سره غرض د شارح دفع د اعتراض کوي، اعتراض دا وارد شو، چي مراد د احوالو د لفظ عربي نه، احوال جزئیه دلفظ عربي جزئي لپاره به وي، حالانکه راتلونکي متن کي احوال جزئیه د لفظ عربي جزئي لپاره دی؟ ندی دي دا نه ذکر کوي چي یا هلکه د زید احوال به څه وي، حذف یا ذکر یا تقدیم یا تاخیر، دا خو یي نه دی ذکر کړی خو احوال د مسند الیه یي ذکر کړي، اخوا بیا زید وي که عمر وي که بکر وي، احوال د مسند الیه ذکر کوي، او احوال جزئیه د لفظ عربي یي نه دي ذکر کړی، نو تا چي وویل چي یعرف به احوال اللفظ العربي، نو دا خو دروغ شو، نو شارح جواب وکړو چي دا یُعرف په معنی د یستنبط سره دی او به کي دا باء په معنی د منْ سره ده، معنی **ای هو علم** دا یي هغه مخکښیني معاد کړو، خکه چي موصوف او صفت کي فصل راغلی، نو ده بیا خکه معاد

شوه په فاعل كي نصب شو په مفعول كي **وما اشبه ذلك** منصرف او غير منصرف شو، دارنگه جر شو، او دويم ما اشبه ذلك څه دی؟ **مما لا بد منه في تادية اصل المعنى**، هلته كي لحاظ او مطابقت د لفظ د مقتضى الحال سره نه دی، اعلال سره اصل معنى د هغه كلمې جوړيږي، دارنگه په ادغام او رفع او نصب سره دا په كي نشته چي حال د مخاطب اعلال غوښتلو، يا ادغام يا رفع يا نصب، **وكذا** وی دارنگه په دې قيد سره د **المحسنات البديعية نه** هم احتراز راغلى، هغه داخليدل چي يا هلكه تعريف د علم معاني مانع نه شو د دخول د غير نه داخل شو په دې كي محسنات بديعية چي تجنيس دی طباق دی مراعاة النظير دی، هغه هم احوال د لفظ عربي دی او د هغې نه په علم معاني كي بحث نه كيږي، ده جواب وكړو وكذا المحسنات البديعية چي محسنات بديعيه خارج شو، **من التجنيس والترصيع ونحوهما**، هغه په دې قيد سره خارج شوی، خكه چي علم المعاني كي هغه احوال د لفظ عربي دی چي په هغې سره لفظ مطابق كيږي د مقتضى الحال سره او محسنات بديعيه پس د رعايت د مطابقت نه په وي، نو هغه هم خارج شو **مما يكون بعد رعاية المطابقة** هغوی كي رعايت د مطابقت نشته، گلونه غورخول دي په كلام باندي **والمراد** سره غرض د شارح دفع د اعتراض كوي، خو اعتراضونه دوه دي، يو اعتراض دا شو چي يا هلكه تا په تعريف د علم المعاني كي يُعرف ويلي دي، يُعرف د معرفة نه دی، معرفة علم ته وائي نو علم خو تصور ته هم ورخي، او تصديق ته هم ورخي، نو يُعرف په معنى د يُعلم سره شو، يُعلم، يتصور ته هم ورخي، او يُصدق ته هم ورخي، نو معنى بيا داشو چي تصور كولى شي په دغه علم سره د احوالو د لفظ عربي، نو احوال تعريف، تنكير دی، تقديم تاخير دی، نو د دې دا تصور په كي داخل شو، د تعريف تصور دا دی چي ما وضع لشئ بعينه، د تنكير تصور ما وضع لشئ لابعينه، د تقديم تصور مزال عن موضعه الاصلي، او د تاخير تصور مزال عن موضعه الاصلي، او ديته خو علم المعاني نه شي ويلى، او دا په كي داخل شو.

دويمه شبه دا راغله، چي تعريف د علم المعاني مانع نه شو د دخول د غير نه داخل شو په دې كي علم البيان، خكه چي علم البيان كي بحث كيږي د حقيقة او د مجاز نه او د تشبيه نه او دغه حقيقة او مجاز او تشبيه احوال د لفظ عربي دی، نو هغه هم په كي داخل شو، نو شارح اول شبهي نه جواب كوي حاصل د جواب دا چي دلته كي يُعرف په معنى د يُصدق سره دی، يُعرف د مطلق معرفت په معنى سره نه دی، **والمراد انه** چي دا علم المعاني **به يعرف** به يصدق نو د شارح دا جواب هله صحيح كيږي چي يُعرف په معنى د يُصدق سره واخستى شي، اوس تصديق خو مصدق او قضيه غواړي، او احوال خو مفرد دی ويل **من حيث انها** وائي په دې حيثيت سره چي دغه احوال **يطابق بها اللفظ لمقتضى الحال**، په دې باندي تصديق راورل چي يا هلكه دا لفظ مطابق دی د مقتضى الحال سره، نو تصديق شو، او دا ولي مراد شو نو والمراد دپاره دليل وائي چي **لظهور ان ليس علم المعاني عبارة عن تصور معاني التعريف والتنكير والتقديم**

دليل سره، **هو الكلام الكلي المتكيف بكيفية مخصوصة**، چې كلام مؤكد دی، كلام حذف فيه المسند اليه، كلام ذكر فيه المسند اليه كلام عرف فيه المسند اليه، كلام نكر فيه المسند اليه، دا كيفيات مخصوصه دي، ويل دا د خان نه نه وايم، تائيد لپاره ذكر كوي **على ما أشير اليه في المفتاح وصرح به في شرحه، لانفس الكيفيات مقتضى الحال** نفس كيفيات نه دی، چې تقديم تاخير او تعريف او تنكير **على ما هو ظاهر عبارة المفتاح وغيره**، ولې كه دا نفس كيفيات شي نو **لما صح القول بانها** دغه كيفيات احوال دي. **بها** په سبب د دغه كيفياتو سره مطابق كيږي لفظ د مقتضى الحال سره، **لانها**، خكه دغه احوال عين مقتضى الحال شو، نو بيا سببيت الشئ د لنفسه راځي **وقد حققنا المكفي الشرح**، په زيادة او فصاحت سره، دلته كې ما تاسو ته په خولي باندې وويل، مطابقت په معنى د صدق شو دا ما تاسو ته ويلې دي نو اوس گوره دې كلام جزئي ته چې مقتضى الحال وائي نو حقيقة دا مقتضى الحال نه دی، حقيقةً كلام مؤكد دی، شبه راغله چې يا هلكه احوال نه مراد تا أمور عارضه لفظ ته وويل، او من جمله د ابوابو د علم المعاني نه احوال د اسناد خبري دی، او اسناد خبري خو لفظ نه دی؟ نو تاسو وواييئ چې اسناد اگر چې لفظ په اعتبار د ذات سره نه دی خو په اعتبار د طرفينو سره لفظ دی، بالواسطه دی، **واحوال الاسناد ايضاً من احوال اللفظ باعتبار التاكيد وتركه مثلاً** يا مجاز عقلي، حقيقت عقلي، **من الاعتبارات الراجعة الى نفس الجملة**، او نفس جمله لفظ دی، معترض راغى شبه يې وكړه چې يا هلكه توصيف د لفظ په عربي سره نه صحيح كيږي، خكه څنگه چې په علم معاني كې پيژندی شي احوال د لفظ عربي نو دغسې د لفظ عجمي هم پيژندی كيږي، نو ده جواب وكړو چې **وتخصيص اللفظ بالعربي مجرد اصطلاح** مجرد د احتراز د غير عربي نه ندی، هسې تخصيص د اصطلاح د وجې نه شوی دی، او دا تخصيص د احتراز لپاره نه دی چې په دې سره احوال د لفظ غير عربي نه پيژندلی كيږي، معترض شبه وكړه چې په اصطلاح كې نكته په كار وي نو نكته څه ده؟ ويل: **لان الصناعة انما وضعت لذلك** خكه چې دا فن د علم المعاني دا وضع كړی شوی دی د لفظ عربي لپاره، ددې تدوين، تصنيف په عربي كې شوی وو د دې وجې نه يې لفظ عربي خاص كړو.

ماتن وويل: **وينحصر** شارح ورسره لگوي **المقصود من علم المعاني** دې كې يې يو اشاره وكړه تعيين د مرجع ته، دويم اشاره كوي دفع د اعتراض ته، اعتراض دا وارد شو، چې يا هلكه ينحصر كې ضمير علم المعاني ته راجع شو، نو معنى دا شوه چې علم المعاني منحصر شو په اته بابونو كې، نه منم چې علم المعاني منحصر دی په اتو بابونو كې، بلكه يوولس بابونه دي، خكه اته دغه بابونه شو، او يو تعريف د علم المعاني چې مخكې لاړه، دويم دليل د حصر په ابواب ثمانيه ؤ كې چې را روان دی، او دريم تنبيه چې وروستو را روان دی، نو دا درې چې د دې اتو سره تل كړي نو يوولس تري جوړ شو، نو شارح راغلی جواب يې وكړو چې علم المعاني دوه قسمه دی، يو مطلق علم المعاني دی يو مقصود د علم

اشتمال د كل نه په جزء باندې، خكه كلام كل دى او مسند اليه او مسند او اسناد د دې اجزاء دي. يا ر قبيلې د اشتمال د دال نه په مدلول باندې، دواړه جائز دي بين الطرفين دا نسبت تام به د طرفينو ترمينځه وي، او داسې نسبت تامه چې قائمة بنفس المتكلم به وي، معترض دوه شبهې وكړې ١ پر شبه راغله چې يا هلكه تامة بين الطرفين نه دا معلوم شو چې دا نسبت به قائم طرفينو پورې وي، او قائمة بنفس المتكلم نه دا معلومه شوه چې دغه نسبت به د نفس د متكلم پورې قائم وي، بناء به دې باندې قيام د عرض واحده راغلی په محلينو پورې، دويمه شبه دا راغله چې على نسبة تامة بين الطرفين نو د دې نه معلوميږي چې دغه نسبت معلوم دی، خكه نسبت بين الطرفين معلوم دی خكه چې طرفين معلوم دي او قائمة بنفس المتكلم نه معلوميږي چې دغه نسبت به علم وي، خكه مرتبه د قيام په نفس د متكلم پورې علم دی، نو لازم شو كون د شئ واحد هم علم او هم معلوم په جهت واحده سره، او دا جائز نه دی، نو تاسو به د دې نه جواب وكړئ چې نسبتونه درې دي، يو نسبت كلامي، دويم نسبت ذهني، دريم نسبت خارجي، نسبت كلامي ديته وائي چې شارح په خپله ذكر كړی دی چې هو دغه نسبت تامه بين الطرفين، تعلق احد الشيئين بالاخر، ترل د يو شي چه مسند اليه دی په بل پورې چې مسند دی، نودا نسبت كلاميه شو، شبه يا هلكه ترل خو په غُلَامُ زَيْدٍ كې هم شته دی، رَجُلٌ عَالِمٌ كې هم شته دی، حالانكه هغې ته نسبت تامه نه شي ويلی، جواب يې وكړو بحيث يصح السكوت عليه چې په داسې شان سره چې صحيح وي سُكوت په دې باندې، وهو كې ضمير راجع شو نسبت كلامي ته او تذكير د ضمير لپاره د رعايت د خبر دی، معترض راغلی چې متبادر د تعلق نه ايجاباً به وي، نو بيا زيد ليس بقائم خارج شو، ويل سواء كان ايجابا لكه زيد قائم كې دغه تعلق ايجاباً دی، اوسلبا، لكه په زيد ليس بقائم كې او غيرهما يا غير د دې ايجاب او سلب نه، خكه ايجاب اوسلب خو صرف په كلام خبري كې راځي، كما في الانشائيات دا نسبت كلامي شو، دريم نسبت ذهني، دا ديته وائي چې دا عبارة دی د صورت د نسبت تام خبري نه په مرتبه د قيام د نفس ناطقه كې، چې صورت د زيد قائم، زيد ليس بقائم، قائم شي په نفس د متكلم پورې ديته نسبت ذهني وائي، دريم قسم نسبت خارجي دا عبارة دی د قطع نظر د تعلق او دقيام بالذهن نه، نو اوس د نسبة تامة بين الطرفين نه مراد نسبت كلامي شو، چې هغه طرفينو كې وي هغه قائم طرفينو پورې وي او قائمة بنفس المتكلم نه مراد نسبت ذهني دی، چې هغه متعلق د نفس د متكلم پورې وي او علم وي.

وتفسيرها بايقاع المحكوم به سره غرض د شارح د يو مفسر تفسير رانقل كوي، اولاً او بيا د ده په تفسير رد كوي ثانياً خطاء سره او دليل د رد وائي، ثالثاً لانه لايشتمل سره، نو اول ته اشاره كوي، چې وتفسيرها اى النسبة ، بايقاع المحكوم به على المحكوم عليه، تصديق كول د محكوم به په محكوم عليه باندې يا سلب د محكوم به عنه د دې محكوم عليه نه، خطاء دا خطاء دی، يا هلكه ولې خطاء دی منطقيان خو كوي،

د دې نسبت کلامي او ذهني نه په خارج کې به نسبت وي، نو نسبت دا نه دي چې په خارج کې به موجود وي بلکه طرفينو نه به منتزع کيږي په خارج کې نو دا معنی د نسبت ده. **ثبوتية اوسلبية**. تطابقه نو تطابقه کې دوه ضميرونه دي يو مستتر ضمير او يو بانديدي دواړو ابراز کوي چه ضمير مستتر چا ته راجع دی. او بارز چا ته داجع دی. نو وائي چه مطابق وی دغه نسبت، نسبت کلامي به مطابق وي، ه ضمير راجع دی خارج ته د دې خارج سره معترض شبه وکړه چې يا هلکه مطابقت خو په اطرافو کې راځي لکه خط مطابق دی د سطحي سره او طول کې سطحه مطابق ده د جسم تعليمي سره په عرض و طول کې، جسم تعليمي مطابق دی د جسم طبعي سره په عرض او طول او عمق کې، هغه خو دلته په کلام کې نه شي راتللی هغه په اجسامو کې ژ راځي؟ ددې جواب وکړو چې **بلن يکونا ثبوتيين اوسلبيين** يا هلکه دلته کې د مطابقت نه مطابقت حکمي مراد نه دی بلکې په ديکې د مطابقت نه مراد ايجاب کې يا سلب کې مطابقت مراد دی. چې دا نسبت کلامي هم ايجابي دی ثبوتي په خارج کې هم ثبوتي وي، يانسبت کلامی سلبي وي نو په خارج کې هم سلبي وي، نو مطابقت دا مراد دی. **اولاتطابقه** يا به مطابق نه وي د او **لا تطابق** کيفيت بيانوي چې **بلن تكون النسبة المفهومة من الكلام ثبوتية والتي بينهما** بين الطرفين، **في الخارج والواقع سلبية او بالعكس فخبر**، ديته خبر وائي، شبه يا هلکه جزاء خو جمله وي او فخبر خو مفرد دی دا خو جزاء نه شي کيدای؟ نو ده جواب وکړو چې فالکلام خبر چې دا خبر د مبتداء محذوفي دی نو کلام خبر دی، **والا ای وان لم يكن لنسبته خارج كذلك** دي کې يې اشاره وکړه چې الا استثنائيه نه ده، بلکه مخفف ده، د ان لم يکن نه، خکه د الااستثنائيه نه بعد په استثناء کې فاء نه راځي او دلته کې فاء راغلي ده، ترجمه **كذلك** يعني تطابق، لاتطابق، **فانشاء ای فهو انشاء وتحقيق ذلک** نه غرض د شارح تر اخر پورې فرق بيانوي په دليل سره په ما بين د انشاء او د خبر کې، دليل داسې وائي چې ګوره دي کې خبر اوانشاء فرق په اعتبار د قصد او ارادې د حاکي سره دی، متکلم او حاکي په خبر کې لحاظ د مطابقت او لامطابقت کړی دی او په انشاء کې نی دا نه دی کړی بلکه هغه کښې ئ ايجاد د مالم يوجد کريدی، د حکايت او د نقل قصد ئ نه دی کړی نو فرق په ما بين د خبر او انشاء کښې په اعتبار د قصد سره شو، نو معنی وتحقيق ذلك اثبات د دې فرق په خبر انشاء کې په دليل سره دا دی، خکه متن کې خو فرق ته يو اشاره وشوه ليکن دليل خو يې نه دی ويلی، نو شارح دليل پرې وائي، يو غرض دا شو، دويم غرض د شارح د وتحقيق ذلك نه دفع د اعتراض ده، چې يا هلکه څنګه چې تطابق لاتطابق په خبر کې راځي داسې په انشاء کې هم راځي، لکه تا وويل چې بعت، دا معنی انشائي ده نو که په خارج کې متکلم ايجاد د بيع وکړو نو په دې قول کې صادق شو او که ونې نه کړو نو کاذب شو. يا اضرب ما ته تا وويل نو تا ايجاد د ضرب وکړو نو صادق شو، او که ودې نه کړو نو کاذب شو د دې وجې نه دوی وائي چې يا زيد الفاضل دا انشاء ده خکه منادی ده، يا زيد الفرس

معمولات خو بیا هم ورله وي، نو تاسو وايئ چې د دې يكون مقابل محذوف دی، دا مذكور نه دی. ويل والمسند قد يكون له متعلقات اذا كان فعلا او ما في معناه او وقد لا يكون له متعلقات اذا كان جامداً نو مقابل د قد يكون داشو، دا مقابل د قد يكون نه دی چې مسند فعل وي يا معنی د فعل وي نو معمولات به لري او كه فعل او معنی د فعل مسند نه وي نو معمولات به نه لري داسې نه ده كالمصدر سره شارح تعين مصداقي كوي د معنی د فعل، چې د معنی د فعل مصداق څه دی؟ دویم دفع د اعتراض كوي چې دا معنی د فعل نه ما كان بمعنى الامر والماضي به وي، نو هغه جوعين فعل كې داخل دی، لكه هيهات په معنی د بَعُد سره دی، نو هغه عين فعل ماضي دی، رُوَيد په معنی د أمهِل سره او هغه هم عين فعل دی، نو ده جواب وكړو چې معنی د فعل نه مراد ما كان بمعنى الامر والماضي نه دی، شبهي فعل تري مراد دی، هغه لكه مصدر واسمي الفاعل والمفعول وما اشبه ذلك لكه صفت مشبه، اسم تفضيل، ظرف وغيره شارح شبه كوي خان له څې، چې څلور بابونه لرل، احوال د متعلقات د فعل هم په كې لرل، اوس دی شبه كوي چې دا څيزونه په خبر پورې خو خاص نه دي، دا خو انشائياتو كې هم راځي، نو د دې څه مطلب چې والخبر لابدله خبر لپاره لابدي ده، بلكه لكه څنګه چې خبر لپاره لابدي ده نو دغسې انشاء لپاره هم دغه څيزونه لازمي دي، دا په كې راځي، انشاء كې مسند اليه راځي، مسند، اسناد، او چې مسند د انشاء فعل شي نو د هغې معمولات او متعلقات هم راځي، دغه شبه شارح كوي او وائي ولا وجه لتخصيص هذا الكلام بالخبر، خكه دا څنګه چې په خبر كې راځي، دارنګه په انشاء كې هم راځي، نو تاسو به جواب وكړئ چې دا تخصيص چې ماتن كړی دی، نو تخصيص مستلزم اختصاص لره نه دی، خو دا تخصيص يې د وجې د كثرة استعمال نه او د وجې د شيوع نه كړی دی، چې د دې څيزونو استعمال په خبر كې كثير دی، او شائع دی دا يې د دې وجې نه ندی كړی چې په كلام خبري كې راتلی شي او انشاء كې نه شي راتلی، دا تخصيص په اعتبار داصل وجود سره نه دی، چې په كلام خبري كې موجود يږي او په انشاء كې نه موجود يږي. وكل من الاسناد والتعلق هر يو د اسناد نه، چې مسند او مسند اليه كې او تعلق نه چې مسند او متعلقاتو كې وي، اما بقصر اوبغير قصر نو پينځم باب شو د اتو نه وكل جملة قرنت باخرى اما معطوفة عليها اوغير معطوفة نو شپږم باب شود اتو نه والكلام البليغ اما زائد على اصل المراد لفائدة او غير زائد نو اووم باب شو او اتم انشاء شو شبه يا هلكه لفائدة يې ولې ووېل، ويل احترزبه اى الماتن به، عن التطويل خكه چې زائد على اصل المراد لالفائدة چې وي نو هغې ته تطويل وائي، معنى مخل بالفصاحة دی، او كه زائد على اصل المراد وي (لفائدة، نو هغې ته اطناب وائي، هغه مخل بالفصاحة نه دی، على سره شارح شبه كوي، دا على په معنی د لكن استدراكيه سره دی، نو معنی لكنه لاحاجة اليه ليكن شان دا دی نشته دی حاجت دې قيد ته بعد تقييد الكلام بالبليغ تا مخكې الكلام

## تـنـبـيـه

دا خبر د مبتداء محذوفي دی چي هذا تنبيه، دا ما سياتي تر يو حده پوري چي احوال داسناد خبري دی تنبيه دی. شارح ورسره لگوي **علی تفسير الصدق والكذب**، د دي نه غرض د شارح دا دی چي تعيين د ما في التنبيه بي وكړو، چي ما في التنبيه څه شی دی؟ په دي تنبيه کي څه ذکر کوي؟ نو ويې ويل چي دي کي تفسير د صدق او د کذب ذکر کوي، نو اوس که څوك شبه وكړي چي يا هلکه علی تفسير. جار مجرور دی متعلق غواړي د دي متعلق څوك دی؟ نو تاسو ووايئ چي د دي متعلق تنبيه دی، ځکه چي تنبيه لغت کي ايقاظ ته وائي، نو دا معنی مصدري شوه، او معنی مصدري شبه فعل وي، نو هغي پوري تعلق د جارمجرور صحيح دی، نو بيا يي شبه وکړه چي يا هلکه دا خو هله صحيح کيږي چي تنبيه په معني لغوي سره شي، اوس که تنبيه په معنی اصطلاحي سره مونږه واخلو، نو بيا خو نه صحيح کيږي بيا خو دا جامد دی، اسم گرځيدلی دی اسم جامد نو تاسو وايئ؛ چي اسم خو گرځيدلی دی ليکن اسم جامد محضه نه دی، د منقول عنه په اعتبار سره وصف وو، نو په اعتبار د منقول عنه سره تعلق صحيح شو، او يا ورته دويم جواب وكړئ؛ چي دا ظرف مستقر دی، متعلق يي محذوف دی، نو تقدير داشو، چي هذا تنبيه هسي تنبيه دال، يا مشتمل علی تفسير الصدق والكذب، بنكته د تنبيه نه معنی اصطلاحي اخلئ، او متعلق د دي جارمجرور محذوف دی، دا چي ورسره شارح لگوي، چي **قد سبق اشارة ما اليه في قوله تطابقه او لا تطابقه** دي سره دفع د اعتراض كوي، اعتراض دا وارد شو چي يا هلکه تصدير د دي بحث په تنبيه سره نه صحيح کيږي، ځکه تنبيه په لغت کي ايقاظ ته وائي او اصطلاح کي تنبيه عبارت دی د کلام مفصله لاحقه نه چي اشاره ورته شوي وي په ما سبق کي اجمالاً، نو دلته کي کلام لاحقه مفصله تفسير د صدق او كذب دی، د دي تفسير د صدق او كذب ته اشاره خو مخکي اجمالاًنه ده شوي، نو د دي بحث تصدير او عنوان او ترجمه په تنبيه سره صحيح نه شوه، نو شارح جواب وكړو چي دا تنبيه سره تصدير صحيح دی، ځکه اجمالاًورته اشاره مخکي شوي دی، وي قد سبق اشارة ما ،اشاره اجمالي اليه دي تفسير ته، **في قوله تطابقه او لاتطابقه**، ځکه تطابقه صادق وو او لاتطابقه کاذب وو، **اختلف القائلون** نه غرض شارح يو د دي راتلونکي کلام خلاصه ذکر کوي اجمالاً، چي دلته کي دوه خلاقونه دي، يو خلاف ،نظام او جمهور يو طرف ته دی، او جاحظ بل طرف ته دی، او دا خلاف د دوی په واسطه کي دی، نو جمهور او نظام واسطه نه مني او جاحظ مني، دويم خلاف بيا د جمهورو او د نظام په خان کي دی په تفسير د صدق او كذب کي، دويم غرض د شارح واختلف القائلون کي دفع د توهم كوي چي يا هلکه دلته کي يو خلاف به وي؟ نو شارح جواب وكړو چي نه دوه خلاقونه دي، ويل مختلف شوي دي قائلون، قائلون جمهور او نظام دي چي قائل دي **بانحصار الخبر في الصدق والكذب**، اوس مختلف شوي في تفسيرهما، يعني د صدق او د كذب په تفسير کي، فقيل: وائي

نو د نظام د طرف نه جواب صحیح نه شو، خکه چي محققین وائي چي خبر دیته وائي چي ما تضمن کلمتین بالاسناد او په مشکوکه کي ما تضمن کلمتین بالاسناد شته دی، نو دا خبر شو، د دي نه انکار نه شي کیدای، بلکه چي یو مجنون سړی ووائي زید قائم نو دا هم خبر دی، حالانکه د هغه تصدیق نشته دی، دارنګه نائم سړی ووائي زید قائم نو دا هم خبر دی، یا یو سړی د قیام د زید نه منکر دی هغه ووائي زید قائم دا بیا خبر دی، ما تاسو ته دا والکلام عبارة داسي ولګولو چي د نظام د طرف نه جواب بهر نه شو نو شارح په هغه جواب رد وکړو، په والکلام سره، او که داسي لګوئ چي دا عبارة جواب د نظام د طرف نه دی هم صحیح کیږي، جواب داسي شو د نظام د طرف نه چي یا هلکه مشکوکه کي خلاف دی څوک وائي چي خبر دی، لکه محققین او څوک وائي چي خبر نه دی لکه مشهورین وائي، اوس نظام چي په واسطه باندي قائل دی چي مشکوکه واسطه شو نو د هغه په نزد باندي اختیار د مذهب د مشهورینو دی او د مشهورینو په نزد باندي مشکوکه خبر نه دی، نو نظام باندي اشکال وارد نه شو، یعني جائز ده چي د نظام مختار مذهب دی د مشهورینو وي، او په مذهب مشهورینو باندي دا خبر نه دی، نو عبارة جواب شو، او مسلك د محققینو مختار د نظام د نه وي، نو بیا جواب په کتاب کي شو نو بیا رد ته اشاره وکړه شارح په فلیطالع ثمه باندي، چي یا هلکه دا جواب هم ضعیف دی، خکه حق مذهب د محققینو دی، به هر حال د نظام مذهب ضعیف شو، نو زمونږ مقصد هم د نظام مذهب ضعیف کول دي، نو ذاتي څه د دي لپاره پرتوګ جوړول په مونږ باندي فرض نه دی، نو بس دغسي پاتي شو، **وبل بدلیل قوله تعالی**، اوس نظام د لیل وائي، د دلیل اضافت قوله تعالی ته دا اضافت بیاني دی، دلیل اوقوله تعالی یو شی دی، ﴿ اِذَا جَآءَكَ الْمُنٰفِقُوْنَ قَالُوْا نَشْهَدُ اِنَّكَ لَرَسُوْلُ اللّٰهِ ۘ وَ اللّٰهُ یَعْلَمُ اِنَّكَ لَرَسُوْلُهٗ ؕ وَ اللّٰهُ یَشْهَدُ اِنَّ الْمُنٰفِقِیْنَ لَكٰذِبُوْنَ ﴾ اوس (فانه سره) دلیل وائي لپاره د تطبیق د مثال د ممثل سره، لپاره د تطبیق د دلیل د مدعی سره، **وبل فانه تعالی (ای الله تعالی) جعلهم (ای المنافقین کاذبین في قولهم انك لرسول الله** نو نظام وائي تاسو خپله ترجمه وکړئ نو نه صحیح کیږي، منافقین دروغژن دي په انك لرسول کي چي دا مطابق د واقع سره نه دی، او زما ترجمه وبل بالکل ټهیك ده، منافقین دروغژن دي په انك لرسول الله کي، خکه دا مطابق د دوی د اعتقاد سره نه ده، نو چي ترجمه زما په مذهب باندي صحیح شوه، ستاسو په مذهب باندي نه صحیح کیږي، نو تفسیر د صدق او کذب زما په مذهب باندي اولی شو، د صدق او د کذب د تفسیر ستاسو نه، وائي: **لعدم مطابقته لاعتقادهم وان کان مطابقا للواقع.**

**ورد** شارح دفع د اعتراض کوي چي ضمیر به په رد کي نظام ته راجع وي چي رد کړی شوی دی نظام، نو نظام څنګه رد کیږي، نو د هغي جواب ئي وکړو چي **هذا الاستدلال** دغه استدلال رد کړی شوی دی، اوس په دي رد کي دوه نظرین دي: یو نظر د محققینو دی دویم نظر د مشهورینو دی، د محققینو نظر

اعتقاد عدم المطابقة، دویم (و) المطابقة للواقع بدون الاعتقاد اصلاً، اصلاً معنی نه اعتقاد د مطابقت وي
نه د عدم مطابقة وي، دا دوه صورتونه دواسطې په صدق کې شو، اوس یو صورت په کې د صدق شو
هغه دا چې مطابقة مع اعتقاد المطابقة، نو اوس ټوټل صورتونه په صدق کې درې شو ۱ مطابقة مع
اعتقاد المطابقة، دا صدق شو، د واسطې دوه صورتونه شو، ۱ مطابقة مع عدم المطابقة، دا یو
واسطه، دویم مطابقة بدون الاعتقاد اصلاً، درې صورتونه په کذب کې دي ۱ عدم المطابقة مع
اعتقاد المطابقة، دویم او بدون الاعتقاد اصلاً، یعني نه د مطابقة نه د عدم مطابقة، دلته کې هم ټوټل
صورتونه درې شو، یو صورت د کذب شو، چې عدم مطابقت سره د عدم دمطابقة نه، او دوه واسطې
شوې، عدم مطابقة سره د اعتقاد د مطابقة نه، عدم مطابقة بدون الاعتقاد اصلاً، نو دغه څلور لیږ
بصدق ولا کذب، فکل سره شارح نسبت بیانوي د مذهب د جاحظ او د نظام او د جمهورو په مینځ کې
چې نظام او جمهور یو طرف ته دي او جاحظ بل طرف ته کړئ نو دې دواړو کې نسبت د عموم خصوص
مطلق دی، نو شارح وائې فکل من الصدق والکذب بتفسیره، ای تفسیر الجاحظ اخص منه، ای من
التفسیر، بالتفسیر من السابقین، هغه اعم دی چې د جمهورو او د نظام تفسیر دی، ولې دلیل وائې د
اخص لپاره، ویل لانه اعتبر فی الصدق مطابقة الواقع والاعتقاد جمیعاً وفی الکذب، او په کذب کې عدم
مطابقتهما، ای عدم مطابقة الواقع والاعتقاد جمیعاً، دا وروستو عبارة د دې مخکې سره ولګوئ، (د
راتلونکې متن نه مخکې جمله) ویل وقد اقتصر فی التفسیرین السابقین علی احدهما، اوس په تفسیر د
جمهورو کې مطابقة او عدم مطابقة د واقع سره فقط دی په تفسیر د نظام کې مطابقة او عدم مطابقة د
اعتقاد سره فقط دی، نو اوس مسئله ترې دا راووته چې هر صدق او کذب د جاحظ په نزد باندې هغه
صدق او کذب د جمهورو او د نظام په نزد باندې دی، او هر صدق او کذب دجمهورو او نظام په نزد
باندې ضروري نه دی چې دا صدق او کذب د جاحظ په نزد باندې دې هم وي
اوس دا په مینځ کې چې شارح وائې بناء دې سره یو اعتراض دفع کوي، په ماتن باندې یو اعتراض
راغلی، چې یا هلکه د جاحظ اصلي مسلك خو دا شو چې صدق عبارة دې د مطابقة د واقع او د
اعتقاد د دواړو سره، کذب عبارة شو دعدم مطابقة د واقع او د اعتقاد سره، او تا په متن کې معیت
الاعتقاد اخیستی دی، نو کوم چې مذهب د جاحظ وو، هغه تا په متن کې ذکر کړی نه دی او کوم چې
مذکور دی هغه مذهب د جاحظ نه دی، نو دا خو تا افتراء وکړه په جاحظ باندې، ځکه چې تا په صدق
کې دا ویلې دي مطابقته مع الاعتقاد او ویل په کار وو مطابقته للواقع والاعتقاد ، او تا د والاعتقاد په
ځای مع الاعتقاد وویل، نو د جاحظ مسلك دا وو چې مطابقة د اعتقاد سره، او تا معیت الاعتقاد
اخیستی دی، په کذب کې مسلك دا وو چې مطابقة د واقع او د اعتقاد سره به نه وي، او تا وویل چې
عدم مطابقة د واقع سره خو مع الاعتقاد سره د عدم د مطابقة د اعتقاد سره، نو کوم چې مذهب

دجاحظ وو هغه تا په متن کې ذکر کړی نه دی او کوم چې دي ذکر کړی دی هغه مذهب د جاحظ نه دی، نو شارح راخي جواب کوي، چې د دې دواړو حال يو دی، يعنې زما د عبارة او ستا د دې عبارة معترض ته واني، يعني په صدق کې مطابقة الحکم للواقع والاعتقاد دی، او مطابقة الواقع مع الاعتقاد، د دې دواړو حال يو دی، په کذب کې عدم مطابقة د واقع د اعتقاد سره **عدم مطابقة الحکم للواقع والاعتقاد، او عدم مطابقة الواقع مع الاعتقاد** د دې دواړو مطلب يو دی، مآل کې يو دی خکه صدق کې حکم د خبر مطابق شو د واقع سره او واقع مطابق وو د اعتقاد سره، نو خبر مطابق د اعتقاد سره شو، خکه مطابق د مطابق د شئ مطابق د دغه شئ وي، په شق د کذب کې داسې شو، خبر مطابق د واقع سره نه وو، واقع مطابق د اعتقاد سره نه شوه، نو خبر مطابق د واقع سره نه شو، خکه چې عدم مطابقة د عدم مطابقة د شئ مستلزم دی عدم مطابقة د شئ سره، نو زما د عبارة مآل دغه عبارة مشهوره ته کيږي، **بناء على ان اعتقاد المطابقة** اعتقاد د مطابقت د خبر د واقع سره **يستلزم مطابقة الاعتقاد** دغه خبر مطابق داعتقاد سره به وي، ويل خکه **ضرورة توافق الواقع والاعتقاد** خکه واقع مطابق د اعتقاد سره شوه **حينئذ اى حين اذا اعتقد مطابقة الخبر للواقع**، خکه چې مطابقة الخبر للواقع شو او واقع مطابق د اعتقاد سره شو، نو خبر مطابق د اعتقاد سره شو، کذب کې هم دغسې، **وكذا (اى في الكذب ايضاً) اعتقاد عدم المطابقة**، عقيده د عدم مطابقت د خبر د واقع سره **يستلزم** دا مستلزم دی **عدم مطابقة الاعتقاد** (دا بل عبارة خو مونږ تاسو ويلی وو فافهم)، ويل **بدليل الشرى على الله كذبا ام به جنة** اوس دا مثال مطابق د ممثل سره دی، ويل **لان الكفار حصروا اخبار النبي ﷺ بالحشر والنشر** غونډيدل بيا خوريدل چې خني جهنم ته به خي او خني جنت ته به خي، **على ما يدل عليه قوله تعالى، قال الكفار اذا مزقتم كل ممزق انكم لفي خلق جديد** تاسو به پيدائش نوي کې به يئ، بيا به پيدا کيږئ، نو کافرو دغه خبر د نبي عليه السلام منحصر کړو په **في الافتراء** چې يا دی دروغ واني او **اخبر حال الجنة** يا دی خبر ورکوي د ليونتوب په حالت کې، دی ليونی دی، نو حصر يې په دې کې وکړو، **على سبيل منع الخلو** اوس که څوک شبه وکړي چې على سبيل منع الخلو ويل په کار نه وو، على سبيل الانفصال الحقيقي ويل په کار وو، خکه چې دغه خبر د رسول الله ﷺ کې دا دواړه نه شي جمع کيدلی، او د خبر نه دا دواړه پورته کيدای هم نه شي، نو دا خو منفصله حقيقيه شوه نو شارح **على سبيل منع الخلو** ولې وويل؟ تاسو ووايئ چې تهيك ده دا ده منفصله حقيقيه خو د کافرو مقصود دا وو چې ددې واړه وجو نه خالي نه دی، او که جمع شي نو زمونږ مدعى حاصله شوه، جمع دې شي، نو د دې وجې نه شارح وويل چې د کافرو مد نظر منع الخلو دی اگر که په واقع کې دا مانعة الجمع ده.

**ولاشكال المراد بالثاني** د ثاني تعيين مصداقي کوي يو، دويم دفع د اعتراض کوي چې يا هلکه ثاني نه مراد دا تکی د أم به جنة دی، او أم به جِنة خو انشاء ده، او انشاء خو غير الکذب وي، کذب خو نه وي،

نو دی راغلی جواب یې وکړو چې الثاني نه ام به جنة دا تکی نه دی مراد اخبار په حال د جنة کې دی. **و الاخبار حال الجنة لا قوله ام به جنة، على ماسبق الى بعض الاوهام** دا منفي سره لګوی، چې ام به جنة دا قول مراد دی على ما سبق الى...الخ، خو دا خطاء ده، **غير الكذب، لانه قسيمه** تعيين د مرجع ګانو کوي، **و لان الثاني قسيم الكذب**، او قسيم د شئ غیر وی د شئ نه، (دا وروستو عبارة مخکې دغه عبارة سره شبیع ولګولو، فافهم)، **وقسيم الشئ يجب ان يكون غيره** اوس دا قسیم ولې دی؟ متن لپاره دلیل وائي، ویل **لا المعنى اكذب ام اخبر حال الجنة. وغير الصدق**، او دغه ثاني غیر دی د صدق نه، ځکه **لانهم الكفار لم يعتقدوه** تعیین د مرجع ګانو کوي، ای **لان الكفار لم يعتقدوا صدقه** صدق د رسول الله.

**فلا يريدون في هذا المقام** دې نه غرض د شارح دفع د اعتراض کوي، چې هغه وروستو را روان دی بقوله **لا يتوجه**، سره لاترې لرې کوی، نو يتوجه به شي، نو وائي اعتراض رانقل کولی شي فافهم چې متوجه کیږي هغه اعتراض قيل چې ویلی شوی دی، ماتن باندې اعتراض متوجه شو، او معترض خلخالي دی، هغه اعتراض داسې وکړو، خو لیکن د خلخالي اعتراض بناء دی په دې باندې چې دا غیر الصدق دا عبارة خبر د مبتداء محذوفي دی، نو معنی دا شوه چې وهو دغه ثاني غیر الصدق، نو اعتراض اوس دا شو چې انه شان دا دی **لا يلزم من عدم اعتقاد الصدق** دلیل کې تا دا ویلې دي، **لانهم** ای الکفار لم یعتقدوه صدق د رسول الله ﷺ، نو عدم اعتقاد د صدق شو، او د عدم اعتقاد د صدق نه نه لازمیږي عدم صدق په نفس الامر کې، کافرو دې عدم اعتقاد د صدق کړی وي خو نفس الامر کې دې صادق وي، نو دا دلیل د تقریب تام نه شو، نو شارح اجمالاً جواب هلته کې ابتداء کې د فلا یریدون سره...الخ وکړو او تفصیلي جواب دلته په **لانه لم يجعله** سره کوي، د جواب حاصل داسې شو چې دا **غير الصدق** خبر د مبتداء محذوفي نه دی، چې وهو غیر الصدق دی، بلکه دا عطف دی په غیر الکذب باندې، او غیر الکذب د ارادې لاندې داخل وو، نو دغه غیر الصدق هم د ارادې لاندې داخل شو، نو تقدیر دا شو چې مراد په ثاني سره غیر دی د صدق نه، د کافرو مراد په ثاني سره غیر دی د صدق نه، اوس دلیل تهیک شو، د کافرو مراد ثاني نه غیر دی د صدق نه یعنې کافرو اراده د صدق نه ده کړې، ځکه **لانهم لم يعتقدوه** نو عدم اعتقاد د صدق دلیل په عدم ارادې د صدق باندې شو نو دا صحیح ده، دلته کښې ځکه وائي **فلا يريدون** (ای الکفار) فی هذا المقام الصدق الذی، نو ارادې لاندې داخل شو (چې اراده مستفاد ده د فلا یریدون نه) او دوی دا صدق نه اراده کوي، **لانهم لم يعتقدوه** نو ګوره عدم اعتقاد د صدق دا مستلزم دی عدم ارادې د صدق لره، نو ځکه (وروستو عبارة کې وائي چې **لانه** ای المصنف **لم يجعله، ای لم يجعل عدم اعتقاد الصدق دليلاً على عدم الصدق**، چې ته شبه وکړې، **بل** بلکه ماتن ګرځولی دی دا عدم اعتقاد د صدق دلیل **على عدم ارادة الصدق** نو دا تفصیلاً جواب وشو **فليتامل** کې بیا اشاره ده شبهې ته، چې یا هلکه دا دلیل خو نه صحیح کیږي، ځکه چې تا وویل چې عدم اعتقاد د

دغه معنی د واسطي شوه، معترض راغلی په جاحظ باندې یې شبه وکړه، چې یا هلکه تا خو دلیل پیش کړو د کافرو په قول سره او د کافرو قول معتبر نه دی، دی جواب کوی **وهم عقلاء من اهل اللسان عارفون باللغة** او د کافرو قول چې معتبر نه دی نو په احکام شرعیه ؤ کې معتبر نه دی، او په احکامو لغویو عربیو کې معتبر دی، **فیجب** دا تفریع شوه په دې تفریع باندې، **ان یکون من الخبر ما لیس بصادق ولا کاذب حتی یکون هذا** ای الخبر حال الجنة، **منه** ددی ما لیس بصادق ولا کاذب نه **بزعمهم** د دې نه وروستو عبارة مونږه تاسو مخکې ویلې دی.

**ورد** شبه، هلکه جاحظ رد کړی شوی دی؟ ویل نه، **هذا الاستدلال** بان المعنی ای معنی ام به جنة. اشاره یې وکړه چې معنی کې الف لام عوض دی د مضاف الیه نه، یا عهد خارجي دی مراد ترینه معنی د ام به جنة ده، معنی یې دا ده چې **ام لم یفتر** شبه: یا هلکه ام به جنة، معنی یې په ام لم یفتر سره وکړه، دا خو مجاز شو او په مجاز کې خو علاقه په کار ده، دې کې څه علاقه ده، دویم دا چې ام به جنة، معنی ام لم یفتر شو نو د دې ام لم یفتر نه الله تعبیر په ام به جنة باندې ولې کوي؟ نو ده جواب وکړو **فعبر عنه** ای عدم الافتراء بالجنة، ویل علاقه دا ده چې **لان المجنون لا افتراء له**، مجنون سره لازم عدم افتراء ده، نو ذکر د ملزوم وشو او مراد ترینه لازم شو، خکه عدم افتراء د مجنون سره لازم ده، خو تعبیر سره دا کنایة شوه او کنایة ابلغ وي د صریح نه او مجنون سره عدم افتراء لازم دی، خکه **لانه ای الافتراء الکذب عن عمد ولا عمد للمجنون** شبهه: یا هلکه مونږه په جواب باندې پوهه نه شو، خکه چې جاحظ خو دوه شقین ذکر کړي وو، چې دا اخبار حال الجنة غیر دی د کذب نه، خکه چې دا قسیم د کذب دی، او قسیم د شئ غیر وي د شئ نه، او غیر دی د صدق نه خکه دوی یې عقیده نه ده ساتلې، نو مونږ ته پته رانغله چې ماتن جواب په اختیار د شق اول سره وکړو، او که نه په شق ثاني، او که په شق ثالث سره، نو شارح تعیین د شق ته اشاره کوي، چې **فالثاني لیس قسیما للکذب** دې کې یې شق ته اشاره وکړه، اوس ثاني قسیم د کذب نه دی، خکه کذب دوه قسمه دی: ۱ کذب مطلق دی، او بل کذب عن عمد دی، نو که ته وائې چې دا ثاني قسیم د کذب دی، نو که د کذب مطلق قسیم وائې نو دا خطاء وائې، خکه دا فرد د مطلق دی، او فرد د شئ قسیم نه وي، او که ته غیر الکذب نه کذب عن عمد وائې نو هغه قسیم دی، خو ام به جنة سره هغه مراد نه دی، بلکه کذب لا عن عمد مراد دی، نو خکه وائې **مطلقاً، بل لما هو اخص منه اعني الافتراء** فیکون هذا حصراً للخبر الکاذب، کافر وائې چې د ده دا خبر د حشر او نشر دروغ دی، خو **بزعمهم**، حصر دی په نوعین کې، چې دا دروغ خو دي خو یا دې عمداً دروغ وائې او یا دروغ وائې لا عن عمد خکه چې لیونی دی.

# احوال الاسناد الخبري

ماتن وويل احوال الاسناد الخبري، نو په متن کې دري تکي راغلل، يو تکی احوال راغلو، دويم اسناد او دريم خبري راغلو، نو شارح د احوالو تعريف نه کوي، ځکه چې د دې تعريف مخکې تير شوی دی چې د حال په اصطلاح د علماءُ د علم المعاني کې اطلاق په دوو معانيو باندې کيږي، چې حال هغه امر داعي ته هم ويلی شي چې په جانب د مخاطب کې وي، او حال امر عارضه للفظ ته هم ويلی شي، دا دواړه مخکې تير شوي دي، دارنګې د الخبري تشريح شارح نه کوي، ځکه خبري منسوب بسوی خبر، او د خبر تعريف مخکې تير شوی دی، هغه کلام ته وائي چې د نسبت د هغې لپاره خارج تطابق او لا تطابق وي، پاتې شو دا بل تکی چه اسناد دی، د دې تعريف مخکې نه وو تير شوی نو شارح د دې تعريف کوي، او ماتن نه دی کړی د اختصار د وجې نه، نو شارح وويل چې وهو ضم اسناد، ضم کلمة، ضم کول د يو کلمې دی، شبه راغله چې يا هلکه اسناد خبري خو صفت د خبر دی، او ضم خو مصدر معلوم دی، ضم کول، نو ضم کول خو صفت د متکلم دی، نو دا خو تفسير بالمبائن راغلی، ځکه تا تفسير وکړو د صفت د لفظ په صفت د متکلم سره، او تفسير بالمبائن خو جائز نه دی، نو جواب وکړ چې دلته کې ذکر د مصدر معلوم دی، مراد ترينه حاصل بالمصدر دی، ذکر د ضم شو او مراد ترينه انضمام شو، نو معنی دا شوه چې دا اسناد خبري ضم والی د کلمې دی، چې مرتب وي په ضم کولو باندې، معترض راغلی شبه يې أوړوله چې يا هلکه ستا قاعده منقوض شوه په زيد قائم ابوه باندې، هلته کې ضم د کلمې خو نه دی بلکه ضم د جملې دی، ده جواب وکړو او ما يجري مجراها يا هغه چې جاري کيږي په ځای د جاري کيدو د دې باندې، لکه هغه جمله خبر واقع شي اګر که هغه کلمه نه ده خو په حکم د کلمه کې ده، دارنګه مرکبات ناقصه چې جامني زيد، غلام عمرو، يا زيد رجل فاضل، نو د دې کلمې نه مراد مسند شو، ضم يې کړی الی اخری چې مسند اليه دی، معترض شبه وکړه چې ضم خو غلام زيد کې هم شوی دی، او رجل فاضل کې هم شوی دی، او ديته خو اسناد نه وائي، جواب يې وکړو بحيث يفيد المخاطب، فائده مخاطب ته داسې رسوي چې د مخاطب سکوت صحيح وي يعنې متکلم نه نور څه نه غواړي، او غلام زيد کې نور څه غواړي چې غلام د زيد مر شو که ژوندی دی، غلام د زيد، نو څه چل وشو، د فائدې دا معنی، فائده رسی مخاطب ته چې ان مفهوم احدهما ثابت لمفهوم الاخری يا مفهوم د احدهما منفي عنه د بل نه، دا مخکې په کلام موجب کې او وروستو په کلام منفي کې شو، نو اوس که څوک شبه وکړي چې يا هلکه دشارح په جانب د محکوم به کې مفهوم خو تهيك شو، ځکه چې مفهوم د محمول ثابت وي مصداق د موضوع ته، خو دا دويم مفهوم ده غلط وويل، ځکه چې مفهوم د احدهما چې محکوم به دی تهيك دی هغه ثابت شو مفهوم د اخرى ته، نو مفهوم د اخرى ته خو

صرف په قضيه طبعيه او مهمله قدمانيه کې راځي، محصوراتو کې خو هلته کې مفهوم د محمول ثابت افرادو د موضوع ته وي، نو تاسو به جواب وکړئ چې يا هلکه مفهوم د اخرى عام دى، برابره خبره ده چې دا مفهوم په مرتبه د بشرط الشئ کې وي يعني بشرط العموم وي، لکه په طبعيه کې شو، يا په مرتبه د من حيث هي کې وي، لکه مهمله قدمانيه کې شو، يا دغه مفهوم په شرط د الانطباق على الا فراد وى لکه محصوره کې شو.

**وانما قدم** سره اعتراض کوي، او بيا جواب کوي، ويل انما قدم اى الماتن **بحث الخبر** په بحث د انشاء باندې، او د تقديم لپاره څه وجه نه وه نو ترجيح بلا مرجح لازم شوه، نو شارح يو جواب وکړو چې **لعظم شانه** اى الخبر، هم شرعاً خبر لوى دى او هم لغةً لوى دى، شرعاً لوى دى، ځکه اعتقاديات ټول اخبارات دي، ځکه انشائياتو سره سړى نه مسلمانيږي، الله واحد سره مسلمانيږي، او که ته بل چا ته ووائي چې قل هو الله احد نو ته مسلمان نه شوي چې په خپله نه وى او بل ته وائي بيا نه مسلمانيږي، او لغةً هم دغسې دى، ځکه اکثر محاورات د عربو اخبارات دي انشائيات نه دي، دويم جواب کوي. **ولكثرة مباحثه** اى الخبر، او العزة للتكاثر دى، دويمه شبه کوي چې **ثم قدم** اى الماتن ، **احوال الاسناد على احوال المسند اليه والمسند**، دا يو شبه شوه، نو شبه دا شوه ترجيح بلا مرجح راغلـه، **مع** سره دويمه شبه کوي چې ترجيح بلا مرجح در کنار ترجيح المرجوح راغلـه، **مع تاخير النسبة عن الطرفين**، اسناد خو نسبت دى او نسبت انتزاعي وي، او انتزاعي مؤخر د منشى نه وي، نو ترجيح المرجوح راغلـه **لان البحث** سره جواب کوي، ويل **لان البحث هنا انما هو عن احوال اللفظ الموصوف** خو د ذات د لفظ نه نه، وائي **بكونه مسندا اليه او مسندا** د ذات د زيد د احوالو نه بحث نه کوو، د ذات د قائم د احوالو نه بحث نه کوو، يا هلکه مونږ د احوالو د زيد نه بحث هله کوو، چې زيد کې وصف د مسند اليه توب راشي د احوالو د قائم نه بحث هله کوو، چې وصف د مسند راشي **وهذا الوصف انما يتحقق بعد تحقق الاسناد** نو تتمة د جواب د بهر نه وکړئ فكان الاسناد موقوفاً اليه، والمسند اليه والمسند موقوفان عليه، والموقوف عليه مقدم على الموقوف فلذا قدم احوال الاسناد على احوال المسند اليه والمسند اوس شارح والمتقدم سره غرض يا منشاء د غلطئ د معترض ذکر کوي، چې مقدم چې دى په نسبت باندې نو ذات د طرفينو دى، ته وائي خطاء شوى يې تا فرق نه دى کړى په وصف د طرفينو او په ذات د طرفينو کې، يا غرض د شارح په والمتقدم سره، دفع د اعتراض کوي، چې يا هلکه ستا د کلام نه، جواب نه معلوم شو چې مسند او مسند اليـه موقوف دى په اسناد پورې او متقرر عندهم دا ده چې اسناد موقوف دى په مسند، مسند اليه پورې، نو دور لازم شو، نو فما المفر عنه د دې دور نه بيا څنګه خان خلاصوې، نو دى جواب کوي، چې **والمتقدم على النسبة انما هو ذات الطرفين** يا هلکه دَور نه لازميږي جهت يو نه دى، ما چې وويل چې مسند اليه او مسند موقوف دى اسناد موقوف عليه دى، نو موقوف وصف د مسند او مسند اليه

شو، ذات نه دی، او خلک چې وائي چې مقدم په اسناد باندي دی مسند الیه او مسند یعني مسند الیه او مسند موقوف علیه دی او اسناد موقوف دی، هغه ذات د طرفینو دی، نو جهت یو نه شو، موقوف طرفین شو په اعتبار د وصف سره او موقوف علیه شو په اعتبار د ذات سره بل طرف نه ونیسي، اسناد چې موقوف علیه شو د طرفینو په اعتبار د وصف سره، او اسناد چې موقوف شو طرفینو پوري نو په اعتبار د ذات سره، نو دَور لازم نه شو. معترض راغلی شبه یې وکړه چې یا هلکه ذات د طرفینو غواړي تقدیم په اسناد باندي، او وصف د طرفینو غواړي تاخیر، نو ته رعایت د وصف کوي، او د ذات نه کوي، نو دا خو ترجیح بلا مرجح شوه، دی جواب کوي ولابحث لنا عنها ویل نشته دی بحث مونږه معاشري د علماء د علم المعاني لره د دي ذات د طرفینو نه، ویل دا وجه دا ده چې مونږ د ذات د طرفینو د احوالو نه بحث نه کوو، بلکه د طرفینو داحوالو نه کوو په اعتبار د وصف سره کوو، د دي وجې نه ما رعایت د وصف وکړو او د ذات ونه کړو.

لاشک نه غرض د ماتن تمهید دی وروستو تر فینبغي پوري، واني لاشک ان قصد المخبر بخبره افادة المخاطب خو فائده چې ورکوي مخبر خپل مخاطب ته نو یا د نفس نسبت او یا خپل علم مخاطب ته ښائي، چې څنګه نه عالم یې په خپل نسبت نو دغسي زه هم عالم یمه، شارح ورسره لګوي ای من یکون بصدد الاخبار دي سره غرض د شارح د فعه د اعتراض کوي، اعتراض دا وارد شو چې یا هلکه مخبر نه مراد به من یتلفظ بالکلام الخبري وي یعني څوک چې تلفظ کوي په کلام خبري باندي نو هغه منحصر دی په دي دوو فائدو کي، نو دا خبره خو خطاء ده، څکه چې بسا اوقاتو کي یو متکلم تلفظ په کلام خبري باندي کړی وي، او دواړه دغه فائدي په کي نه وي، لکه قول د امرئة عمران شو هغې وویل رب اني وضعتها انثی دا یو کلام خبري دی، او دي کي خو نه فائدة الخبر شته دی او نه لازم د فائدة الخبر شته دی، څکه متکلم امرئة عمران ده او مخاطب الله پاک دی، او الله تعالی خو په دي نفس وضع ای وضع امرئة عمران انثی باندي عالم دی، او دارنګه الله عالم دی چې امرئة عمران عالمه ده په وضع د أنثی باندي، نو دواړه فائدي رانغلي، بلکه دلته کي مقصود د امرئة عمران تحزن او تحسر دی، خپل خفګان الله ته ظاهروي خپل افسوس الله ته ظاهروي، دارنګه حضرت زکریا علیه الصلاة والسلام چې وویل رب اني وهن العظم مني واشتعل الراس شیبا نو دا یې په کلام خبري باندي تلفظ وکړو، په دي کي دواړه فائدي نشته دی، څکه الله عالم وو په ضعف د زکریا علیه السلام باندي، او دارنګه په دي باندي هم الله عالم وو چې زکریا علیه السلام په خپل ضعف عالم دی، نو دواړه فائدي رانغلي، بلکه غرض د حضرت زکریا خپل عجز او کمزورتیا الله ته ظاهروي، دارنګه نور هم شته دی، نو شارح راغلی جواب یې وکړو چې د مخبر نه مراد من یتلفظ بالکلام الخبري نه دی، مخبر نه مراد من یکون بصدد الاخبار، یعني کوم خای کي چې مخبر په قصد د خبر ورکولو کي وي، نو هلته کي به د ده دا کلام د دغه دوو فائدو نه خالي نه

وي، او امرءة عمران به قصد د اخبار كي نه ده، هغه خو په قصد د اظهار د تحزن اوتحسر كي ده. حضرت زكريا هم نه دى، نو هغه خارج شو، والاعلام دا الاخبار لپاره عطف تفسير شو، شبه. يا هلك عطف تفسير نه خو څه غرض وي څه نكته وي دا د څه لپاره عطف تفسير كوي، جواب ويل عطف تفسير د دې وجې نه وشو چې اخبار اواخبار كي تجنيس خطي وو، نو پته رانغله چې دا آخبار دى جمع د خبر، كه نه اخبار دى مصدر نو عطف تفسير يې راوړو چې والاعلام چې يا هلكه اخبار دى او آخبار نه دى. بيا شبه راغله چې بيا يې داسې ولې نه ويل چې من يكون بصدد الاعلام خو بس خبره به ختمه وه. د سره عطف تفسير ته به ضرورة نه وو راغلى نو تاسو وايئ چې په هغې كي تجنيس خطي وو، أعلام او اِعلام كي، نو هغى كي هم اشتباه ده نو ځكه يې هغه صرف ذكر نه كړو اوس كه بيا څوك شبه وكړي دا خو بيا په اعلام كي تجنس خطي پاتې شو، ځكه چې والاِعلام دى او كه والأعلام دى، تفسير نه وروستو خو بيا هم اشتباه شته دى، تاسو وايئ چې د تفسير نه وروستو اشتباه نه راځي، ځكه چې د مُفسر او مُفسَر مصداق يو دى، نو د اعلام او د اخبار مصداق يو دى چې دواړه مصدر دي، مصدرين دي او د أعلام او د أخبار مصداق يو نه دى، ځكه چې أعلام جمع د علَم ده او أخبار جمع د خبر ده، نو د تفسير نه وروستو اشكال اواشتباه نه پاتې كيږي، والا سره غرض د شارح اشاره كوي فائدې د تفسير ته چې ما تفسير د مخبر من يكون بصدد الاخبار والاعلام سره ولې وكړو؟ نو فائدې د تفسير ته اشاره كوي، نو وائي والاترجمه د الادا ده چې كه د مخبر نه من يكون بصدد الاخبار نشي، بلكه من يتلفظ بالجملة الخبرية شي نو بيا **فالجملة الخبرية كثيرا ما تورد لاغراض أخر** أخر ځكه شو **غير افادة الحكم ولازمه**، نه په هغې كي فائدة الخبر وي او نه لازم د فائدة الخبر وي، هغه أخر دا دى **مثل التحسر والتحزن في قوله تعالى حال كونه حكايةً عن امرءة عمران: رب اني وضعتها انثى، وما اشبه ذلك.** لكه د حضرت زكريا عَلَيْهِ السَّلَامُ **قول رب اني وهن العظم مني واشتعل الراس شيباً،** دارنګه **ما اشبه ذلك** ﴿ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ دارنګه **لايستوى القاعدون غير اولى الضرر** **بخبره** شارح ورسره لګئ متعلق بقصد اشاره ئې اوكړه دا ظرف لغوي دى او مستقر نه دى دويم اشاره وكړه دفع د اعتراض ته چې يا هلكه بخبره متعلق به وي مخبر پورې، ځكه هغه قريب دي، اواصل په تعلق كي قرب دى، نو بيا خو ذكر د خبر مستدرك شو په بخبره كي، ځكه د مخبر نه خبر معلوميږي، معنى به دا شي بيا چې مخبر په خبر سره، نو چې مخبر وي نو خبر وركوي كنه، نو استدراك لازم شو، نو ده جواب وكړو چې **متعلق بقصد** اشاره يې وكړه چې المخبر پورې متعلق نه دى چې استدراك لازم شي دا متعلق دى د قصد پورې. دا قصد په خبر خپل سره **افادة للمخاطب** شارح تركيب كوي چې، خبران چې تركيب كې دا خبر د ان شو، **اما الحكم** شبه يا هلكه الحكمَ منصوب دى د نصب لپاره دوولس طريقې دي، دا منصوب بنابر څه دى؟ شارح وويل،

القيام ثابت لزيد وعدم ثبوته اى القيام له، اى لزيد احتمال عقلي لامدلول ولا مفهوم للفظ، وفي نسخ لامدلول اللفظ ولامفهومه، فليفهم كي اشاره وشوه دېته چي تقسيم د خبر صادق او كاذب ته په اعتبار د نفس الامر سره دی، چي دغه مدلول ثبوتي يا عدم ثبوتي كه نفس الامر سره مطابق شو نو صادق نو كه نه شو نو كاذب شو، دويم فليفهم كي دېته اشاره وشوه چي دا عدم ثبوت دا احتمال عقلي دی، او مدلول او مفهوم د لفظ نه دی، د دې وجې نه خلكو په تعريف د خبر كي ويلي دي ما يحتمل الصدق والكذب او دا یې نه دي ويلي چي مايوضع للصدق والكذب خكه چي د خبر وضع خو د صدق او د كذب لپاره نه وی، خكه وضع خو لپاره د ثبوت وی او يا د وقوع او لاوقوع لپاره وی، خو احتمال په دې كې د صدق او د كذب دواړو شته دی په اعتبار د مطابقت نسبت نفس الامري سره.

ويسمى الاول شارح ورسره لگوي، اى الحكم الذي يقصد بالخبر افادته د دې عبارة نه غرض د شارح يو تعيين مصداقي د اول كوي، دويم غرض د شارح دفع د توهم كوي، چي يا هلكه د اول نه مراد به علم د مخاطب وي په نسبت باندې؟ نو شارح جواب وكړو چي نه، علم د مخاطب په نسبت باندې مراد نه دی، اول نه مراد نفس نسبت دی، ترجمه.. نو دا اول معلوم شو. فائدة الخبر دېته فائدة الخبر وائي، والثاني شارح ورسره لگوي، اى كون المخبر عالما به د دې نه تعيين مصداقي د ثاني كوي، دا يو غرض، دويم غرض دفع د توهم كوي، چي د علم نه مراد به علم د سامع وي په دې كون باندې اى كون المخبر عالما؟ ويل نه، نه، د ثاني نه مراد دغه معلوم دی چي كون المخبر عالما به په دې حكم باندې، او كون علم دی، او علم د سامع په كون مراد نه دی، دېته وائي لازمها شارح تعيين د مرجع كوي اى لازم فائدة الخبر ورته وائي لانه كل ما افاد الحكم سره، غرض د شارح يو دليل وائي د متن لپاره چي دې اول ته فائدة الخبر ملزوم وائي او دې دويم ته لازم د فائدة الخبر وائي، نو لازم او ملزوم كي قانون دا دی چي ملزوم چيرته راشي نو لازم راخي، او لازم چيرته راشي نو ملزوم به نه راخي، خكه ملزوم خاص دی او لازم عام وي، تحقق د خاص مستلزم دی تحقق د عام لره او عكس نشته دی، نو د دې لپاره دليل وائي يعني متن لپاره دليل وائي، دويم غرض د شارح تعيين د لازم كوي، چي يا هلكه لازم خو دوه قسمه دی، يو لازم اعم وي او بل لازم مساوي وي، نو دا لازم مساوي شو او كه لازم اعم شو؟ نو شارح تعيين كوي او تعيين يې په دې تكي سره وكړو چي وليس كل ما افاده سره، نو د دې نه معلوم شوه چي د لازم نه مراد لازم اعم دی، لازم مساوي نه دی مراد، دريم غرض د شارح دفع د اعتراض كوي، چي يا هلكه تا اول عبارة وويل د نفس نسبت تام خبري نه، او ثاني تا عبارة وويل د كون نه چي هغه هم معلوم دی، نو دغه لزوم به هم په دې معلومينو كي وي؟ نو معلومينو كي خو لزوم نه شي راتللی، خكه چي بيا خو ترجمه دا شوه چي چيرته كي نفس نسبت راخي نو بس كون به راخي، او چيرته چي كون راغلی نو نفس نسبت نه راخي، دې كښې خو ملزوم نه شي راتللی، نونفس نسبت خان له معلوم دی او كون خان له معلوم

دی، دي کي د سره تلازم نشته، دا لازم او ملزوم د سره دي نه، نواول او ثاني خو د معلوم نه عبارة شو،
او دا لزوم به هم په دي معلوم کي وي؟ نو معلوم کي خو لزوم نه جوړيږي، نو شارح جواب وکړو چي لزوم
په معلومينو کي نه دی بلکه لزوم په علم کي دی، تسمية په اعتبار د معلوم سره ده، او لزوم په اعتبار د
علم سره دی، داسي چي چيرته د مخاطب علم په نفس نسبت باندي راغلی نو علم په کون باندي راغي.
چي دا مخبر په دي نفس نسبت باندي هم عالم دی، او عکس نشته دی، چي چيرته د مخاطب علم
راغي په دي کون باندي، چي مخبر هم عالم دی دا ضروري نه ده چي په نسبت باندي دي علم راشي.
ذکه جائز ده چي هغه دي مخکي مخاطب ته معلوم وي، نو لزوم عالمينو کي شو. علم په نفس نسبت
باندي او علم په کون باندي په دي کي لزوم شو او لزوم معلومينو کي نه دی
خلاصه غرض د شارح دفع د اعتراض ده يا هلکه لزوم خو دوه قسمه دي يو لازم تحققا دی، او بل لزوم
صدقاً دی، نو په دي کي لزوم په صدقاً وي؟ نوصدقاً خو لزوم په دي کي نه شي صحيح کيدای، خکه
چي علم په کون باندي دا نه صادقيږي، په علم په نفس نسبت باندي، داسي خو نه شي ويلی چي علم
السامع بالنسبة علمه بالكون حمل نه شي کيدای، خکه دا خو متبائنين دي، خکه چي معلومين
متبائنين شو نو علم خو خامخا متبائنين کيږي، نو صدقا خو دي کي لزوم نه شي راتللی، حملاً نه شي
راتلی، شارح لانه سره جواب وکړو چي دي کي عموم او خصوص دی،، لازم او ملزوم په اعتبار د تحقق
سره دی، صدقاً نه دی، خکه کل ماسره يي وويل او کل ما تحقق لپاره راخي، نو ويل کل ما افاد وقال
الاستاذ کل ما وعندي في نسخة التجريد کيف ما حققته الحكم، ترجمه هر کله چي فائده کړه علم د
سامع اى فاعل افاد علم السامع) په نفس نسبت باندي نو افاد انه اى المخبر والمتكلم، عالم به نو علم په
کون باندي يي فائده کړو، وليس د دي نه مراد غرض د قيد دا شو چي لازم مساوي نه دی لازم اعم دی،
دا نه دی کل ما افاد السامع انه المخبر عالم بالحكم نو کون باندي علم راغلو، نو افاد للسامع نفس
الحكم، يعني د نفس نسبت علم وشي نو دا ضروري نه دی (عدم الضرورة مستفاد من كلمة ليس
فافهم) چي د دي خبر نه په نفس نسبت باندي دي علم راشي دا ضروري نه ده، خکه لجواز، د ليس
لپاره دليل دی، واني لجواز ان يكون الحكم معلوماً قبل الاخبار، خکه چي جائز ده چي سامع ته دي علم په
نفس حكم باندي مخکي د اخبار د مُخبر نه دي وي، مثال داسي شو لکه كما في قولنا لمن حفظ التورة قد
حفظت التورة دلته کي تا علم د سامع په کون باندي راوستو چي دغه مخبر، متكلم زما په دي حفظ
باندي عالم دی څنګه چي زه عالم يم، او په نفس حكم باندي علم رانغي، خکه هغه خو مخکي ورته
حاصل وو.
لوس شبه راغله په دي دويم دغه باندي (قسم د قصد المخبر بخبره باندي چي لازم د فائدة الخبر دی
كذا استفيد من السياق والسباق وقول الشيخ ليکن لفظ يي په دي دويم دغه باندي استعمال کړو فافهم

يعني: دويم دا دی چې، کوم وخت چې سامع د اخبار د متکلم نه مخکې په نفس حکم باندې عالم شو، لکه حفظ د تورات باندې دی مخکې عالم وو، خو **حفظت التوراة** سره د ده علم راغی په کون باندې چې دا مخبر زما په حفظ باندې هم عالم دی، لکه څنګه چې زه عالم يمه، (نو په دې اعتراض راغی چه: نو بيا به دې باندې بيا ديته فائدة الخبر څنګه وائي، (دې علم د سامع ته علی حفظه) ، فائدة الخبر خو ديته وائي چې کومه فائده حاصله شوې وي د خبر نه، او د دې خبر نه خو دغه فائده حاصله نه شوه، نو ديته فائدة الخبر څنګه وائي؟ نو شارح راغلی جواب يې وکړو، چې فائدة الخبر ديته د دې وجې نه نه وائي چې د دې خبر د وجې نه په حفظت التوراة سره، دی سامع ته يې فائده ورکړه بالفعل، دې اعتبار سره مونږ ديته فائدة الخبر نه وايو، بلکه ديته فائدة الخبر بالقوة وايو، داسې بالقوة چې که مونږه فرض کړو چې زمونږ علم د سامع په حفظ د توراة باندې نه وو او متکلم ورته وويل چې **حفظت التوراة** نو علم د سامع په نفس حکم باندې راغلی، نوشان د دې بالقوة دا دې چې دا فائدة الخبر کيدای شي اګر چې بالفعل فائدة الخبر دا نه دی، ويل وتسمية مثل هذا الحکم چې سامع ته معلوم وي د متکلم د القاء نه مخکې **فائدة الخبر** سره **بناء على انه من شانه ان يقصد بالخبر ويستفاد منه** يعني بالقوة حاصليدی شي اګر که بالفعل نه دی حاصل **والمراد** سره شارح دفع د اعتراض کوي، په دې اوله ملازمي باندې اعتراض وارد شو، چې يا هلکه زه به درته وښايم، په دې اوله ملازمه باندې چې علم د سامع په نفس باندې راغی نو علم د سامع په کون باندې راځي، دې باندې اعتراض وارد شو، ويل دا ملازمه زه نه منم، ځکه چې مخبر، متکلم ته نې، تا ده ته دا کلام وغورځولو چې زيد قائم او ده ته ثبوت د قيام د زيد معلوم نه وو، او تا ورته وويل چې زيد قائم نو د ده علم په نفس حکم باندې راغلی، خو ستا خپله چې دا قول دې هم کړی او شک وي په قيام د زيد کې، يا قيام د زيد تا ته مرجوح وي، يا قيام د زيد تا ته راجح وي، نو علم په کون المخبر عالماً باندې رانغلی ځکه علم خو يقين ته وائي، مخبر خو شاك دی يا متوهم دی يا مخبر ظان دی، نو عالماً خو نه شو، نو دلته علم په نفس حکم راغلی او په کون المخبر عالماً باندې رانغی، ځکه مخبر خو عالماً نه دی بلکه شاکاً يامتوهماً يا ظاناً دی، نو دا اعتراض بنا شو په مذهب د متکلمينو باندې، ځکه د هغوی په نزد علم عبارة دی ديقين نه، شارح راغلی جواب يې وکړو، چې ګوره دلته کې د علم نه علم د متکلمينو مراد نه دی، علم نه علم د حکماءُ مراد دی د منطقيانو، او د منطقيانو په نزد علم ديته وائي چې حصول صورة الشئ في الذهن او په عقل کې وايي، نو اوس تا ده ته يعني مثلاً عمرو ته دې وويل، زيد قائم نو د ده علم په نفس حکم باندې راغلی، نو د ده علم په دې باندې هم راغلی چې د دې **زيد قائم** صورت د دې مخبر په ذهن کې شته دی، نو ځکه ده وويل **والمراد بکونه اى المخبر عالماً** بالحکم حصول صورة الحکم في ذهنه، بيا معترض شبه وکړه چې يا هلکه صورة د حکم سره د حکم سلا‌زم نه راځي، ځکه چې مثلاً ته ويدهٔ يې او تا دهٔ ته وويل چې زيد قائم نو د ده علم په نفس حکم باندې

راغی او کون المخبر عالماً باندي خو رانغی، خکه چې د دې مخبر په ذهن کې صورة خو نشته دی. هغه ویده دی، ویده سړی خو تصور نه کوي، یا ته بې هوشه وي او تا ده ته په حالت د بې هوشی کې وویل زید قائم او یا ته لیونی وي او تا وویل زید قائم محض د خولې نه دې تلفظ وکړو. نو د ده علم په نفس حکم باندې راغی او کون المخبر عالماً باندې رانغی، حصول د صورة خو په ذهن د مخبر کې نشته دی، خکه لیونی ویده او بې هوشه تصور و نه کوي. تاسو وایئ چې د مخبر نه من یتلفظ بالجملة الخبرية مراد نه دی، د مخبر نه مراد من یکون بصدد الاخبار دی، او من یکون بصدد الاخبار ویده سړی نه شي کیدای، دارنګې مغمی علیه او مجنون نه شي کیدای

شارح هسې مونږه او تاسو خوشحالوي (قال الشيخ ذلك ضاحكاً، لا صرفاً عن الكلام) ویل ههنا ابحاث شریفة لیکن ویل دا کتاب مختصر دی دلته ما نه دي ویلي ـ سمعنا بها في الشرح مونږه سخا کړي ده جوانمردي کړي ده په دې ابحاثو باندې په شرح کې، چې ما ذکر کړي دي، چې ما تاسو ته وویل دلته په مختصر کې او څه تاسو هلته مطول کې ویلي دي، دا کافي دي

وقد ينزل المخاطب بهما د دې نه غرض د ماتن دفع د اعتراض کوي، اعتراض دا وارد شو، چې یا هلکه ستا يو مخاطب وي، هغه عالم وي په فرضیت د صلوة باندې او په دې باندې هم عالم وي چې زما دا متکلم عالم دی په فرضیت د صلوة باندې، لیکن هغه سامع مخاطب مونځ نه کوي، عالم خو په دواړو باندې دی، په فائدة الخبر باندې هم دی او په لازم د فائدة الخبر باندې هم دی، خو په خپله مونځ نه کوي، نو چې اوس ته ورته ووایې چې یا هلکه الصلوة فرض یا الصلوة واجبة نو دا اوس تا ورته یو کلام وروغورځولو او په دې کې خو فائدة الخبر او لازم د فائدة الخبر رانغی؟ دواړه رانغلل، نو دا مخکې چې تا حصر وکړو چې څوک چې په صدد د اخبار کې وي نو د هغه کلام به د دغه دوو فائدو نه خالي نه وي، نو دا خو صحیح نه شو، خکه دلته کې کلام شته خو دواړه فائدې نشته دی، ماتن جواب وکړو چې داسې عالم داسې دی لکه د جاهل په شان، چې د جاهل په شان شو نو دې کې فائدة الخبر راغی او لازم هم راغی، يعني يو عالم چې په خپل علم عمل نه کوي نو دی د جاهل په شانتې دی، ده ته لاچا عالم ویلي دي ( د دې نه بعد شیخ په ډیره غصه کې ماسپاتې تقریر وکړو) ده ته چا عالم نه دی ویلی، عالم خو په عمل سره عالم کیږي، بلکه الله ورته کلب، سپی ویلی دی، سپی دی ﴿ فَمَثَلُهُ كَمَثَلِ الْكَلْبِ إِن تَحْمِلْ عَلَيْهِ يَلْهَثْ ﴾ الله ورته خر ویلی دی ﴿ كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ أَسْفَارًا ﴾ دی، نو چې الله عالم سوء ته خر اوسپی ووائي نو مونږه توقف کولی شو؟ خلکه وایي علماء دې علماؤ ته څه مه وایئ، یا هلکه علماء دوه قسمه دي: ۱ يو علماء ربانيين دي چې باعمله دي، هغوی ته مونږ هیڅ نه وایو هغوی ته زمونږ سلام دی ۲ يو هغه عالم دی چې بد عمله دی، هغه ته چې الله سپی وائي، نو ته به ورته سپی نه وائې؟ که ته

ورته سپي نه وائي، نو تا د قران نه خلاف وکړو، که ته ورته خر نه وائي نو تا د قران نه خلاف وکړو، ورته سپي نه وائي نو تا د پيغمبر ﷺ نه خلاف وکړو، پيغمبر ﷺ وائي منهم تخرج الفتنة وفيهم تعود د هر عالم احترام نشته دی، د هغه عالم احترام به کوي، چې باعمله وي، چې کوم عمله وي، نو مونږ د هغه احترام کوو، مونږ د هغه د پښو خدمتګاران يو هغه ته زمونږ سلام دی او کو چې بې عمله وي نو مونږ د هغه دشمنان يو، هغه ته مونږ نسبت کوو، خکه چې د ده نه خلک خا وساتي، او الله ويلي دي ﴿ إِنَّ كَثِيرًا مِّنَ الْأَحْبَارِ وَالرُّهْبَانِ لَيَأْكُلُونَ أَمْوَالَ النَّاسِ ﴾ صريح الفاظو سره الله ويلي دي څه کنايه په کې نشته دی، کثيراً ... ډير د پيرانو او د موليانو نه، احبار جمع د حبر ده، حبر عالم ته وائي، حبر عالم مدقق ته وائي، جامع المعقول والمنقول ته وائي، لياکلوا اموال... لام تاکيد ابتدائيه دی، ﴿ لَيَأْكُلُونَ أَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ ﴾ نو ته به خلکو ته دا ايت نه بيانو چې يا هلکه دا عالم نه دی، غل دی، ډاکو دی، ده نه خان وساتئ، ستاسو جيبونه پريکوي، سنت درنه اخلي، توحيد درنه اخلي، او طاعت درنه اخلي، دا به بيانوئ خلکو ته، عبد الله بن مبارک خکه وائي کنه چې درې قسمه خلک دي د هغوی سره دين سميږي، او دغه درېو کسانو سره دين برباديږي هم، علماء سوء، غلط پيران او غلط حکمرانان، او قران هم په دې باندې ګواهي کوي، غلط پيرانو او موليانو سره دين خرابيږي ان کثيراً من الاحبار والرهبان قران ووېل، او غلط حکمرانانو سره دين فاسديږي، ﴿ وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَا فِي كُلِّ قَرْيَةٍ أَكَابِرَ مُجْرِمِيهَا ﴾ دا تول فساد د مشرانو او حکمرانانو نه پيدا کيږي، او د دوی سره دين سميږي هم، وما افسد الدين..... دوی سره سميږي قران پرې ګواه دی، ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّ مِنْهُمْ قِسِّيسِينَ وَرُهْبَانًا وَأَنَّهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ ﴾ دې نصاراو کې حق پرست علماء په کې وو ورهباناً حق پرست پيران په کې هم موجود وو، نو د دوی صفت وشو چې د حق پرستو موليانو او پيرانو سره دين سميږي، او دريم وهم لايستکبرون ورسره مال وو، بادشاهي وه خو تکبر يې نه کولو، نو لايستکبرون کې يې اشاره وکړه حکمرانانو ته، هغه حکمرانان چې هغوی د الله د حکم تابعدار وو اطاعت يې کولو.

**بهما** شارح تعيين د مرجع کوي **اي بفائدة الخبر ولازمها** منزلة الجاهل شبه يا هلکه عالم بهما په منزل د جاهل چې تا وګرځولو نو په دې باندې اثر مرتبه څه شی شو؟ ويل اثر مرتبه دا شو فيلقي اليه الخبر وی مخکي تنزيل نه ورته خبر غورخول صحيح نه وو او د تنزيل نه وروستو ورته خبر غورخولی شي، نو اثر مرتبه وي دا شو، **ولن كان عالماً بالفائدتين** حال دا دی چې دې عالم وي په دواړو فائدتينو باندې شبه يا هلکه ته عالم بالفائدتين په منزله د جاهل ګرځوي په زور سره؟ نو زور سره خو تنزيل د عالم بالفائدتين بمنزلة الجاهل بهما خو نه شي ګرځولی، ويل نه لعدم جريه على موجب العلم، مقتضی د علم باندې،

شارح دليل لپاره دليل واني تدقيق كوي، واني خكه **فان من لايجري على مقتضى علمه چې عمل دې هو والجاهل سواء كما تقول للعالم التارك للصلوة، الصلوة واجبة.**

**وتنزيل العالم بالشئ** د دې نه غرض د شارح دا دی چې په تنزيل كې صُور ثلثة ذكر كوي، چې په دې مقام كې درې صورتونه دي: ۱ ماتن ذكر كړو، دوه زه ذكر كوم، نو تحقيق المقام كوي په بيان د صُور ثلاثه لپاره د تنزيل د عالم بمنزلة الجاهل لپاره، نو اول صورت دا شو، تنزيل د عالم بالفائدتين بمنزلة الجاهل، دويم صورت دا دی، تنزيل د عالم بالشئ بمنزلة الجاهل، دريم صورت دا دی چې تنزيل د وجود د شئ بمنزلة العدم، نو هر ثاني د اول نه عام شو، خكه چې تنزيل د عالم بالشئ **بمنزلة الجاهل** دا عام دی د تنزيل د عالم بالفائدتين نه، او تنزيل د وجود الشئ بمنزلة العدم چې علم وي كه غير علم وي، دا عام دی د تنزيل د عالم بالشئ بمنزلة الجاهل نه نو هر يو ثاني عام شو د اول نه، ويل تنزيل العالم بالشئ اخوا ته فائدتين وي او كه څه شی وي **بمنزلة الجاهل** په دغه شئ باندې شبه يا هلكه د ځيئ نه به يې نيسي او تنزيل د عالم بالشئ بمنزلة الجاهل به يې جوړوي؟ ويل نه نه، **لاعتبارات خطابية** د هغه امورو د وجې نه چې معتبر كړې وي متكلم داسې امور چې مفيد لپاره د ظن به وي مفيد د يقين به نه وي **كثير في الكلام** (دا تنزيل العالم بالشئ كثير في الكلام) الكلام: كې الف لام استغراقيه كوئ، يعني په مطلق كلام كې، چې كلام الله وي كه كلام الرسول وي او كه كلام د فصحاء او بلغاء وي ومنه واني بعضې د دې تنزيل نه قوله قول د الله تعالى دى: ﴿ وَلَقَدْ عَلِمُوا لَمَنِ اشْتَرَاهُ مَا لَهُ فِي الْآخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ ۚ وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا بِهِ أَنفُسَهُمْ ۚ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ ﴾ نو لامتنعوا، ترجمه: او يقينا عالم وو دغه يهود په هغه چا باندې چې غوره يې كړو دې سحر لره، نشته دی د دې مَن لپاره په اخرت كې څه حصه د ثواب، او ډير بد دی هغه چې غوره كړو دې يهودو په دې سره نفسونه خپل، كه دوی عالم وی نو دوی به منع شوي وو، ليكن دوی عالم نه وو نو منع نه شو د دې سحر نه، نو اوس گوره د دې عجز د كلام او د صدر كې منافاة راغی، په صدر كې الله لام تاكيد په موطئه للقسم او قد تحقيقيه سره واني، چې دوی عالم وو، او اخر كې واني چې لو كانوا يعلمون دوی عالم نه وو، نو تدافع راغله په صدر الكلام و عجزه كې ليكن دلته كې الله علم د دوی نازل كړو په منزله د عدم علم كې، خكه چې علم په حرمت د سحر باندې، مقتضی يې اجتناب وو د سحر نه، خو دوی د سحر نه اجتناب ونه كړو، بلكه په سحر كې يې شروع وكړه، نو گويا چې دوی په دې حرمت د سحر باندې جاهل شو، نو خكه الله نفي د علم وكړه، او دا عدم عمل په علم باندې دليل قطعي نه شي كيداى، دليل ظني دی، خو خلك راجح گمان دا كوي چې دا سړی په دې خبره عمل نه كوي، نو د ده علم به په دې مسئله باندې نه وي، نو خكه يې لاعتبارات خطابية ويلي دی، بلْ سره دويم صورت ذكر كوي، تنزيل وجود الشئ منزلة عدمه كثير ډير

دي، منه واني بعضي د دې نه **قوله تعالى** ﴿وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ﴾ نو دلته کې نفي د رمي يې هم د رسول الله ﷺ نه وکړه او اثبات يې هم وکړو، نو دا متنافيين شو. ليکن دلته کې دوه ځيزونه وو. يو ابتداء د فعل ده، چې يو موټی شګه په لاس کې اخيستل او د کفارو طرف ته ګوزارول. دا ابتداء د فعل ده دا د رسول الله ﷺ په اختيار کې وه، يو انتهاء د فعل وه چې دا يو موټی شګه د کافرو سترګو ته رسيدل او بيا شمکوريدل، رانده کيدل. دا انتهاء د نبي عليه السلام په اختيار کې نه وه، او مقصود د متکلم په فعل سره انتهاء وي ابتداء نه وي، نو هغه نفي د انتهاء يې ترينه وکړه، نو نبي ويل چې ومارميت تا نه دي رسولي شګو لره د کافرو سترګو ته اذ رميت کله چې تا د لاس نه ګوزارولې؛ يعني رسوول او شمکورول کار زما وو، دا ستا په اختيار کې نه وو، فينبغي، شبهه: يا هلکه فاء خو د ډيرو معنو لپاره راځي دلته کې دا کومه فاء ده، شارح وويل دا فاء فصيحيه ده جزاء د شرط محذوفه لپاره، اى **اذا كان قصد المخبر بخبره افادة المخاطب فينبغي، ان يقتصر من التركيب** تركيب الكلام نه، **على قدر الحاجة** چې د مخاطب څومره ضرورت وي نو متکلم به په کلام کې هغومره ترکيب او الفاظ به ذکر کوي، کمی زياتي به نه کوي، ځکه حذرا عن اللغو نو اوس راشه **فان كان المخاطب** دا فاء تفصيليه ده کومه چې په فان کان کې راغلې ده دا فصيحيه نه ده، خالي الذهن من الحكم والتردد فيه. ی **لايكون**: سره شارح دفع د اعتراض کوي، اعتراض دا وارد شو چې يا هلکه ته د حکم نه څه اراده کوې؟ يا به ته د حکم نه نسبت اراده کوې او يا به اعتقاد او تصديق به اراده کوې، بله معنى خو د حکم دلته کې نه صحيح کيږي، که د حکم نه ته نسبت اراده کوې بيا ترجمه دا شوه، که چيرته وي مخاطب خالي الذهن د نسبت نه، مخاطب نسبت په ذهن کې نسبت ايجابي، سلبي نه وو، **والتردد** او مخاطب خالي الذهن وو، د تردد نه په دې حکم کې، نو بيا خو **والتردد فيه** مستدرک شو، ځکه چې خلو د ذهن د حکم نه مستلزم ده خلو د تردد نه په دې حکم کې، ځکه چې حکم په ذهن کې رانغلو، نو تردد خو نه شي راتلی. ځکه ترد د خو حکم غواړي، نو بيا والتردد فيه مستدرک شو، او که د حکم نه ته اذعان اخلې اعتقاد، تصديق، نو بيا معنى دا شوه که مخاطب خالي الذهن وو د تصديق نه او د تردد نه په دې تصديق کې، نو بيا خو معنى فاسده شوه، ذکر د والتردد فيه خو مستدرک کيږي نه، خو تردد خو په تصديق کې نه شي کيدای. نو شارح راغلی د دې شبهې نه دوه جوابونه کوي: ۱ يو جواب اى لايکون سره کوي. دويم جواب **بل التحقيق** سره کوي، د اول جواب حاصل دا شو چې يا هلکه اختيار د شق اول کوم. زه د حکم نه نسبت يعني وقوع او لا وقوع اخلم خو دلته کې حذف د مضاف دی. معنى دا شوه چې که چرته وي مخاطب خالي الذهن د تصديق نه په وقوع او لا وقوع باندې او خالي کيدل د ذهن د مخاطب د تصديق نه په وقوع او لا وقوع باندې دا مستلزم نه دی د خالي کيدو د وقوع او لا وقوع نه،

المؤكد تردده، شبه، یا هلکه تردد چي زائل شي نو څه فائده به راشي. ویل **ویتمکن الحکم** فائده د تمکین الحکم راشي، چي حکم به په ذهن کي ښه متقرر شي. لکن سره شارح په ماتن شبه کړي. او خان له خي، شبه داسي کوي چي د ماتن د کلام نه دا معلومه شو چي که مخاطب شکي وي نو تاکید په ان سره صحیح دی، ځکه ماتن بموکد ویلی دی او مؤکدان ته هم ورخي، او شیخ عبد القاهر. ویلي دي چي ان سره تاکید د هغه مخاطب لپاره کیږي چي د هغه لپاره ظن وي په خلاف د ستا د حکم باندې، لکه مثلاً اوس ستا جانب راجحه دا وو چې زید په دار کي نشته دی، او وجود د زید في الدار ستا په ذهن کي ستا مرجوح وو. نو دغه وخت کي به زه تا ته ان زیداً في الدار ذکر کوم، او په مطلق جواب د متردد کي تاکید په ان سره نه کیږي، شیخ وائي، ځکه چي که په مطلق جواب کي په ان سره جواب صحیح شي، نو بیا چي زه تا ته ووایم چي هل زید في الدار نو بیا خو جواب بغیر هسې د ان نه نه صحیح کیږي، بس بیا خو ان زیداً في الدار به وائي، یواځي زید في الدار ویل صحیح نه شو، حالانکه صحیح دي، یا ما تا ته وویل چي کیف زید نو بیا به ته جواب کوي چي انه مریض بی د ان نه هسې جواب نه صحیح کیږي، د دي خو هیڅ څوک قائل نشته دی، **لکن المذکور في دلائل الاعجاز انه** شان دا دی، **انما یحسن التاکید** به ان سره، دلته به التاکید کي الف لام خارجي دی، معهود ترینه تاکید بان سره دی، هغه وخت کي **اذا کان للمخاطب ظن في خلاف حکمك** دا شبه شوه اود ماتن د کلام نه دا معلومه شوه، تاسو جواب وکړئ؛ چي یا هلکه د ماتن مراد د مخاطب متردد نه عدم جزم دی، عدم جازم کیدل د مخاطب دی یعني که وي مخاطب متردد یعني غیر جازم، نو غیر جازم شك ته هم ورخي، او ظن ته هم ورخي

بل محل بنائي **وان کان المخاطب منکراً للحکم** د هغه نسبت وقوعي یعني هغه نسبت ایجابي یا سلبي نه، نو وجب توکیده، خو بحسب الانکار ای بقدره دي سره یې اشاره وکړه چي حسب په معنی د قدر سره دی، حسب په معنی د حساب سره نه دی، قدر د انکار دا دی چي قوةً وضعفاً په اعتبار د قوة او ضعف سره، یا هلکه تاکید په قدر د انکار سره څه معنی؟ ویل یعني **یجب زیادة التاکید بحسب ازدیاد الانکار** که انکار زیات وو نو تاکید کي به ته زیادة راولي او که انکار ضعیف وي نو تاکید کي به کمی راولي، دا ځکه ازالهٔ له لپاره د زائل کولو د انکار د مخاطب **کما قال الله تعالی** حاله کونه تعالی **حکایة ای ناقلاً عن رسل عیسی علی نبینا وعلیهم الصلاة والسلام حین ارسلهم الی اهل انطاکیة: اذ کذبوا في المرة الاولی**، نو دي بیغمبرانو وویل انا الیکم مرسلون صرف دوه تاکیدونه یي راورل. ﴿إِذْ أَرْسَلْنَآ إِلَيْهِمُ ٱثْنَيْنِ فَكَذَّبُوهُمَا فَعَزَّزْنَا بِثَالِثٍ فَقَالُوٓا۟ إِنَّآ إِلَيْكُم مُّرْسَلُونَ﴾ پوره ایت داسي دی مؤکدا بان واسمیة الجملة شو، وفي المرة الثانیة او دویم ځل چي کافرو په انکار کي ترقي وکړه. ﴿قَالُوا۟ مَآ أَنتُمْ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا وَمَآ أَنزَلَ ٱلرَّحْمَٰنُ مِن

فيْ ﴿إِنْ أَنتُمْ إِلَّا تَكْذِبُونَ﴾ نو پيغمبرانو هم په تاكيد كې ترقي وكړه. چې ﴿قَالُوا رَبُّنَا يَعْلَمُ إِنَّا إِلَيْكُمْ لَمُرْسَلُونَ﴾ مؤكدا بالقسم وانّ او لام دري او جمله اسميه څلور دا خكه **لمبالغة المخاطبين في الانكار حيث ﴿** قَالُوا مَا أَنتُمْ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا وَمَا أَنزَلَ الرَّحْمَٰنُ مِن شَيْءٍ إِنْ أَنتُمْ إِلَّا تَكْذِبُونَ﴾ نو پيغمبرانو په تاكيداتو كې ترقي وكړه، **الاكذبوا** سره شارح دفع دا عتراض كوي د متن نه، چې يا هلكه تا كذبوا صيغه د جمع ويلي ده، او تكذيب په مرة اولى كې د دوو پيغمبرانو شوى دى، نه د دريو وارو نو كذبوا صيغه د جمعي خو صحيح نه شوه، **الاكذبوا** ويل په كار وو، شارح جواب كوي **وقوله** دا قول د ماتن چې **الاكذبوا** مبني على ان تكذيب الاثنين تكذيب الثلثة. دا خكه، دليل د بهر نه وايي، دا خكه چې د وجي د اتحاد د مُرسل او مرسَل به نه، خكه مُرسل حضرت عيسى عليه السلام وو او مرسل به مسئله د توحيد وه، د دريو وارو دغه مرسَل به مسئله يو وه، نو د دې وجې نه تكذيب د دوو تكذيب د ثالث شو، او قران هم پرې گواه دى، چې د يو پيغمبر تكذيب د تولو پيغمبرانو تكذيب دى ﴿كَذَّبَتْ ثَمُودُ الْمُرْسَلِينَ﴾ ﴿كَذَّبَتْ عَادٌ الْمُرْسَلِينَ﴾ ﴿كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوطٍ الْمُرْسَلِينَ﴾ **والا** او كه چيرته دغه تاويل ونشي، شارح د دغه تاويل مذكور وجه واني نو بيا خو **فالمكذب اولا اثنان**، هغه دروغژن كړى شوى په اول خل كې دوه كسان وو، دوه پيغمبران وو دري نه وو

دويمه شبه دا راغله چې يا هلكه دا رُسل د عيسى وو، نو بيا نسبت الله خان ته څنګه كړى دى چې اذ ارسلنا اليهم اثنين ترجمه چې مونږه وليږل دوى ته دوه پيغمبران، نو تاسو جواب وكړئ چې رسالت من رسول الله دا بعينه داسې دى لكه رسالت من الله، نو خكه الله خان ته نسبت وكړو، چې زما د دې پيغمبر ليږل داسې دي لكه چې دوى ما ليږلي وو، دريمه شبهه راغله چې يا هلكه كافر خو په منافات باندې چې قائل وو، نو د رسول الله او د بشريت په منافات باندې قائل وو. د رسول البشر او د بشريت په منافات باندې نه وو قائل، نو هغوى څنګه وويل چې ما انتم الابشر مثلنا دا استبعاد هغوى څنګه وكړو. حالانكه هغوى خو د دې نه انكار كولو چې رسول الله بشر نه شي كيداى، او رسول البشر خو بشر وي كنه، نو دا استبعاد يې څنګه وكړو، نو تاسو جواب وكړئ مطول كې تاسو كړى وو چې دې پيغمبرانو دې كافرو ته داسې دعوت وركړى وو چې دوى دا گمان وكړو چې دا اصحاب د وحى دى، او بعينه دوى لكه چې مُرسل من الله دي، نو خكه يې دا استبعاد وكړو، چې تاسو بشر يې او بشر رسول الله نه شي كيداى، څلورمه شبه دا پرې ودَريده چې يا هلكه د كافرو مقصود خو نفي د رسالت وه، د بشريت اثبات خو نه وو، نو دلته كې كافرو څنګه وويل چې ما انتم الابشر مثلنا حالانكه دا خو د دوى مقصو نه وو بلكه مقصود د كافرو نفي د رسالت وه، اثبات د بشريت يې مقصود نه وو، نو داسې ويل په كار وو ما انتم رسل، رسلاً تاسو پيغمبران نه يئ، نو تاسو وواييئ په جواب كې چې گوره وما انتم رسل دا صريح دى او ما انتم الابشر

دی، نو بیا اطلاق د ربیع په الله باندې وشو، دا خو سوء ادب دی. ده جواب وکړو چې یعني دا متن قصد کوي په فاعل حقیقي سره القادر المختار، یعني دغه عنوان سره. او قادر مختار اګرکه په عنوان کې عام دی لیکن معنون کې خاص دی، الله مراد دی. او قرینه دا ده بقرینة الاثبات الذي هو من اللوازم المساویة للفاعل الحقیقي. معترض شبه وکړه چې اثبات خو د لوازم مساویو د فاعل حقیقي نه دی؟ ځکه فاعل حقیقي قدیم دی ازلي دی. او اثبات حادث ما لایزال کې دی ممکن دی، او لازم مساوي خو دیته وائي ما یمکن الانفکاك عن الملزوم تاسو ووایئ چې دلته کې د لازم مساوي نه مراد د منطقیانو هغه لازم مساوي مراد نه دی، چې ما یمکن الانفکاك بینهما، لازم مساویه نه دا مراد دی چې دې نه موجودیږي بې د ملزوم نه، او دغه اثبات بغیر د الله نه هم نه شي موجودیدی، نو د لازم مساوي دا معنی شوه، لکه احد المتساوین چې بې د اخر نه نشي موجودیدی، نو دغسې دغه لازم نه موجودیږي بغیر د فاعل حقیقي نه، الیه دې الربیع ته وعلی هذا القیاس غیره ویل په دې مذکور باندې بغیر د دې نه قیاس کړه، تعیین د مرجع کوي ای غیر هذا المثال. حاصله کې یو بیان کوي د وعلی هذا القیاس غیره لپاره، چې هغه غیر به څنګه قیاس کوو، دویمه قاعده کلیه بیانوي دتعمیم په مذهب د سکاکي باندې، نو وائي. وحاصله: حاصل د دې ما قال د سکاکي دا دی ان یشبه الفاعل المجازي بالفاعل الحقیقي وجه د شبه في تعلق وجود الفعل به، ثم یفرد الفاعل المجازي بالذکر وینسب الیه شئ من لوازم الفاعل الحقیقي، نو دغه استعارة بالکنایة شوه.

ماتن وویل وفیه نظر شارح ورسره تعیین د مرجع کوي، چې په دې فیما ذهب الیه السکاکي کې نظر دی، دوویم دفع د توهم کوي چې فیه کې سکاکي ته به ضمیر راجع وي؟ چې په سکاکي کې نظر دی، نو ذات د سکاکي کې څنګه نظر وي؟ ویل نه نه په ما ذهب الیه السکاکي کې نظر دی. لانه لانه نه مقدم د قیاس را اوباسي او یستلزم تالي د قیاس شو. یعني که چیرته صحیح شي ما ذهب الیه د سکاکي یستلزم ان یکون المراد بالعیشة في قوله تعالی في عیشة راضیة صاحبها، تالي باطل دی، مقدم مثله دی. وجه د ملازمې دا ده ویل کما سیاتي في الکتاب یا هلکه ما سیاتي في الکتاب څه دی؟ من تفسیر الاستعارة بالکنایة علی ما ذهب الیه السکاکي، چې ذکر د مشبه مراد ترینه مشبه به وي، نو ذکر د فاعل مجازي مراد ترینه فاعل حقیقي شو، او شارح وائي وقد ذکرناه، چې مونږ مخکې ذکر کړی هم دی، لکه پرون، وهو او دغه ما ذهب الیه د سکاکي او ماذکرناه یقتضي ان یکون المراد بالفاعل المجازي چې مشبه وي هو الفاعل الحقیقي فیلزم ان یکون المراد بعیشة صاحبها واللازم باطل، یستلزم باطل دی، ځکه اذ لامعنی لقولنا هو دغه صاحب في صاحب عیشة ځکه ظرفیت د شي خپل نفس ته راځي معترض په ماتن باندې اعتراض وکړه چې دلته فاعل مجازی خو ضمیر د راضیة وو نو د هغه ضمیر د راضیة نه به ضمیر اراده کوي که نه، او عیشة خو فاعل مجازي نه دی، نو متن کې دا صحیح نه شو

ملازمي دا ده **لان اسماء الله تعالى توقيفية** نو كه سمع د الله نه اوشي نو صحيح نو شي او كه سمع نه وي نو نو صحيح كيږي، اوتالي خو باطل دي اى والـلازم باطـل خكه لان مثل هذا التركيب صحيح شائع ذائع معترض شبه وكړه چې شائع او ذائع دوى خو په نزد د هغه چا باندې چې هغه اسماء د الله غير توقيفي وائي، او څوك چې توقيفي وائي د هغوى په نزد باندې د شائع او ذائع نه وي كنه، او سكاكي دې د غير قائلينو د توقيفيو نه وى، نو ده جواب وكړو عند القائلين بان اسماء الله تعالى توقيفية وغيرهم سمع من الشارع او لم يُسمع، دا د دواړو په نزد باندې شائع او ذائع دي، شائع او ذائع كې فرق دا دى چې شائع عبارة دى د كثرة الاستعمال نه، او ذائع عبارة دى د كثرة د وقوع في الكلام نه، اگر كه مال يو خبرې نه كيږي، خو دا فرق اعتباري شته دى، واللوازم الاربعة كلها منتفية كما ذكرنا فينتفي كونه من باب الاستعارة بالكناية خكه لان انتفاء اللوازم يوجب انتفاء الملزوم، نو تول تاليگان باطل شو.

**والجواب** سره شارح دله د سكاكي كوي، او د ماتن د دې اعتراضاتو نه جواب كوي، حاصل د جواب دا چې يا هلكه كوم چې مراد د سكاكي دى په استعاره بالكناية كې نو په هغې باندې دا اعتراضات د ماتن نه وارديږي او كوم چې ماتن فهم كړى دى د سكاكي د تفسير بالكناية نه په هغې دغه اعتراضات وارديږي خو هغه مراد د سكاكي نه دى. اوس مراد د سكاكي دا دى چې استعاره بالكناية ديته وائي چې ته ذكر د مشبه به كوي، او مراد به ترې مشبه به كوي. خو ادعاءً. حقيقةً نه، دغه مشبه به په خپل خاى باندې به وي خو دا فرد ادعائي د مشبه به به گرخوي په دې شان سره چې د دغه مشبه به دوه فرده دي يو متعارف او بل غير متعارف. نو فرد متعارفه يې هغه خپل فرد دى او غير متعارف دغه مشبه شو، خكه سكاكي دا ويلي دي چې **مخالب المنية نشبت بفلان** كې مراد د منيه نه دغه موت دى. خو د دې موت لپاره جامه د سبُع نه اغوندو، دا موت به يو فرد د افرادو د سَبُع نه به فرض كوو، نو دې باندې اعتراضات د ماتن نه وارديږي چې عيش نه مراد صاحب دى. خو ادعاءً مراد دى چې عيش ته به مونږ جامه د صاحبيت اغوندوو. دارنگه د نهار نه مراد صائم دى خو حقيقةً نه ادعاءً چې دا نهار به يو فرد مونږ د صائم فرض كوولپاره د مبالغې په تشبيه كې، دارنگه په دې نورو كې او ماتن دا فهم كړى دى چې د سكاكي مطلب په استعاره بالكناية كې دا دى چې ذكر د مشبه او مراد ترينه مشبه به حقيقة اراده كړي ده، نو په دې باندې اعتراضونه وارد شو خو ليكن دا مراد د سكاكي نه دى نو خكه وائي چې مبنى د دې اعتراضاتو په دې باندې ده چې **على ان مذهبه في الاستعارة بالكناية ان يذكر المشبه ويراد المشبه به حقيقةً** لكه ماتن دا فهم كړى دى او په دې باندې يې اعتراضونه كړي دي وليس كذلك او امر دارنگه نه دى بل يراد المشبه به ادعاءً ومبالغة لظهور ان ليس المراد بالمنية في قولنا مخالب المنية نشبت بفلان هو السبع حقيقةً. شبه: يا هلكه جائز ده چې سكاكي دى په دې باندې راضي نه وي كنه؟ ويل والسكاكي مصرح بذلك في كتابه چې ذكر د مشبه او مراد ترينه مشبه به ادعاءً به وي او حقيقةً به

# احوال المسند اليه

دا خبر دی لپاره د مبتداء محذوفي نو تقدير دا شو چې **الباب الثاني احوال المسند اليه** باب ثاني د اتو بابونو د علم معاني نه احوال د مسند اليه دي. شارح ورسره لګوي اى الامور العارضة له د دې نه غرض د شارح يو تعيين د ماهو المراد کوي د احوالُ څکه احوال جمع د حال ده او حال په ډيرو معانيو سره راځي، حال نحوي او دارنګه حال منطقي، حال د متکلمينو حال د فقهاءُ، حال صرفي نو شارح تعيين وکړو چې دلته کې حال نه مراد امور عارضه دي مسند اليه ته. دويم غرض د شارح د دينه دفع د اعتراض کوي چې يا هلکه ښکته په مقدمه کې په بلاغة الکلام کې تير شوي دي چې حال د دوى په نزد باندې عبارة دی د هغه امر داعيه نه په جانب د مخاطب کې چې انکار دی خلو د ذهن ده شك دی نو د هغې خو اضافت مسند اليه ته نه شي کيدای، نو تا دلته کې اضافت د احوالُ مسند اليه ته څنګه وکړو؟ هغه احوال د مسند اليه خو نه دی احوال د سامع او مخاطب دي، نو شارح راغلی جواب يې وکړو چې هر سُور ډيری شاه ګل نه وي. د علماءُ د علم معاني په نزد باندې د حال اطلاق په دوو معانيو باندې کيږي، حال هغه امرِ داعي ته هم وائي. لکه په تعريف د بلاغة الکلام کې چې تير شوی دی او حال امورِ عارضه ته هم وائي، دلته کې د حال نه معنى ثاني مراد ده. نو اضافت د احوالُ مسند اليه ته صحيح شو. او دا قيد د حيثيت چې ورسره شارح ولګولو چې من حيث انه مسند اليه نو په دې سره يې دفع د اعتراض وکړه، اعتراض دا وارد شو چې يا هلکه من جملهٔ د احوالو د مسند اليه نه کون د مسند اليه جزئي دی کلي دی، دارنګه کون د مسند اليه جوهر او عرض، دارنګه کون د مسند اليه موجود يا معدوم، دا هم احوال د مسند اليه دي او حالانکه د دې نه بحث په دې باب کې نه دی شوی، نو دی وائي چې قيد د حيثيت په تعريفاتو د امورو کې مرعى وي، ويل **من حيث انه مسند اليه** ويل دغه امور مسند اليه ته عارض دي خو من حيث انه مسند اليه دی، او کليت او جزئيت چې عارضيږي مسند اليه ته نو په دې حيثيت سره چې دا مفهوم دی، دارنګه جوهريت او عرضيت چې ورته عارضيږي په دې حيثيت سره چې دا موجود دی، چې موجود يا به قائم بالمحل وي يا به غير قائم بالمحل وي، د مسند اليه په حيثيت سره نه دی، دارنګه مسند اليه ته موجود او معدوم حالت چې عارضيږي نو په اعتبار د حدوث او امکان سره، مسند اليه په حيثيت سره نه دی. بيا شبه راغله بهر نه چې يا هلکه من جمله د احوالو د مسند اليه نه کون د مسند اليه دې لپاره د حکم مؤکده يا کون د مسند اليه دې لپاره د حکم غير مؤکده يا کون د مسند اليه دې د مسندِ مقدم لپاره يا کون د مسند اليه دی د مسندِ مؤخره لپاره. د اهم امور عارضه مسند اليه ته دی او په دې حيثيت سره چې دا مسند اليه دی نو دوی ورته عارض دي، او د دوی نه هم په دې باب کې بحث نه دی شوی. نو تاسو يو بل قيد د ځان نه کيږدئ؛

عيش نه مراد به صاحب وي، كوم چي فاعل مجازي دي هغه عيش نه دی، او كوم چي عيش دی
هغه فاعل مجازي نه دی، نو شارح جواب وكرو چي هذا مبني دا ما ما قال د مصنف مبني دی على ان المراد
بعيشة وضمير راضية واحد دی، خكه د راجع او د مرجع مصداق يو دی، نو چي ضمير د راضية فاعل
مجازي شو نو عيش هم فاعل مجازي شو. دويم محال پري راوري، واني كه چرته صحيح شي ما ذهب
اليه د سكاكي نو ويستلزم لازم به شي چي ان لا يصح الاضافة شبه يا هلكه مطلق اضافت به نه صحيح
كيږي، نو دا ملازمه خوصحيح نه ده، خكه كه ما ذهب اليه د سكاكي صحيح شي نو چيرته په دنيا كي
اضافتونه به نه صحيح كيږي؟ دا خو نه صحيح كيږي، جواب يي وكرو چي په توله دنيا كي اضافتونه
نه دي مراد بلكه في كل ما په هغه تركيب كي اضيف الفاعل المجازي الى الفاعل الحقيقي نو هغه به صحيح نه
شي نحو نهاره صائم تالي باطل مقدم مثل شو، دليل د ملازمي لبطلان اضافة الشي الى نفسه داسي اضافت
اللازمة من مذهبه اى مذهب السكاكي خكه لازم شوی وي لان المراد بالنهار حينئذ په وخت د استعاره
بالكناية كي فلان نفسه شو، او د په نهاره كي هم فلانكی دی، نو اضافت د شي خپل نفس ته راغی،
تالي باطل دی. ولا شك في صحة هذه الاضافة شبه يا هلكه صحيح ممكن دي وي خو واقع دي نه
وي؟ويل ووقوعها ويل واقع هم دی كقوله تعالى: فما ربحت تجارتهم شارح په ماتن باندي شبه كوي، او
خان له خي، ويل دغه فما ربحت تجارتهم په تمثيل كي اولى وو، د نهاره صائم نه، اوس وجه د اولیت
دا ده مطول كي تاسو ويلي وو، چي خكه چي په نهاره صائم كي سكاكي شور شغب جورولی شي،
داسي چي يا هلكه مجاز خو په اسناد د صائم كي دی ضمير ته،او په اسناد د صائم كي نهار ته، دي
كي خو نه دی، نو لفظ صريحي د نهار نه دغه زمانه واخله او ضمير د صائم چي نهار ته راجع كوي
نومراد ترينه فلان نفسه واخله، لكه صنعة الاستخدام شو. نو اضافت د شي خپل نفس ته رانغلی، او په
خلاف د فما ربحت تجارتهم كي، دا شور شغب سكاكي نه شي كولى. ليكن جواب شارح ته وكري؛
خكه شارح اولى ويلي دی. او وهذا هو الحق يا والصواب بي نه دی ويلي. چي يا هلكه دا مناقشه ده
په مثال كي او مناقشه في المثال د داب د محصلينو نه نه ده. دريم تالي محال راوری، چي كه چيرته
صحيح شي ما ذهب اليه د سكاكي نو ويستلزم ان لا يكون الامر بالبناء في قوله يا هامان ابن لي صرحاً لهامان
تالي باطل مقدم مثل . و، وجه د ملازمي دا ده، يعني دا خه لازم ده چي امر هامان ته به نه شي، ويل
خكه لان المراد به اى هامان حينئذ په وخت د استعاره بالكناية كي هو العملة انفسهم والملازم باطل ان
لايكون باطل دی، خكه لان النداء له والخطاب معه نو چي نداء له شو او خطاب معه شو نو امر هم هغه
ته شو، خلورم تالي محال راوري ويستلزم دا ما ذهب اليه د سكاكي كه چيرته صحيح شي نو لازميږي
چي ان يتوقف نحو انبت الربيع البقل نحو دا دی وشفي الطبيب المريض وسرتني رؤيتك مما يكون
الفاعل الحقيقي هو الله تعالى على السمع او سمع من الشارع، تالي باطل مقدم مثل شو، وجه د

معلول کي يې اينبې دي چې بالذات يعني من حيث انه مسنداليه خو بالذات او دا کون د مسنداليه لپاره د حکم مؤکده يا کون د مسنداليه د حکم غير مؤکده دا احوال عارضه مسنداليه ته بالعرض دي، په واسطې د تاکيد د حکم او د ترک تاکيد سره راخي. دارنګه کون د مسنداليه لپاره د مسند مقدمه يا مؤخره دا احوال بالذات نه دي احوال بالعرض ديپه واسطې د مسند سره راغله بالذات نه دي راغلي. نو دا قيد به ورسره د بهر نه کيږدئ چې اى الامور العارضه له من حيث انه مسنداليه بالذات. دريمه شبه بيا رأوږيږه. چې يا هلکه من جمله د امور عارضو نه مسنداليه ته رفع ده، چې مسنداليه به د مرفوعاتو نه وي او دغه رفع مسنداليه ته من حيث انه مسنداليه عارضه ده او بالذات ده او هغې نه خو بحث په دې باب کې نه دى شوى چې رفع د مسنداليه، چې مرفوع به ولې وي؟ دا خو يې نه دي ويلي نو ناسو بل قيد کيږدئ چې التي يطابق بها اللفظ مقتضى الحال يا هلکه د امور عارضه ۇ نه مراد هغه امور عارضه دي مسند اليه ته چې په هغې سره مطابقت د لفظ راځي د مقتضى الحال سره او رفع د مسنداليه په دې مشابه کې نه ده. څکه رفع امر عارضه مسنداليه ته دى خو په دې کې دا حيثيت نشته دى چې دا مسنداليه مرفوع څکه شو چې مخاطب رفع غوښته، داسې څوك نه وائي، نو يو قيد به ورسره دا کيدې چې التي يطابق بها اللفظ مقتضى الحال. قدم سره شبه کوي او د شبهې نه وروستو جواب کوي، ويل قدم اى الماتن المسنداليه على المسند او وجه د تقديم نه وه، نو ترجيح بلا مرجع لازمه شوه نو شارح جواب وکړو چې لما سياتي د وجې د هغه دليل نه چې وروستو به راشي، چې مسنداليه رکن اعظم د کلام دی، محور د کلام دی او رکن اعظم مقدم وي په غير اعظم باندې نو څکه يې مقدم کړو اوس من جمله د امورو عارضو نه مسنداليه ته حذف د مسنداليه دی نووي ويل.

**اما حذفه** اى حذف المسنداليه د حذف د مسنداليه نکات څه دي؟ نو د دي لپاره يې وويل چې واما حذفه يعني نکات د حذف دا دي. قدمه سره شبه کوي او شبهې نه وروستو بيا جواب کوي، ويل مقدم کړو ماتن حذف لره على سائر الاحوال په باقي احوالو باندې، او مرجح د تقديم لپاره نه وو، نو ترجيح بلا مرجع لازمه شوه. يو شبه دا شوه. بلکه ترجيح د مرجوح لازميږي، دويمه شبه دا شوه، څکه چې حذفه عدمي دی او باقي احوال وجودي دي، او وجودي اشرف وي په نسبت سره عدمي ته، نو لازم شو ترجيح د مرجوح نو شارح جواب وکړو **لکونه** د وجې د کيدو د دې حذف نه **عبارة عن عدم الاتيان به اى بالمسنداليه** او ذکر عبارة دی د اتيان نه په مسنداليه باندې. او قانون دا دى چې **وعدم الحادث** عدم سابق د حادث، سابق على وجوده څکه چې حادث باندې دوه قسمه عدم راځي (دې سره فائده د قيد د عدم سابق بيانوي) يو عدم سابق دويم عدم لاحق. نو عدم لاحق خو وروستو دى د وجود نه او عدم سابق په حادث کې سابق وي په وجود باندې، نو د دې وجې نه يې حذف مقدم کړو په ذکر باندې. اوس شبه

راغله چې يا هلکه دا جواب خو مطابق د سوال سره نه شو، ځکه چې سوال خو يې په دې باندې کړی وو چې دا حذف يې په نورو ټولو باقيو احوالو باندې مقدم ولې کړو او جواب خو وشو صرف د تقدير حذف په ذکر باندې، نو اعتراض عام وو او جواب خاص شو، او جواب خاصه خو د سوال عامه نه شي صحيح کيدای؟ نو تاسو وايئ چې ګوره چې دا جواب مطابق دی د سوال سره جواب هم عام دی؟ ځکه چې کله حذف اصل شو د ذکر لپاره او ذکر اصل وو د باقي احوالو لپاره نو حذف اصل شو د باقي احوالُ نه هم ځکه چې اصل الاصل اصل وي، اصل د اصل د شئ اصل وي، نو جواب مطابق شو د سوال سره. دويمه شبه دا راځي چې دلته کې شارح وويل چې حذف عبارة دی د عدم اتيان نه په مسنداليه کې او په مطول کې ده ويلي دي چې حذف عبارة دی د اسقاط عن اللفظ نه، اما ترکه لاندې يې ويلي دي چې په مسند کې يې اما ترکه وويل او په مسنداليه کې يې اما حذفه وويل، نو ويل ځکه چې حذف عبارة دی د اسقاط عن اللفظ نه او په نيت کې به مراد وي، نو مسند اليه به د لفظ نه غورځيږي او په نيت کې به مراد وي ځکه رکن اعظم دی. او مسند کې يې ترکه وويل، ځکه ترکه د لفظ او د نيت دواړو نه غورځولو ته وائي، نو مسند د نيت او د لفظ دواړو نه سړی غورځولی شي، نو دا خو تدافع راغله دې نه معلوم شوه چې حذف عبارة دی د عدم اتيان نه په مسند اليه باندې او هغه نه معلومه شوه چې حذف عبارة دی د اسقاط عن اللفظ نه او په نيت کې به مراد وي. نو تاسو جواب وکړئ، چې حذف په دوه قسمه دی: يو حذف اصطلاحي او دويم حذف لغوي. نو دلته کې چې دا معنی شارح کړې ده نو دا معنی لغوي ده. معنی لغوي د حذف عدم الاتيان بالمسند اليه ته وائي. او هلته کې چې يې معنی د حذف کړې ده چې حذف عبارة دی د اسقاط عن اللفظ نه او په نيت کې به مراد وي، نو د هغې نه معنی اصطلاحي مراد ده. نو تدافع په دې کې رانغله **وذكره** سره شارح بل اعتراض کوي او بيا جواب کوي، اعتراض دا وارد شو چې ټول عبارة دلته کې څلور قسمه متصور وو: ۱. چې دلته کې يې هم حذف ويلی وی او په مسند کې يې هم واما حذفه ويلی وی، ځکه موافقت اولی دی د مخالفت نه ۲: دويم دا وو چې دلته کې يې هم واما ترکه ويلی وی او هلته په مسند کې يې هم واما ترکه ويلی وی، نو بيا هم موافقت راتلو او موافقت اولی دی د مخالفت نه، ۳: دريم دا دی چې دلته کې يې ترکه ويلی وی او هلته کې يې وحذفه ويلی وی. ۴: او څلورم دا دی چې کوم ماتن ويلی دي چې په مسند اليه کې يې حذفه ويلی دی او په مسند کې يې هلته وترکه ويلی دی. نو دا عبارة رابع ماتن ولې مختار کړو؟ حالانکه ټول صورتونه په دې کې څلور جوړيدو. نو دغه شبه کوي ويل **وذكره ههنا بلفظ الحذف وفي المسند بلفظ الترك** او هغه درې نور عبارتونه يې نه دي ذکر کړي، دا ځکه **تنبيهاً** دا جواب دی، چې لپاره د خبرداری ورکولو د ماتن **على ان المسند اليه هو الركن الاعظم** داسې رکن اعظم دی چې **شديد الحاجة اليه** دا محوَر د کلام دی، خامخا به وي، **حتى انه** فائده دا شوه **انه لم يذكر المسند اليه فكانه اتى به** نيت کې په دې

سره راتله وشو **ثم حذفه**، **بخلاف المسند** هلته کې بې ترک وویل، ترک دیته وائي اسقاط د لفظ او د نیت دواړو نه، **فانه (ای المسند) لیس بهذه المثابة** ویل ځکه چې مسند په دې مرتبه کې نه دی، **فکانه ای المسند تـرک عن اصله** د لفظ نه هم او د نیت نه هم دواړو نه غورځولې شوی دی. او د دغه کلام د شارح نه معلوم شو چې حذف عبارة دی د اسقاط عن اللفظ نه فقط او مخکې ده وویل چې حذف عبارة دی د عدم الاتیان به نه، نو تدافع راغله. نو ما تاسو ته تدافع دفعه کړې ده، چې هغه په معنی لغوي سره دی او دا په معنی اصطلاحي سره دی. اوس حذف د مسند الیه لپاره نکات څه دي؟ ویل: **فللاحتراز عن العبث** شبه: یا هلکه اوس تا وویل چې مسند الیه رکن اعظم دي او رکن اعظم ذکر کولو سره خو عبث نه لازمیږي، ویل **بناء علی الظاهر** ظاهراً عبث ځکه لازمیږي، دلیل یې دا دی **لدلالة القرینة علیه**، د الظاهر قید فائده وائي چې دا بناء علی الظاهر یې بیا ولې وویل؟ د دې قید فائده څه ده؟ ویل فائده یې دا ده چې **وإن کان في الحقیقة رکن من الکلام** په حقیقت او نفس الامر کې عبث نشته نه دی ځکه دا رکن من الکلام دی. او په ذکر د رکن من الکلام سره عبث نه لازمیږي. او **تخییل العدول** یا حذف د مسند الیه کولی شي لپاره د غورځولو د متکلم په خیال د سامع کې (عدول) **الی اقوی الدلیلین**، دلیلین څه دي **من العقل والفظ** او اقوی په کې عقل دی. دلیل وائي تخییل لپاره چې دلته کې تخییل ځکه راغلی چې **دی فان الاعتماد عند الذکر دلالة اللفظ** معترض شبه وکړه چې یا هلکه لفظ دلالت په مسند الیه باندې نه شي کولی تر څو پورې چې عقل نه وي **لو اعتماد عند الذکر علی دلالة اللفظ** لفظ فقط نه دی. جواب یې وکړو **من حیث الظاهر** ظاهر دا ده چې مسند الیه د لفظ نه معلومیږي. **وعند الحذف** اعتماد **علی دلالة العقل** باندې کیږي، او دا هم من حیث الظاهر، ځکه وروستو یې فائده راخي، **وهو ای العقل اقوی لافتقار اللفظ الیه** ځکه دلالت لفظي مفتقر عقلي ته دی او دلالت عقلي مفتقر لفظ ته نه دی، **وانما قال** سره شارح دفع د اعتراض کوي چې یا هلکه مبنی د متونو بنا بر اختصار ده، نو دا تخییل تکی یې ولې زیات کړو؟ خو داسې به یې ویلی وې چې **او العدول الی اقوی الدلیلین من العقل واللفظ**. نو دې جواب کوي چې **وانما قال تخییل** یې ځکه وویل **لان الدال حقیقة عند الحذف ایضا** لکه په وخت د ذکر کې دال **هو اللفظ المدلول علیه بالقرائن** نو په نفس الامر کې دال عقل بالکلیة نه شو، خو متکلم په خیال د سامعینو کې دا وغورځول مثال داسې شو کقوله شعر ع قال لي کیف انت قلت علیل، یا هلکه سبب د بیماری څه دی؟ ویل سهر دائم وحزن طویل. دا مثال مطابق د ممثل سره دی **لم یقل انا علیل فللاحتراز عن العبث والتخییل المذکورین** شارح چه والتخییل اویل نو اشاره یې وکړه چې دا اَوْ په او التخییل کې په قول د ماتن د مانعة الخلو لپاره دی، چې دا حذف به د دې دوو نکتو نه خالي نه وي، که جمع راشي باك نشته.

**او اختبار تنبه السامع عند القرینة** یا حذف د مسند الیه کولی شي لپاره د امتحان کولو د خبریدو د سامع په وخت د قرینې کې، هل: سره کیفیت د امتحان بیانوي چې امتحان څنګه کوي؟ چې **هل یتنبه ام لا؟**

المذکور ، او د ضیق المقام مثال لکه **کقوله ای کقولك الصیاد** لکه قول د ښکار کوونکی شو غزال دلته
کقول الصیاد کي اضافت مفعول ته وکړی، یعني کقول الرجل الصیاد ، لکه دوه ملګري دي یو ښکار
کوي او یو هسې ورسره ملګری دی، نو هغه ښکار کوونکی ښکار نه دی لیدلی او ملګري یې ولیدل
نو هغه ښکار کوونکي ته وائي چې غزال چې یا هلکه را موسکی. پوري ښکاره شوه، نو مسند الیه یې
حذف کړو چې اصل کي هذا غزال وو ، دا ځکه چې که هذا یې ذکر کړو نو هغه ښکار به تختیدلی وي
مقام تنګ دی نو غزاله غزال به وائي، نو هغه ګذار وکړي نو لاتدې به یې کړي. وکالاخفاء دا عطف دی
په مخکي کضیق المقام باندي، لکه پټول د مسند الیه شو **عن غیر السامع من الحاضرین شبه** اوس ګرزي
که دا من الحاضرین تاسو د غیر بیان کړو، چې غیر د سامع چې دا غیر د حاضرینو نه وي، نو چې
څوك حاضر شو نو هغه غیر سامع نه شي کیدای. نو دا من الحاضرین بیان د غیر لپاره نه شي کیدای
ځکه چې حاضر شو نو هغه غیر سامع نه وي بلکه سامع وي **ولا لیلوح علی کلامه اثر الغلط**. او که من
الحاضرین تـه د السامع لپاره بیان جوړوي نو معنی دا شوه چې دا سامع د حاضرینو نه وي نون
مسندالیه پټوي د غیر د سامع حاضر نه، نو هغه که ذکر یې کړی نو هم پټ دی او که حذف یې کړی نو
هم پټ دی، ځکه چې هغه نه سامع شو او نه حاضر شو، نو دواړو نه پټ شو، نو من الحاضرین د دواړو
لپاره بیان نه صحیح کیږي، نو عبارت صحیح نه شو، نو تاسو به جواب وکړئ چې دلته کي دا سامع به
معنی د مخاطب سره دی، نو تقدیر دا شو ، کالاخفاء عن غیر المخاطب هغه غیر د مخاطب نه من
الحاضرین نه وي، اوس مثلاً زه خطاب دې مخامخ دریو کسانو سره کوم دا نور د دوی نه اخوا دیخوا
غیر مخاطب دی او حاضر په دې مجلس کي دی، چې مخاطب نه وي او حاضر وي او دا کیدای شي
نواوس عبارت صحیح شو. لکه اوس زه دلته کي وایم چې **مثل جاء**، ما د ده ته وویل چې دا مخامخ دی ما
ته چې جاء ، نو ده ته خو معلوم دي چې جاءني زید دی، مسندالیه ما حذف کړو، خو زه یې دې دري
نورو نه پټوم، په دې نورو کي مثلاً د زید دشمن دی، نو که زه ووایم چې جاء زید ، نو هغوی به لا
نیسي او زید به وژني، نو ما وویل جاء ، او ده ته مې وویل، نو دی پوهه شو چې زید راغلی دی، ده نه
هم پټه وه چې جاءني زید دی او د نورو نه پناه شو ، نو ځکه حذف د دې وجې نه وي بل مثال وائي
**وکاتباع الاستعمال** او دا حذف د مسند الیه کولی شي د وجې د اتباع کولو د متکلم نه د استعمال،
داسې استعمال چې وارد وي **علی ترکه ای المسند الیه** یعني ښکته په محکي عنه کي په منقول عنه کي
مسندالیه حذف شوی وي نو متکلم هم په خپل کلام کي هغه شان حذف کړي، یعني په منقول کي او
په حکایت کي لپاره د اتباع د استعمال د هغه منقول عنه سره لکه مثال داسې شو چې **رمیة من غیر رام**
اوس د دې په اصل کي په شان نزول کي (شان قیصه یا پس منظر د دې )منقول عنه د دې دا دی. یو
ښکاري سړی وو ، حکم بن عبد یغوث نوم یې وو ، هغه نذر ومنلو چې زه به په غب غب غر باندې یو

مسند اليه اصل دی خو مطلقاً اصل نه دی اصل باطل وي نوشارح جواب وکړو چي يا هلکه ذکر د مسند اليه اصل دی خو مطلقاً اصل نه دي هلته اصل دی چي مقتضی د عدول نه وي. او که مقتضی د عدول وي لکه نکات د حذف شو. نو بيا ذکر د مسند اليه اصل نه دی **ولا مقتضی للعدول عنه ای الذکر** نولنده خبره دا شوه چي ذکر د مسند اليه اصل مقيداً شواو مطلقاً نه شو **او الاحتياط** يا ذکر د مسند اليه کولی شي د وجي د احتياط کولو متکلم نه **لضعف التعويل** تفسير د غير مشهور په مشهور سره کوي **ای الاعتماد** د وجي د ضعف د اعتماد د متکلم نه **علی القرينة** خکه متکلم وائي که زه مسند اليه حذف کړم نو دا قرينه ضعيفه ده په دي قرينې سره سامع هغه مسند اليه محذوفه نه شي معلومولی نو ذکر يې کړي **او التنبيه** يا لپاره د تنبيه ورکولو د متکلم حاضرينو ته **علی غباوة السامع** چي زما دا سامع دومره غبي دی چي دی بغير د ذکر نه نه پوهيږي **او زيادة الايضاح والتقرير** يا ذکر د مسند اليه کولی شي لپاره د زيادة وضاحت د مسند اليه او لپاره د ثابتولو د مسند اليه په نفس د سامع کي **وعليه** او په دي ذکر باندي لپاره د زيادت د ايضاح او تقرير باندي **قوله تعالی** دی چي ﴿أُولَٰئِكَ عَلَىٰ هُدًى مِّن رَّبِّهِمْ ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ﴾ نو دا دويم اولئك يې خکه ذکر کړو کني ديته څه حاجت وو؟ خو دا هم المفلحون به تا عطف کړی وو، په **علی هدی من ربهم** باندي مخکښی اولئك مبتداء وو. نو تاسو وايئ چي دا لپاره د زيادة ايضاح او تقرير لپاره چي دا په هدايت باندي چي دی په دنيا کي همدغه کسان دي لاس پرې کيږدی چي موصوف په دي صفات خمسه ؤ سره دی او فلاح او کاميابي چي په اخرت کي مومي همدغه کسان دي لاس په دي کيده چي موصوف پدي صفات خمسه ؤ سره دی او دا هله کيږي چي دويم اولئك راوړی شي خکه چي اعاده د اسم اشاره دا داسي ده لکه په شان د اعادي د مشار اليه، او مشار اليه خو موصوف په صفات خمسه ؤ سره وو، نو اعاده د اسم اشاره وشوه نو دا داسی ده لکه اعاده د مشار اليه اوشوه.

**او اظهار تعظيمه** يا ذکر کولی شي مسند اليه د وجي د اظهار د تعظيم د مسند اليه نه **لکون اسمه مما يدل علی التعظيم، لکون اسمه** سره يو غرض دا چي دليل يې وويل د متن لپاره. دويم غرض دا چي دفع د اعتراض يې وکړه چي يا هلکه زيد قائم کي ذکر د مسند اليه وشو او دا خو څه دلالت په تعظيم د زيد باندي نه کوي نو دي وائي چي هر مسند اليه نه دی کنه. چي هغه به بس دلالت په تعظيم کوي بلکه لکون اسمه مما يدل .. الخ کوم مسند اليه چي اسم د هغه دلالت په تعظيم باندي کوي. هغه مسند اليه مراد دی، هر مسند اليه مراد نه دی. لکه **نحو امير المؤمنين حاضر** نو د امير المؤمنين په لفظ کي تعظيم دی، خلک تري ريږي. **او اهانته** يا لپاره د اهانت د مسند اليه **نحو السارق اللئيم حاضر**. يا بخيل حاضر دی **او التبرك** يا لپاره د تبرك او خير حاصلولو بذکره په ذکر د مسند اليه سره **مثل النبي صلی الله عليه وسلم قائل هذا القول** **او استلذاذه** يا ذکر د مسند اليه کولی شي د وجي د موندلو د متکلم نه مسند اليه لره لذيذ

راغله نو بس خبره يې ختمه کړه، خلاصه يې راووسته چې ولي فيها مارب اخرى. بعضي نکات د ذکر ماتن نه پاتې شوي وو، نو شارح يې ذکر کوي او وائي **وقد يكون الذكر** اى ذكر المسند اليه **للتهويل** لپاره د يرولو د مخاطب، چې ورته وائي چې **امير المؤمنين يامر بكذا** نو د امير المؤمنين د امر نه بيا څوک خلاف کولی شي؟ نه **او التعجب** او کله ذکر کولی شي مسند اليه لپاره د تعجب لکه **الصبي يقاوم الاسد** ماشوم د ازمري سره مقابله وکړه، تعجب شو. **او الاشهاد** يا ذکر د مسند اليه کولی شي لپاره د ګواه نيول **في قضية** په يو حادثه کې، چې په يو حادثه کې ته ګواه نيسي نو هلته کې ته ذکر د مسند اليه کوي د دې لپاره چې صبا هغه مدعى عليه انکار ونه کړي، لکه شاهد کاتب ته ووائي زيد خپل مرئي يا وينځ خرڅه کړي په عمرو باندې او زيد دوه ګواهان قائم کړي وو چې تاسو ګواهان شئ چې ما دا خپل مرئي په عمرو باندې په زر روپو باندې خرڅ کړو، نو شاهد کاتب ته وائي چې **باع زيد غلامه بكذا على عمرو** چې سبا له مونږه ګواهي کوو نو زيد به انکار نشي کولی. **او التسجيل** يا ذکر د مسند اليه کولی شي لپاره د احکام په سامع باندې چې په سامع باندې خبره محکم کوي چې بيا انکار نه شي کولی، لکه ته ووائي چې **حكم القاضي بما اقول** نو د قاضي د حکم نه ته انکار نشي کولی **حتى لا يكون له سبيل الى الانكار.**

**تعريف المسند اليه :**

**واما تعريفه** شارح ورسره لګوي **اى ايراد المسند اليه معرفة** نو يو غرض د شارح اشاره کوي چې دا تعريف مصدر متعدي دى، معنى دا چې راوړل د متکلم مسند اليه لره معرفه. نو اضافت د مصدر مفعول ته وشو، او کوم مصدر چې مضاف وي مفعول ته نو هغه مصدر متعدي وي لازمي نه وي. نو شارح اشاره وکړه چې دا مصدر متعدي دى لازمي ندى. دويم غرض د شارح دفع د اعتراض کوي. چې يا هلکه د تعريف د مسند اليه معنى به دا وي چې جعل د مسند اليه معرفة به وي، او جعل د مسند اليه معرفة دا خو کار د واضع دى؟ او مونږه دلته کې چې نکات بيانوو نو کار د واضع او د فعل د واضع نکات نه بيانوو، بلکه فعل د متکلم لپاره بيانوو او جعل د مسند اليه معرفة دا خو فعل د واضع دى، نو شارح جواب وکړو چې د تعريف معنى جعل د مسند اليه معرفة نه دى، تعريف معنى د ايراد مسند اليه معرفه دى. او ايراد د مسند اليه معرفه دا فعل د متکلم دى، او د دې لپاره بيانول د نکاتو صحيح دى. **وانما قدم** سره شارح اعتراض کوي او د اعتراض نه وروستو بيا جواب کوي، ويل **انما قدم اى الماتن ههنا** په مسند اليه کې **التعريف وفي المسند التنكير** او تعريف يې وروستو کړى دى، او مجموعه صورتونه څلور وو، يو دا چې دواړو کې يې تعريف مقدم کړى وى، دويم دا چې دواړو کې يې تنکير مقدم کړى وى، ځکه موافقت اولى دى د مخالفت نه (دا د دې دواړو صورتونو لپاره علت شو فافهم) او دريم دا چې دلته کې يې تنکير مقدم کړى وى او هلته کې يې تعريف مقدم کړى وى ځکه چې که ته خامخا مخالفت کوي نو د مخالفت دا هم يو صورة وو. او څلورم دا چې تا کوم ويلى دى چې دلته تعريف مقدم

تحقيقاً حقيقةً نه دي، بلکه رتبةً دي **واما معنىً** يا بـه مرجـع معنوي وي. معنوي ديته وائي چې مرجع ملفوظ نه وي ما يتلفظ نه وي مالايتلفظ به وي تلفظ پرې نه وي شـوى. اوس دا دوه قسـمه دي چې دا به فهميږي د لفظ داله نه او يا به فهميږي د قرينه حاليه نه. نو اول ته شارح اشاره وکړه **بدلالة لفظ عليه** مرجع په خپله ملفوظ ومايتلفظ بـه نـه وي خو بـل يـو لفظ نـه دا فهميږي، لکه ﴿اعْدِلُوا هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَىٰ﴾ شو، نو هو ضمير عدل ته راجع دی، خو عدل په خپله ما يتلفظ به نه دی، خو د اعدلوا لفظ نه عدل معلوميږي **او قرينة حال** يا به قرينه حاليه سره، يعني په سياق الكلام سره. حال او بحث د كلام دلالت كوي، لکه ﴿وَلِأَبَوَيْهِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ﴾ نو لابويـه كې ضميرميت تـه راجع دى او ميت مخكې چيرته ملفوظ نه دى، او نه داسې يو لفظ شته دى چې هغه په ميت باندې دلالت كوي. خو سياق الكلام نه معلوميږي او قرينه حاليه نه. خکه حال حال د ميراث دى. او ميراث د ميت نه پاتې کيږي د بل چا نه نه پاتې کيږي **واما حكماً** يا بـه مرجـع حكماً وي حكماً مرجـع ديـتـه وائي چې هغه نه ملفوظ وي او نه د لفظ نه فهميږي او نه د دلالت د قرينه حاليه نه، بلکه هسې متكلم فرض کړى وي، متعقل في الذهن متكلم فرض کړى وي. لکه نعم رجلاً شو ربه رجلاً شو، هسې متعقل في الذهن او مفروض ته ضمير راجع شو.

**واصل الخطاب ان يكون لمعين** اوس دا تمهيد ايرد دي وروستو **وقد يترك** لپاره، ورنه دا خبره خو هغه چا نه چې څوك زنجاني، زرادي او صرف بهائي وائي نو هغه ته هم معلومه وي چې اصل خطاب معين ته وي بديهي ده نو وائي واصل الخطاب ان يكون لمعين شبه يا هلكه متبادر د معين نه دا ده چې فرد واحد لپاره به وي، ځکه شي چې ذکر شي مطلقاً نو صرف کيږي فرد کامل ته، نو بيا خو خطاب د جمع خارج شو، او د تثنيي خارج شو، نو ده جواب وکړو **واحداً كان او كثيراً** كثير عام دى چې تثنيه وي او كه جمع وي خو تعيين به وي نواوس ګوره په واحد کې به يو فرد متعين وى او په تثنيه کې به دوه متعين وي او په جمع کې به درې يا د دريو نه د بره به تعين كوي، چې څلور يا پينځه يا شپږ. اوس د متن لپاره دليل وائي، خو د متن لپاره دليل په دوه قسمه دى، يو دليل عامي دى چې هغه په عام معارفو کې جاري کيږي، دويم دليل خاصي چې خاص په خطاب کې جاري کيږي. نو دليل عامي شارح دا وائي **لان اصل وضع المعارف**،اصل يعني راجح او اولى، وضـع د معـارفو پـه دې بـانـدې ده **على ان تستعمل لمعين** چې دا مستعمل شي د معين لپاره، او دا خطاب يو فرد د افرادو د معارفو نه دى. نو په دې کې هم اصل دا چې لمعين وي، ان تستعمل لمعين شو، دا دليل عامي شو دويم دليل خاصي شارح وائي چې هغه صرف په خطاب کې جاري کيږي، نورو معارفو کې نه وي، چې **لن الخطاب هو توجيه الكلام الى حاضر** او حاضر معين وي. **وقد يترك الخطاب** شارح تعين د مرجع كوي په الخطاب سره **مع معين الى غيره** اى معين .د دې نکتې

پوري يو مخاطب، نو هغه خود خاص نه دی، خکه د دوی حال صفت د دوی دی، هغې پورې مخاطبېنو شي خاص کيدای، ذات د مخاطب خو خود د دوی د حال پورې خاص نه دی، خکه حال د دوی خو صفت قائمه د دوی شو، او مخاطب خو هغه ذات ته وائي، نو په دې نفي کې هيڅ فائده رانغله، نو شارح د دې نسخې تصحيح کوي په دوه طريقو سره چې بها ضمير راجع دی حال ته خو په مرجع کې به حذف د مضاف کوو، نو مرجع په حذف د مضاف سره ده نو معنی خاص نه دی برؤية حالهم اوس خبره تهيلو شوه، چې حال خو وصف مختصه د دې مجرمانو وو، خو رؤيت د حال د دوی دا صفت د مخاطب وو. نو ويل فلا يختص بها ای برؤية حالهم مخاطب، نو اوس نفي کې فائده راغله، يا حذف د مضاف وکړو وروستو د مخاطب نه او ضمير حالهم ته راجع که، نو معنی خاص نه دی د دوی د حال پورې رؤية مخاطب او بحالهم رؤية مخاطب، نفي صحيح شوه، خکه دا توهم راتلو چې دا د دوی ددې حال پورې، چې د خوارۍ او د ذلت حال دی، دې پورې رؤيت د يو مخاطب به خاص وي؟ نو الله وويل چې نه، هر څوك به يې وني على حذف المضاف دوارو سره لګوی، حذف د مضاف د اول نه يا د ثاني نه.

ماتن وويل وبالعلمية شارح ورسره لګوي تعريف ای تعريف المسند اليه دي کې شارح اشاره وکړه قاعدې د عطف ته، چې دا وبالعلمية عطف شو په فبالاضمار باندې، هغې نه مخکې اما تعريفه وو، نو دلته کې هم شارح اما تعريفه مقدر راوويستلو، خکه ماقبل د معطوف عليه نه کالمعاد وي په معطوف کې، دا چې وويل شارح چې بايراده علماً د دې نه غرض د شارح يو اشاره ده، چې دا علميت مصدر متعدي دی لازمي نه دی، دويمه اشاره ده دفع د اعتراض ته، چې يا هلکه علمية په معنی د جعل د مسنداليه علماً به وي، نو جعل د مسنداليه علماً خو فعل د واضع دی، او ماتن خو نکات بيانوي د فعل د متکلم لپاره، د فعل د واضع نکات خو نه بيانوي، نو شارح جواب وکړو چې علميته معنی ايراد د مسنداليه علماً دی، او ايراد د مسنداليه علماً، دا فعل د متکلم دی، وهوسره غرض د شارح تعريف د عَلَم کوي، وائي وهو او دغه عَلَم ما هغه لفظ دی وضع چې وضع شوي دی لشیٔ معين نو دا جنس شو شامل شو ټولو تعريفونو ته وائي چې اوبل چې مع جميع مشخصاته نو په دې سره نور ټول معارف خارج شو، علاوه د علم نه، اوس شبه راغله چې تعريف د علم جامع نه شو خپلو افرادو ته خارج شو ترينه علم جنس، خکه هغه علم دی، او هغې کې خو مشخصات نشته دی، هغه خو کلي دی، خنو جواب کړی دی چې مشخصات عام دی خارجيه دی او که ذهنيه دی، نو علم جنس کې اګر چې مشخصات خارجيه خو نشته دی، خارج کې خو هغه متکثر دی، خو مشخصات ذهنيه يې شته دی، خو دغه جواب خطاء دی، خکه چې بناء په دې باندې د أسامة اطلاق په خارج کې په يو فرد باندې ممنوع شو، حالانکه اطلاق د أسامة په خارج کې په يو فرد باندې هم کيږي، نو بنه جواب دا شو چې عَلَم جنس دې خارج شي، هغه علم نه دی، خکه د هغې علميت د ضرورت د وجې نه دی، د اجراء د

ادغام د وجي نه الله شو، نو عوضت په خپله معنی حقيقي سره نه دی، بلکه په معنی د قصدت و أريدت
سره دی، يعني خای د همزې ته حرف تعريف راوړی شو، يا داجواب وکړی چې دا عوضت چې شارح
ويلی دی دا يې په اعتبار د محکي عنه سره ويلی دی، او الف لام چې دی نو په حکايت کې دی، شارح
چې دلته کې مونږ او تاسو ته حکايت کوي نو داسې يې ويلي دي چې فالله اصله الاله او په محکي عنه
کې دی اله وو، نو عوضت په اعتبار د محکي عنه سره شو، او په محکي عنه کې الف لام نه وو، بهرن
راوړی شو، عوض کې راوړی شو، اوس په دې جواب باندې دا خبره پاتې کيږي چې بيا دا څه وجه ده چې
په محکي عنه کې الف لام نه وو او شارح په حکايت کې الف لام داخل کړل، نو تاسو وايئ چې په دې کې
شارح اشاره وکړه چې اله نه مراد اله حقه مراد دی، نو په دې سره اله باطله خارج کولو لپاره يې الف لام
حکايت کې راوړل، او که اوس په حکايت کې يې اله ويلی وی، نو بيا اله خو اله حقه او باطله دواړو ته
ورتله اوس هغه مذهب د محققينو ذکر کوئ **ثم جعل** ای **لفظ الله علماً للذات** شبه، يا هلکه عَلَم لپاره د ذات
خو لفظ د زيد هم دی او عمرو هم دی نو جواب يې وکړو الواجب الوجود داسې ذات لپاره چې واجب
الوجود دی، واجب الوجود دامعنی چې ضروري الوجود دی، ضروري الوجود دامعنی چې په وجود کې
غير ته محتاج نه دی **الخالق للعالم** داسې ذات چې خالق دی د عالم لپاره، نو دا لفظ د الله جزئي شو، خو
جزئي منطقي نه دی، څکه جزئي منطقي قسم د مفهوم دی، او لفظ د الله باندې اطلاق د مفهوم نه شي
کيدای، څکه مفهوم ما حصل في العقل ته وائي، او ذات د الله ذهن ته نه شي راتلی، د جزئي نه جزئي
حکمي مراد دی چې واحد في العدد. دويم مسلك ذكر كوي **وزعم بعضهم** ای العلماء **انه** ای **لفظ الله اسم**
**لمفهوم الواجب لذاته او المستحق للعبودية له** نو واجب لذاته کلي دی، او مستحق للعبودية لـه هم کلي دی، خو
صرف دا ده چې **وكل منهما كلي انحصر في فرد** دغه واجب لذاته منحصر په يو فرد کې دی سره د امتناع د
فرد اخر نه، مستحق للعبودية منحصر په يو فرد کې دی سره د امتناع د فرد اخر نه، نو اوس دوه دعوی
شوي، کلي دی څکه چې مشتمل په هاذيت مانعه عن تکثر باندې نه دی، يا کلي د دې وجې نه دی چې
واجب لذاته باندې، مستحق للعبودية باندې براهين قائم شوی دی، په علم الکلام کې أو براهين د کلي
لپاره قائميږي نه د جزئي لپاره، نو د کلي کيدو لپاره يې دوه دليلونه شو، او منحصر في فرد څکه شو د
وجې د برهان التوحيد نه، نو د زعم په مذهب باندې دا تفريع شوه چې فلا يكون علماً لان مفهوم العلم
جزئي يعني د وضع په اعتبار سره علم نه شو، وروستو بيا نقل سره عرف کې علم شو، اوس شارح وفيه
نظر سره هغه دريم غرض بيانوي چې احقاق د ماهو الحق او ابطال د ما هو الباطل دی، ويل په دې زعم د
بعضو کې نظر دی، اوس نظر او اعتراض او دليل د وروستو نه شروع دی په دې قول سره چې ولو كان
الله، اسما لمفهوم كلي او دا مخکې عبارت تمهيد دی، نو اول دعوی کيږدی چې مونږ نه منو چې دا
لفظ د الله اسم دی د مفهوم کلي لپاره، دا د عوی شوه، ولې؟ څکه ولو كان...الخ، نو نقيض د مدعی

شته. خکه نساني جمع ده او الازينب وهند و كلثوم هغه مفرد دی جزئيات دي، نو دغه تغير عنوان
كافي دی اگر كه معنون يو دی. نسا، هم دغه دري دي او زينب وهند و كلثوم هم دري دي او
راغله به دي دليل د ملازمي باندي چي الكلي يحتمل الكثرة. نه منم چي كلي يحتمل الكثرة. كليات
فرضيه ؤ نه نه گوري. هغه كليات دي او كثرت په كي نشته دی، بو فرد يي نشته دی، فضل لاد كثرة
معقولات ثانيوبه لپاره يو فرد نشته دی، فضل لاد كثرة نه. نو ده جواب وكړو من حيث هو كلي چي
هلكه كلي په دي حيثيت سره چي دا كلي وي، قطع نظر د وجود خارجي نه. خو مطلب دا چي مشتمل
هاذيت مانعه عن التكثر باندي نه وي. نو هغه يحتمل الكثرة وي، اگر كه بالفعل په خارج كي كثرة
لري، نو په كليات فرضيه ؤ كي كثرة بالفعل خو نشته خو كثرة بالقوة خو شته دی كنه. خكه دا
هاذيت مانعه عن التكثر په هغوی كي نشته دی نو كليات شو. اوس صرف دومره خبره پاتي شوه چي
الاالله مرفوع ولي شو؟ حالانكه دا كلام غير موجب دی، او كلام غير موجب كي بدل غوره دی، نو الا
بالنصب ويل په كار وو، او مونږ كلمه كي دا مرفوع وايو. نو تاسو وايی چي دا چي مرفوع شو نو بنا په
دي چي دا بدل واقع شوی دی، د محل د اله نه په لااله كي بيا شبه راغله چي محل د اله خو منصوب وو
نصب وو. خكه لاد نفي د جنس اسم خپل ته نصب وركوي، نو بيا هم الاالله ويل په كار وو. نو تاسو وايی
دا الاالله بدل دی د محل بعيد د اسم د لانه او محل بعيد رفع وه بناء بر ابتدائيه نو د هغي نه بدل دی شبه
يا هلكه د محل قريب نه يي بدل ولی نه واقع كوي، چي دا ته د محل بعيد نه بدل وائي. يا هلكه محل
قريب د لاد وجي نه وو، نو د هغي نه كه بدل ووايم نو بدل په حكم د تكرير د عامل كي وي، نو بيا به لا بيا
مكرر كيږي، نو بيا نفي د الله هم وشوه، نو دا نه صحيح كيږي، نو خكه دا ما بدل د محل بعيد نه وويل
. چي هغي كي عامل عامل معنوي وو، لا نه وو. او لفظ د اله په لفظ كي خو مبني وو بنا بر فتحه. خكه
نكره غير مضاف غير مفصول مبني بنا بر فتحه وي، خكه متضمن من استغراقي لره وي سوال كي. نو د
هغي نه الاالله بدل نه شي كيدای. خكه چي دي متضمن حرف لره نه دي

**او تعظيم او اهانة** يا ايراد د مسند اليه كولی شي علم لپاره د تعظيم يا اهانة د مسند اليه **كما في الالقاب الصالحة لذلك** لكه په هغه القابو كي، اعلامو كي چي هغه صالح د دي تعظيم او اهانت وي، لكه **مثل ركب علي وهرب معاوية** سور شوی وو علي، نو دلته كي يي مسند اليه علم ذكر كړو. خكه علي د علو نه دی، **علو** اوچتوالي ته وائي، نو دي كي تعظيم راغلی. او تښتيدلی وو معاوية. معاوية د عوي نه دی عَوي صوت الكلب ته وائي. نو په دي كي اهانت راغلی. خو خان پرې پوهه كوئ چي د علي او معاوية نه گوري هغه دوه صحابه د رسول الله ﷺ مراد نه دي، حاشاً لهما. علي ومعاوية مطلق د يو سړي نوم شي علي او د بل سړي نوم شي معاوية او ته ووائي ركب علي وهرب معاوية او صحابه د رسول الله ﷺ نه دي مراد چي نعوذ بالله د معاوية اهانت ته اشاره وشي، دا تلفظ چي بيا كوي

نو هغه بيا رافضي دی، نبراس ذکر کوي چې يو سړی راغی د عبد الله بن مبارك نه يې تپوس وکړو چې عمر بن عبد العزيز او معاوية کې څه نسبت دی؟ يعني دوی کې کوم يو ښه دی؟ عمر بن عبد العزيز ښيعې خليفة المسلمين وو، نو هغه پوهه شو چې ته ما نه د نسبت تپوس کوي. چې دا سړی رافضي دی چې کوم يو غوره دی؟ هغه ووېل هو، نو عبد الله بن مبارك ووېل چې حضرت معاوية چې په کومه اسپه سور شوی دی، او د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره جهاد ته تللی دی، د هغه اسپې د کرشنو دوړه او د عمر بن عبد العزيز جسم برابر نه دی، د هغې اسپې د کرشنو دوړه د عمر بن عبد العزيز د جسم نه غوره ده، ته ما نه د نسبت څه تپوس کوي؟ هغه سړی بې عزته شو، په سر يې څادر واچولو او لاړو. هغه رافضي وو، رافضي وائي دشمن د صحابو ته موږ نه حکم د الله او د پيغمبر نه دا دی چې د دې نه کف اللسان وکړئ اذکروهم بخير يعني رضي الله عنهم. اوس موږ په کې ګوتې وهو يا قلم پورته کوو. نو هغه رافضي شو، هغه ته رافضي وائي، ځکه الله وائي رضي الله عنهم ورضوا عنه معصوم نه دي ګناه کوي خو الله ورته معاف کوي. نو رافضي وائي زه يې معاف کولو ته نه پرېږدم. نو موږ وايو چې ته په الله باندې زورور کيدای نه شي، صحابه ګناه کوي او الله ورته معافي کوي صحابه کلهم عدول دي. خو عدول په دې معنی نه دي چې معصوم ابتداءً دي، الله ورته ګناه معاف کړي نو التائب من الذنب کمن لا ذنب له، کلهم عدول په دې معنی سره دي. خو د رافضي د صحابه ؤ سره بغض دی. نبراس تعريف کوي، رافضي دشمن د صحابو ته وائي، هغه هر څوك چې وي يواځې شيعه او معتزله ؤ پورې رافضي کيدل خاص نه دی، بلکه هر څوك چې وي، که نن يو سړی د صحابه ؤ دشمن وي هغه رافضي دی، هغه ته به اواز د رافضي کوئ، د اُمت محمدي او د مسلم به ورته نه کوئ، نو علي او معاوية هسې د دوو کسانو نمونه دي، دامقصد دی.

او کناية سره ماتن بله نکته وائي لپاره د ايراد د مسند اليه علَماً، نو وائي يا ايراد د مسند اليه کولی شي علَم لپاره د کنايه کولو. ځکه مقصود د متکلم کنايه وي، او دغه کنايه په علَم سره راځي او په بل څه شي سره نه راځي، نو مسند اليه علَم ذکر کړی شبه، يا هلکه کنايه خو محکي عنه غواړي نو کنايه به څه نه به وي؟ نو شارح ووېل عن معنی يو معنی اصلي نه، ځکه چې اعلام منقولات دي، نو کنايه به د هغه معنی اصلي نه چې منقول عنه دی د هغې نه به کنايه وي. معترض راغلی شبه يې وکړه چې يا هلکه جاني زيد کې يا زيد جاني کې مسند اليه علَم دی. او کنايه خو د څه شي نه نه دي، د جهنمي نه يا د بل څه نه خو کنايه پکې نشته، سره د دې نه چې مسند اليه علَم دی؟ نو شارح جواب وکړو يصلح لله يا هلکه هر علَم کې کنايه نه وي، هغه علَم کې به وي چې هغه صالح لپاره د کنائي وي، او زيد جاني يا جاني زيد کې دغه علَم صالح د کنائي نه دی. اوس شارح ته چا ووېل چې يا هلکه ته مثال ورنايه چې ايراد د مسند اليه علم شوی وي، او هغه صالح لپاره د کنائي وي، او کنايه هم شوي وي، نو

**نحو ابو لهب فعل كذا** نو ابولهب عَلَم شو د هغه کافر مشخص شارح وويل داسې به وي، مثال بنائي چې **نحو ابو لهب فعل كذا** نو ابولهب عَلَم شو د هغه کافر مشخص لپاره چې د رسول الله ﷺ تره وو، او د يو معين کافر علم وو، کنيه وه د هغه، اوس دا **كناية** **عن كونه جهنميا**، اوس دامسنداليه يې عَلَم راوړو د دغه کنائي کولو لپاره د جهنمي نه، کنايه داسې وشوه لکه وروستو شارح دليل وائي، چې ابو لهب فعل كذا کنايه د جهنمي نه ځنګه وشوه. نو دليل **لان معناه** دا مخکې کوي او دا مخکې عبارة وروستو کوي، نو دليل پرې شارح دا وويل چې لان معنا خکه چې معنی د لفظ د **ابولهب ملازم النار وملابسها**، د ابولهب اصلي معنی داده ملازم د نار سره او ملابس د دې نار سره، لکه مثلاً ابو الخير هغه چاته وائي چې ملابس د خير سره وي، ورنه نو د خير خو پلار نه وي، ابو الفضل ديته وائي چې ملابس د فضل سره وي، ابو الشر ديته وائي چې ملابس وي د شر سره، ابو الحرب ديته وائي چې ملابس وي د حرب سره، نو د ابولهب معنی اصلي داده چې ملابس وي د نار سره، اوس کنائي معنی د دې دا شوه، چې **يلزمه انه جهنمي** دي ملابس النار سره لازم دا شو چې دې جهنمي دی، نو اوس ګوره ملابس النار ملازم شو او جهنمي کيدل ورسره لازم شو، چې يو سړی ملابس د نار سره وي نو د هغه سره لازم جهنمي کيدل دي، دا شارح دليل وويل نو کنايه ثابت شوه، انتقال راغی د ملزوم نه لازم ته د ماتن په نزد باندې، او د سکاکي په نزد باندې انتقال د لازم نه ملازوم ته راغی، ځکه هغه وائي چې دا جهنمي ملزوم دی او ملابس النار ورسره لازم دی. اوس په دې باندې يوه شبه راغله چې يا هلکه نه منم چې جهنمي لازم دی د ملازم النار او د ملابس النار سره، ځکه ملابس النار او ملازم النار خو عام دی، چې نار دنيوي وي که اُخروي وي، او جهنمي خو خاص دی په جهنمي پورې، نو دا خو لازم نه دی، نو تاسو به جواب وکړئ چې نار نه مراد نار د جهنم دی، بناء په دې قاعدې باندې چې شي ذکر شي مطلق نو صرف کيږي فرد کامل ته، او فرد کامل د نار نار د جهنم دی، نو چې مراد د نار نه نار د جهنم شو نو دغه کونه جهنمياً لازم شو، ملابس د نار د جهنم سره جهنمي لازم دی. نو بيا شبه راغله چې يا هلکه نه منم چې ملابس د نار د جهنم سره جهنمي لازم دی، ځکه خَزَنه د جهنم چې عليها تسعة عشر دي هغه ملازم و ملابس د نار د جهنم سره دي او جهنمي خو نه دی؟ نو ناکت جواب کړی دی چې لزوم نه مراد لزومي عرفي عادي مراد دی، لزوم عقلي نه دی مراد. او لزوم عرفي کې تخلف د لازم د ملزوم نه جائز دی، هاں که لزوم عقلي وي، هلته کې تخلف د لازم د ملزوم نه جائز نه وي، نو بيا به تا شبه کړې وه. نو دا پرې شارح تفريع وکړه **فيكون انتقالا** پس شو دغه لفظ **انتقال من الملزوم الى اللازم** ته. خو شارح وويل چې دلته هم باعتبار الوضع الاول او مخکې يې هم ويلي وو.

**بالنظر الى الوضع الاول** هغه وضع اول دا دی **اصلي الاضافي**. اوس دلته کې حاصل دا دی چې د کنائي لپاره دلته کې درې صورتونه دي. يو صورت دا دی چې ته کنايه په وضع اول سره وکړې نو د ابولهب وضع اول، وضع اضافي وو چې **ابو** مضاف او **لهب** مضاف اليه، نو په دې کې کنايه اتفاقاً جائز ده. وضع ثاني

خلخالي مذهب رانقل كوي، ويل وقيل في هذا المقام ان الكناية كنايه په ابولهب فعل كذا كي دا كې ده كما يقال نن تا وويل چي جاء اليوم اليوم ورسره ولګوي حاتم حاتم طائي نو د حاتم معنى اصلي هغه شخص معين چي مشهور وو په جواد سره هغه مراد دی، نو هغه خو نن ورخي نه شي راتللی. هغه شخص نه موجود نه دی، نو ويراد منه لازمه اى جواد يعني راغلی وو ما ته يو جواد، لاالشخص المسمی بحاتم. ويل دا هم كنايه ده، خلخالي وويل، دارنګه ويقال رايت اباالهب ابولهب نه هغه كافر مشخص نه دی مراد، زيد، عمرو يا ابوجهل بل يو كافر مراد دی، د هغه نه ته انتقال وكړي جهنمي ته، ويل دا هم كنايه شوه، شارح وائي وفيه نظر په دي ما قال د قيل كي نظر دی په اعتبار د وجوه ثلاثه ؤ سره، ديته كنايه نه وائي، ديته استعاره وائي، لانه، خكه چي دا مثال مذكور ح په وخت د اراده د نفس لازم كي يكون استعارةً لاكنايةً نو دا وجه اول د رد شوه، نو حاصل د وجه اول د رد دا شو چي لو صح ما قيل نو لم يوجد الفرق بين الاستعارة والكناية يعني لو صح القول المذكور نو لم.....الخ، لكن التالي باطل فالمقدم مثله، هر چي ده وجه د بطلان التالي نو دا د مسلماتو نه ده، خكه استعاره او كنايه كي فرق خو شته دی، عدم فرق باطل دی، هر چي دی دليل د ملازمي ويل لانه ح يكون استعارة لاكناية چي ته ورته كنايه هم وائي او دا استعاره هم ده، نو بيا فرق رانغی، اوس په تفصيل د ملزوم كي شارح حواله وركړه په علی ما سيجئ اوس دا استعاره ولي شوه؟ استعاره خكه شوه چي دلته كي استعمال د لفظ په غير موضوع له كي وشو، خكه حاتم وضع شوی وو د هغه شخص معين لپاره او تا مستعمل كړو په هغه جود كي، يعني هغه شبه كي چي هغه د هغه شخص سره مشابه وو په وجود كي، نو لفظ موضوعه د مشبه به او مراد ترينه مشبه ديته استعاره وائي، نو چي ته اوس ديته كنايه وائي نو بيا به فرق په استعاره او كنايه كي رانه شي، دويم رد پرې كوي چي ولو كان المراد ما ذكره القائل داكنايه شي، نو بيا لكان قولنا فعل كذا هذا الرجل مشيراً الى الكافر يا وقولنا ابوجهل فعل كذا، او مراد ترينه بل كافر واخلي، يعني ابوجهل فعل كذا اى حال كونك او مراد ترينه عتبه او شيبه بل كافر واخله، يعني ابوجهل دا كار كړی دی، يعني هغه سړي دا كار كړی دی چي هغه مشبه به د ابوجهل وو په كفر كي، نو داكنايه وواية د جهنمي نه، خكه جهنم د كافر سره لازم دی، دارنګه د ابوجهل سره لازم دی، تالي باطل دی، لكان داقول باطل دی، خكه لم يقل به احد په دي باندي چا قول نه دی كړی چي دا كنايه ده، او دليل د ملازمي ظاهر دی، خكه ته وائي چي ابولهب ذكر شي او كافر اخر ترينه مراد شي هغه شخص معين مراد نه شي، نو دا كنايه ده كنه، نو دغسي دلته كي كنايه شوه، چي بس هذا الرجل ذكر كوه، او مراد ترينه مطلق كافر اخله او د هغه سره جهنمي كيدل لازم دي، ابوجهل ذكر كوه او مراد ترينه عتبه او شيبه واخله. د هغه سره هم جهنمي كيدل لازم دی. دوه ردونه شو ،دريم ومما يدل او بعضي د هغه دلائلو نه چي دلالت كوي په فساد د دي قول د قيل باندي، انه اى الشان، مثل صاحب المفتاح وغيره

او دا تا ته پته نه وه چې هغه سړی وو که ښځه وه، دارنګې سړی عالم وو که جاهل وو؟ دا هم درته پته نه وه، نو دلته کې بغیر د الذي نه بل څه چاره نشته، نو متکلم به درته وائي چې الذي کان معنا امس رجل عالم هغه پرون چې موږ نه سره وو، هغه سړی وو، ښځه نه وه، عالم وو جاهل نه وو، ولم يتعرض سره شارح اعتراض کوي او جواب کوي، حاصل د اعتراض دا چې يا هلکه په دې مقام کې درې صورتونه وو، يو صورت تا ذکر کړو چې د مخاطب عالم علم په احوالو مختصو د مسند اليه باندې سوی د صلې نه نه وو، دویم صورت دا چې د متکلم علم په احوالو مختصو د مسند اليه باندې سوی د صلې نه نور څه باندې نه دي، دریم صورت دا چې د متکلم او د مخاطب دواړو علم په احوالو مختصه وُ د مسند اليه باندې سواء صلې نه نه وو، نو هغه دوه صورتونه تا ولې ذکر نه کړل؟ دا شبه کوي، نو وائي ولم يتعرض اى الماتن لما هغه قسم ته چې لايکون للمتکلم علم او لکليهما دریم صورت دی وروستو بيانوي فانتظر بغير الصلة نحو الذين في بلاد الشرق لااعرفهم نو اوس که متکلم علم وو، چې کلو د مشرق کې خو شته دي، صرف دومره علم يې وو، نو اوس د الذي نه بغير بله څه چاره نشته د هغه، نو هغه به الذي ذکر کوي، نو وائي به الذين في بلاد.....الخ، دریم صورت اولکليهما او يا د متکلم او مخاطب دواړو لپاره علم نه وي بغير د صلې نه، لکه متکلم او مخاطب دواړو ته دومره علم خو وي چې په بلاد الشرق کې څوک خو شته دي، چې اوسې په کې، نو اوس ته ورته ووائي چې الذين في بلاد الشرق لانعرفهم، لاتعرفهم نه دي بلکه لا نعرفهم دي چې زه او مخاطب دواړه يې نه پيژنو، نو شارح جواب وکړو لقلة جدوى مثل هذا الکلام د وجې د کموالي د فائدې او نفعې د مثل د دې کلام، په دې کې څه فائده نشته دې خکه چې د متکلم علم په احوالو مختصه وُ د مسند اليه باندې بغير د صلې نه رانغلو، يا سره د مخاطب نه رانغلو، نو متکلم به حکم په احوال عامو سره کوي، او په احوال عامو سره حکم کولو کې څه فائده نشته دي، لکه دغه حکم شو چې ما تا ته وويل چې الذين في بلاد الشرق لااعرفهم نو ته به هم ما ته وائي چې مولوي صاحب دا خو زما هم علم وو چې مشرق کې چيرته کسان دي او ته يې نه پيژنې، خکه ته تلی نه یې، نو څه فائده رانغله، يا هغه کسان چې بلاد الشرق کې دي زه او مخاطب يې نه پيژنو، نو دې کې هم څه فائده نشته دي، معترض راغی شبه يې وکړه چې يا هلکه په بعضې موادو کې فائده شته دي، هغه دا چې الذين في بلاد الشرق زهاد، يا علماء، يا اتقياء، نو دې کې خو فائده راغله؟ نو شارح جواب وکړو وندرة وقوعه خير دی تهيك ده په بعضې موادو کې فائده راځي خو هغه نادر دي او نادر کالعدم دي، او استهجان التصريح يا ايراد د مسند اليه کولی شي موصول سره د صلې نه لپاره د قبيح ګڼلو د متکلم تصريح کولو لره په اسم د مسند اليه باندې، او زيادة التقرير يا ايراد کولی شي د مسند اليه موصولې لپاره د زيات ثابتولو د غرض مسوق له الکلام په ذهن د سامع کې، شارح په دې ای تقرير الغرض سره درې ترجمې کوي د دې التقرير، چې د زيادة التقرير چې په متن کې راغلې، د دې درې ترجمې دي. يو ترجمې ته يې اشاره وکړه

چې اى تقرير الغرض المسوق له الكلام، او دا ترجمه يې مقدم كړه، خكه چې دا په دې دريو وارو كې غوره ده، دويم وقيل تقرير المسند، او دريمه وتقرير المسند اليه. مثال داسې شو نحو وراودته، تعين د مرجع كوي، مطالبه كړې وه د دې يوسف نه، اى يوسف على نبينا وعليه السلام والمراودة، شارح شبه كوي، اوخان له خي وائي المراودة مفاعلة دى، مجرد دا دى چې من راد يرود نه ماخوذ دى، او معنى جاء، وذهب ده، چې د يو كار لپاره خي او راخي، خي او راخي، شبه چې باب مفاعله خو د جانبينو نه راخي، نو مطالبه د جانب د زليخې نه خو وه، ليكن د حضرت يوسف د جانب نه خو مطالبه نه وه؟ نو تاسو به جواب وكرئ چې دلته كې باب مفاعله په معنى د اصل فعل سره دى. كله كله باب مفاعله په معنى د اصل فعل سره راخي، لكه عاقبت اللص ما سزا وركړې وه غلاگرو ته او غلاگرو ما ته څه سزا هم نه ده راكړې، نو دا عاقبت اللص په معنى د عقبت اللص سره شو، يا دويم جواب وكرئ چې مطالبه د زليخې نه دايقاع او د جماع ده، او د يوسف نه مطالبه د دفعې ده، نو په دې معنى سره باب مفاعله صحيح شو، معترض راغى شبه يې وكړه، شبه دا راغله چې يا هلكه دلته كې خو مجي او ذهاب نه وو، خكه دوى دواړه په يو كور كې اوسيدل، نو مجي او ذهاب خو نه وو، نو شارح په فكان سره جواب وكړو چې دلته كې مخادعة مراد ده حقيقي مجي او ذهاب نه دى مراد، فكان المعنى خادعته اى خادعت زليخى يوسف عن نفسه، معترض راغى شبه يې وكړه چې زليخې تگې خنگه وكره د نفس د يوسف، حالانكه د زليخې مطلوب خو نه وو حاصل شوى، نو چې حاصل نه شو، نو تگې يې خنگه وكره؟ تگې خو هله كيږي چې د مخادع مطلوب حاصل شي، او مطلوب د زليخې خو نه وو حاصل شوى، نو ده دا تفسير وكړو چې وفعلت فعل المخادع ويل وكړو دې زليخې په شان د كولو د مخادع، هلكه حقيقي مخادعة نه دى مراد، شبيه بالمخادعة دى، خكه حقيقي مخادعت خو ديته وائي چې هغه مطلوب حاصل شي، او هغه مطلوب خو حاصل شوى نه دى يصاحبه د خپل ملگري سره عن الشئ الذي، لاجل الشئ الذي لايريد منه ان يخرجه، اى منه من يده، نو يحتال اى المخادع، عليه اى الصاحب ان يغلبه وياخذه اى الشئ منه، اى الصاحب، شبه: يا هلكه دا خو يو معنى عامه شوه د مخادعت، نو دلته كې معنى مراده څه ده؟ نو شارح جواب وكړو وهي اى المخادعة عبارة ههنا عن التمحل لمواقعته، اى يوسف اياها اى زليخى نو شبه بالمخادعة شو او حقيقي نه شو، يعني دا حيله يې جوړه كړې وه، او په دې كې كامياب نه شوه، اوس المسند اليه التي هو اى يوسف في بيتها عن نفسه عن نفسه جار مجرور ظرف لغو دى، متعلق براودته اوس دا مثال مطابق د ممثل سره دى فالغرض المسوق له الكلام نزاهة يوسف على نبينا وعليه السلام وطهارة ذيله اى يوسف عن الفحشاء، چې يوسف بالكل پاك دى او قران هم گواه دى چې ثم بدالهم من بعد ما راؤا الايات بيا ظاهر شو زليخې د عزيز مصر او تولو ته نشانات د عفت د حضرت يوسف، چې دى ډير پاكدامن دى، خو د پاكدامنى نشانات ښكاره شو، خو سره د دې نه چې حضرت يوسف عفيف

مدعی صحیح ده، خو کوم دلیل چې ده ویلی دی د تقدیم د مسند الیه لپاره، دغه دلیل د ده تپهیل نه دی، نو د ده په دلیل باندې وروستو ماتن په وفیه نظر سره رد کوي قیل وقد یقدم المسند الیه په مسند باندې، لیکن مشروط په دوو شرطینو سره، یو شرط دا چې المسور بکل چې دغه مسند الیه مدخول د کل به وي، یعنې مدخول د حرف سور به وي چې کلُ دی، او په علی المسند به مقدم کیږي، دویم شرط دا دی چې المقرون بحرف النفي دغه محل به مقرون وي د حرف نفي سره، دا مسند به د حرف نفي سره مقرون وی، اوس دا دوه شرطونه راغلل چې مسند الیه مدخول د کلُ دی او مسند مقرون وي د حرف نفي سره، نو هلته کې د تقدیم د مسند الیه دا نکته ده، لانه تعیین د مرجع کوي، ویل خکه ای التقدیم دغه تقدیم دال علی العموم د عموم ترجمه کوي شارح ای علی نفي الحکم عن کل فرد دې کې یې اشاره وکړه چې العموم کې الف لام عوض دی د مضاف الیه نه، یا الف لام عهد خارجي دی، مقصود ترې نه نفي د حکم ده، نفي د محکوم به ده د هر فرد د افرادو د محکوم به نه، یو یې دیته اشاره وکړه، او دویم اشاره وکړه شارح تعیین د ماهو المراد ته، خکه چې عموم کې اشتباه وه، چې عموم نه مراد عموم النفي دی او که نفي د عموم ده، دې کې اشتباه وه، خکه نفي د عموم رفع د ایجاب کلي ته وائي، او عموم النفي سلب کلي ته وائي، نو چې اوس دلته کې مراد کوم یو دی، نو شارح تعیین د ما هو المراد وکړو چې عموم النفي مراد دی، او نفي العموم نه دی مراد ای نفي الحکم عن کل فرد نو دا عموم النفي دی.

اوس دې سلب کلي ته سلب کلي هم وائي او نفي د حکم عن کل فرد ورته هم وائي عموم النفي ورته هم وائي او شمول النفي ورته هم وائي، دا ټول الفاظ مترادفه او معنی یوه ده، مثال داسې شو لکه کل انسان لم یقم دواړه شرطین راغلي دي چې مسند الیه مسور دی په حرف سور سره چې کل دی، او مسند مقرون دی د حرف نفي سره چې لم دی، نو اوس د دې معنی دا شوه چې دا سلب د قیام د هر فرق د افرادو د انسان نه وه، نو دا مثال د سلب کلي شو، ویل دا مثال مطابق د ممثل سره دی فانه یفید القیام عن کل واحد من افراد الانسان چې تقدیم یې وکړو نو دا نفي د قیام د کل فرد نه فائده کوي او دا مقصود د متکلم وو، نو په تقدیم سره مقصود د متکلم حاصل شوو، نو خکه تقدیم کوي بخلاف ما لو اخر دغه مسند الیه او داسې ووائي نحو لم یقم کل انسان نو فانه دا یفید نفي الحکم یعني حکم د قیام عن جملة الافراد د یو ټولګي د افرادو د انسان نه، خپله ټولګی کل وي او که نه د بعضو نه وي، لا عن کل فرد او دا نفي د حکم عن جملة الافراد مقصود د متکلم نه وو، نو مقصود د متکلم حاصل نه شو، نو چې هغه مقصود د متکلم نفي الحکم عن کل فرد وي نو تقدیم سره دا حاصلیږي او په تاخیر نه حاصلیږي، نو مسند الیه خکه مقدم کیږي

نو فالتقدیم سره دا شارح تفریع وکړه چې تقدیم سره مقصود د متکلم حاصلیږي او تاخیر سره نه حاصلیږي، نو خکه تقدیم کیږي نو ویل فالتقدیم یفید عموم السلب وشمول النفي والتاخیر لا یفید الا

بسيطه ترې جوړه شي، د دې اولى دعوى دليل چې دلته کې ثبوت د عدم قيام انسان ته شوى لان حرف السلب وقع جزء من المحمول او حرف سلب چې جزء واقع کيږي د محمول نه هغې ته موجبه معدولة المحمول وائي واما الاهمال فلانه لم يذکر فيها ما يدل على کمية افراد الموضوع څکه کل يا بعض په کې نه دى ذکر شوى، نوثبوت د عدم قيام شو افرادو د انسان ته کل والى بعض والى په کې نشته. نو دا معنى د اهمال ده مع ان الحکم فيها اى في هذه القضية على ما صدق عليه الانسان مطلق افرادو د انسان باندې، او چې حکم په مطلق افرادو د موضوع باندې وي ديته مهمله وائي، نو اوس وائي واذا کان انسان لم يقل موجبة مهملة نو ه دې معنى د دخول د کل نه مخکې يجب ان يکون معناه نفى القيام عن جملة الافراد عن کل فرد سالبه کليه نه شوه، څکه لان الموجبه المهملة المعدولة المحمول چې انسان لم يقم دى في قوة السالبة الجزئية، يعنې ملازم دى د سالبې جزئيې سره، د قوت دا معنى معترض راغلى شبه يې وکړه چې نه منم چې موجبه معدولة المحمول په قوت د سالبې جزئيې کې ده، څکه چې موجبه مهمله تقاضي د وجود موضوع کوي، او سالبه جزئيه عامه ده په وخت د وجود د موضوع کې هم صادقيږي، او عدم کې هم صادقيږي، نو مساوات رانغلى، نو شارح جواب وکړو چې عند وجود الموضوع، چې موضوع موجود وي نو هلته کې موجبه مهملة معدولة المحمول او سالبه جزئيه کې نسبت د تلازم دى مساوات دى، او دلته کې موضوع انسان دى، او انسان موجود دى معدوم نه دى، او د سالبې جزئيې مثال نحو لم يقم بعض الانسان نو دلته کې سلب د قيام د بعضې افرادو د انسان نه وشو، دا سالبه جزئيه. بمعنى سره دفع د اعتراض کوي، چې يا هلکه منطقيانو خو دا ويلي دي چې موجبه مهملة معدولة المحمول او سالبه جزئيه کې تلازم دى او تا في قوة وويل، نو تا د هغوى نه خلاف وکړو، نو شارح راغلى جواب يې وکړو چې د دې قوة نه مراد زما تلازم دى، ويل بمعنى انهما متلازمتان في الصدق چې چيرته کې يوه صادقه شي نو بله به صادقيږي، اوس تلازم د جانبينو نه راځي، نو دوه دلائل ويل په کار دي، يو دليل د دې لپاره چې چيرته مهمله صادقه شي نو هلته کې سالبه جزئيه به صادقيږي، او يو دليل د دې لپاره چې چيرته کې سالبه جزئيه صادقه شي نو هلته کې مهمله به صادقيږي، نو دوه دليله په کار شو، څکه تلازم د جانبينو نه راځي، نو د اول لپاره شارح دليل وائي چې چيرته مهمله صادقه شوه نو مهمله به څکه صادقيږي، نو دليل په حکم باندې دا دى مهمله ديته وائي چې هلته کې سلب د محمول د افرادو د موضوع نه به شوى وي، بس د بعض او کل دې کې لحاظ نه وي، نو اوس دغه افراد د موضوع په واقع کې يا به بعضې وي يا به کل وي، بل احتمال نشته دى، که دا افراد واقع کې بعضې وي نو سالبه جزئيه صراحةً راغله او که دغه افراد واقع کې کل وي نو سالبه کليه راغله خو د سالبې کليې په ضمن کې جزئيه شته دى، نو بيا سالبه جزئيه راغله، نو فثبت چې صدق د مهمله مستلزم دى صدق جزئي لره، نو څکه وائي لانه قد حکم في

فرد کوي نو دا صادقه نه شوه، واذا کان انسان لم يقم اوس ديته واني تتمه د دليل. خکه متن کې تتمه
د دليل نه وه، خکه ماتن خو صرف دومره وويل چې انسان لم يقم دا موجبه مهملة معدولة المحمول
ده، دا په قوت د سالبي جزئيې کې ده، نو ترجيح د تاکيد په تاسيس باندې راځي، نو تتمه د دليل اول
شارح بيانوي، ويل **واذا كان انسان لم يقم بدون كل معناه نفي القيام عن جملة الافراد لا عن كل فرد** دا دليل
سره مونږ ثابت کړو، نو اوس راشه که چيرته شي دا **انسان لم يقم اى فلو كان انسان لم يقم** بعد دخول كل
ايضاً معناه كذلك نفي د حکم عن جملة الافراد شي، نو **كان كل لتاكيد المعنى الاول، نو فيجب ان يحمل**
**على نفي الحكم عن كل فرد ليكون كل لتاسيس معنى اخر،** دا خکه **ترجيحاً للتاسيس على التاكيد.**
اوس د هغه دويم صورت لپاره دليل واني، چې لم يقم انسان دی، نو واني **واما في صورة التاخير** په تاخير
مسند اليه کې، داسې چې **فلان قولنا لم يقم انسان** بې د کل نه **سالبة مهملة** دا سالبه ده خکه دلته کې نفي د
قيام راغله د هر فرد د افرادو د انسان، او مهمله خکه ده **لا سور فيها** دا د مهملې لپاره دليل شو، **والسالبة**
**المهملة في قوة السالبة الكلية المقتضية** صفت الكلية **للنفي عن كل فرد** نو مهمله هم مقتضي لپاره د نفي عن
کل فرد شوه **نحو لاشئ من الانسان بقائم** داسالبه کليه شوه، سلب راغلې د هر فرد د افرادو د انسان نه
**ولما كان** سره شارح اشاره کوي چې دا راتلونکی متن داجواب دی د يو سوال نه چې واردېږي په ماتن
باندې، هغه سوال دا دی چې ماتن ستا دا خبره د منطقيانو نه خلاف ده، خکه منطقيانو خو دا ويلي
دي، چې مهمله خو په قوت د سالبي جزئيې کې ده، او تا وويل چې مهملة په قوت د سالبي کليې کې
ده، نو ستا دا خبره خو خطاء شوه، نو دی واني چې وانما کان هذا دا ما قال د ماتن مخالفاً لما عندهم
اى په نزد د منطقيانو باندې ده، من هغه دا ده چې ان المهملة في قوة الجزئية نو بينه بقوله بيان يې
کړو ماتن دا مخالفت په دې قول خپل سره **لورود موضوعها اى موضوع المهملة في سياق النفي حال كونه اى كون**
**الموضوع نكرة غير مصدرة بلفظ كل** حاصل د جواب داسې شو چې زه چې وايم چې دا مهمله په قوة د سالبي
کليې کې ده، نو هر ځای کې نه، صرف دلته کې ده، خکه دلته کې قرينه په سالبي کليې باندې شته
دی، او هر ځای کې زه نه وايم او منطقيان واني چې مهمله دقوة د سالبي جزئيې کې ده، نو هغه بې د
قرينې د سالبي کليې نه واني
**فانه** پس يقينا دا قول **يفيد نفي الحكم عن كل فرد** نو سالبه کليه شوه، اوس تتمه د دليل کوي، تتمه په
متن کې نشته دی، نو واني واذا کان لم يقم انسان بدون کل معناه نفي القيام عن کل فرد شوه، نو فلو
کان بعد دخول کل ايضاً کذلك نفي عن کل فرد نو کان کل لتاکيد المعنى الاول، نو فيجب ان يحمل
على نفي القيام عن جملة الافراد د کل د دخول نه وروستو به مونږ حملوو په نفي د قيام عن جملة الافراد
باندې، خکه **ليكون كل لتاسيس معنى اخر** د دې لپاره چې کل د نوي معنى د تاسيس لپاره مفيد شي.

التفصيل كوي، دا هم اوقع في الذهن دى، خكه چي يو خبره كي دير تفصيل شي جُمل معترضه په كي دير شي، نو په معنى باندي طالب نه پوهيږي په سر او كنه باندي، نو چي فصيح استاذ وي نو هغه بي بيا په اجمال سره په لندو الفاظو سره پوهه كړي، نو په طالب باندي بيا هغه سبق غميږي نه، او كه ن طالب غريب ذكي نه وي، غبي غوندي وي او استاذ دلته چشمي بنكته او پورته كوي، نو هغه طالب به په خاى د سبق ويلو كي، د سبق نفرت به ورته پيدا كړي چي يره په دي سبق زه نه پوهيږم، د دي نه ځا غرض دى نو نوبت به دا شي چي هغه طالب بيا ابن حاجب ته كنځل شروع كړي، كافيه بي وويل پوهه پري نه شو، هيله لاړو ويل ابن حاجبه تا داسي داسي كوم، تا داسي كتاب ولي جوړ كړى، اسان غوندي كتاب به دي جوړ كړى وو چي زه پري پوهه شوى وى.

مولانا انور شاه كشميري رحمة الله عليه چي ديوبند كي بخاري به ويل نو اوږد تحقيق به يي وكړو، نو يو قندهاري طالب وو هغه به پوهه نه شو په هغه تحقيق باندي، نو پابه سيدو دا خپل كميس به يي داسي تك وهلو، غصه كي به يي وويل چي زه تا ويلى تا ته پاتي شو، او مونږه تري لاړو، نو د دي وجي نه شارح اوس اجمال سره پوهه كوي، بنكته دي مدارسو كي داسي كوي چي اول په دي خطبو كي شروع وكړي، نو لوى لوى تقارير په دي كي كوي، چشمي بنكته او پورته كوي بسم الله كي تقريباً مياشت دوه مياشتي اوباسي، او چي وروستو هغه بيا دغسي شروع كيږي نو طالبان وائي چي مولانا صاحب داسي بيا كتاب نه خلاصيږي، نو هغه بيا په اوراقو باندي شروع وكړي، نو بيا پري نه طالب پوهيږي او نه پري مولا پوهيږي، قسم ما ته بيا راكوي، چي مولا پري هم نه پوهيږي نو د طالب عمر هم ضائع او د مولاهم، خو په طالب يي چل وكړو، نو گرفتار شو، د طالب سره يي خيانت وكړو هغه عمر عزيز يي ضائع كړو، دا دريو مياشتو كي دا بنكته وره دوره چي كوي، دا د طالب عمر عزيز ضائع كول دي، اوس مونږ يو هداية په اللهم سره په يو كال كي پورا كال نه شو ويلى، هغه په دريو مياشتو كي وائي چي وره دوره ما ختمه كړه.

نو فالحاصل ويل دا دى چي **ان التقديم بدون كل لسلب العموم ونفي الشمول، والتاخير لعموم السلب وشمول النفي،** **فبعد دخول كل يجب ان يعكس هذا، ليكون كل للتاسيس الراجح لا للتاكيد المرجوح.**

ماتن وويل وفيه نظر اوس غرض د ماتن د دي عبارت نه رد دى په ما قال د قيل باندي خو د هغه په دعوى باندي رد نه كوي، بلكه د هغه په دليل باندي رد كوي، اشاره كوي ديته چي دا مدعى د قيل صحيح ده، خو دا كوم دليل چي ده ويلى دى، دا ده خطاء ويلى دى نو دي پري اعتراض كوي، چي فرق دا دى، چي اعتراض اول په صورت اول او ثاني دواړو باندي دى او اعتراض ثاني او ثالث خاص دى په صورت ثاني پوري، نو وائي چي **وفيه نظر** په دي ما قال او قيل كي نظر دى، ويل خكه لان النفي عن الجملة في الصورة الاولى يعني: سره غرض د شارح تعيين كوي د صورت اولى، او غرض د تعيين د

صورت اولی نه دفع د توهم ده، چې هلکه صورت اولی خو دوه قسمه دي يو مخکې د کل نه لکه انسان لم يقم، او يو وروستو د کل نه چې کل انسان لم يقم دي، نو دلته کې صورت اولی نه مراد هغه کل د دخول نه وروستو به وي نو شارح يعني سره دفع وکړه چې نه مخکې، يعني: قصد کوي ماتن په دې صورت اولی سره الموجبة المهملة المعدولة المحمول نحو انسان لم يقم، وعن کل فرد او نفي د هر فرد نه في الصورة الثانية، يعني: سره زيور مولازري تراويحي، تعيين د صورت ثانيه کوي يو، دفع د توهم کوي، دويم چې صورت ثانيه کې خو يو د دخول د کل نه مخکې وو چې لم يقم انسان دی او بل د دخول د کل نه وروستو وو چې لم يقم کل انسان دی، نو دا د دخول د کل نه به وروستو مراد وي؟ نو يعني سره شارح تعيين وکړو ويل السالبة المهملة نحو لم يقم انسان دی، نو انما افاده فائده کړی دی دي نفي عن کل فرد، او عن الجملة لره الاسناد الى ما اضيف اليه کل اسناد فعل هغه څيز ته چې هغه ته اضافت د کل شوی دی، مضاف اليه د کل وهو لفظ الانسان دی، نو کل نه مخکې اسناد د لم يقم انسان ته شوی وو يا ضمير ته چې راجع دی انسان ته، وقد زال ذلك الاسناد المفيد لهذا المعنى، چې نفي عن الجملة په صورة اولی کې او نفي عن کل فرد په صورت ثانيه کې، زائل شو بالاسناد اليها په سبب د اسناد سره، ای کلمې د کل ته، ای الى کل، دا مخکې اسناد زائل شو، څکه دليل وائي د قد زال لپاره دی لان انساناً صار مضافاً اليه انسان خو اوس مضاف اليه وګرځيدو کنه، نو فلم يبق مسند ته بلکه مسند اليه کل شو، متن دا دي چې فتكون کل تاسيساً لاتاکيداً، نو فاء راغله په فتكون کې نه يا هلکه فاء خو ډير قسمه باندې ده، نو دا فاء د څه لپاره ده؟ نو شارح ورسره لګوي على تقدير، دې سره اشاره کوي چې يا دا فاء تفريعيه ده، نو د متفرع عليه تعين شارح کوي، هغې ته اشاره کوي، داسې چې کله چې اسناد کل ته شو ايضاً په شان د اسناد انسان ته دا شو مفيداً للمعنى الحاصل من الاسناد نو هلته کې صورت اولی کې نفي عن الجمله او صورت ثاني کې نفي عن کل فرد نو اوس که د کل نه وروستو هم دغسې شي نو فتكون کل تاسيساً لاتاکيداً نو دا تفريع شوه، يا وواييې چې د شارح غرض دا دی چې دا فتكون کې فاء جزائيه ده، او شرط ورله محذوف دی، هغه شرط محذوفه ته شارح اشاره وکړه، او بيا هم دغه ده چې فتكون کې فاء جزائيه شي، څکه شارح على تقدير ويلي دی، او تقدير په شرطياتو کې مستعمليږي نه په تفريع کې، نو بيا دا ده چې دا جزاء شي فتكون او شرط ورله محذوف شي، هغه شرط محذوفه ته شارح اشاره وکړه چې لو کان الاسناد الى کل مفيداً للمعنى الحاصل من الاسناد الى انسان نو فتكون کل تاسيساً لاتاکيداً لکن المقدم حق فالتالي مثله، هر چې دې دليل د حقانيت د مقدم نو د وجې د ما مر نه، څکه چې مخکې اسناد انسان ته شوی، نو هلته کې نفي عن الجمله او عن کل فرد وو، او وروستو اسناد کل ته وشو نو مخکې هغه اسناد زائل شو، نو دغه نفي عن الجمله وعن کل فرد شو، او هر چې دی دليل د ملازمې هغه شارح ذکر کوي، ويل لان التاکيد

لفظ تاكيد يو لفظ دى، يو لفظ ته وائي، يفيد چي فائده كوي تقويت ما تقويت د هغه حكم يفيد لفظ اخر هيله په تكرار د لفظ سره وي او كه په الفاظو مخصوصه ؤ سره وي، په تكرار د لفظ سره وي لكه په تاكيد لفظي كي، او كه په الفاظ مخصوصه ؤ سره وي لكه په تاكيد معنوي كي، وهذا ليس كذلك دلته كي كل په نسبت سره انسان ته دارنگه نه ده، خكه نه دى لان هذا المعنى خكه دا معنى چي نفي عن الجملة او نفي عن كل فرد دى، حينئذ: په وخت د گرخيدو د اسناد كي كل ته انما افاده فائده كړي دى، دي معنى لره الاسناد الى لفظ كل ته لاشئ اخر چي هغه اسناد دى دي انسان ته، حتى: منفي سره لگوئ كه شئ اخر فائده كړي وي نو حتى تكون كل تاكيداً له، د دي شئ اخر لپاره.

اوس شارح وائي وحاصل هذا الكلام، يو غرض د شارح دادي چي د دي وجه اول د نظر مونږ او تاسو نه حاصل بيانوي، دويم غرض د شارح دا دى چي تمهيد ږدي ولايخفى اعتراض ته، چي په دي نظر د ماتن باندي د قيل د طرف نه اعتراض واردېدى شي، دا نظر د ماتن نه صحيح كيږي، په قيل باندي دريم وحاصل هذا الكلام نه غرض تطبيق د نظر كوي، د داب د مناظري سره، خكه قيل دا مخكي په نمط د قياس استثنائي سره ويلى وو، او قانون دا دى چي مستدل يو دليل پيش كړى په قياس استثنائي دفعي سره نو مجيب چي جواب كوي نو يا په منع د ملازمي سره كوي يا په منع د بطلان التالي سره، نو اوس پته رانغله چي ماتن په وفيه نظر سره د قيل هغه بطلان التالي منع كړه او كه ملازمه يې منع كړه، نو حاصل هذا الكلام سره شارح اشاره كوي چي دا جواب د ماتن د طرف نه په منع د ملازمي سره دى، چي دا ملازمه مونږ نه منو چي د كل د دخول نه مخكي نفي عن الجمله شي او د دخول د كل نه وروستو هم نفي عن الجمله شي، نو ترجيح د تاكيد په تاسيس باندي راځي، دا مونږ نه منو، دارنگه صورت ثاني كي د دخول د كل نه مخكي نفي عن كل فرد، د دخول د كل نه وروستو هم نفي عن كل فرد شي نو لازم به شي ترجيح د تاكيد على التاسيس باندي، دا ملازمه مونږ نه منو، نو جواب په منع د ملازمي سره وشو، نو شارح وائي چي وحاصل هذا الكلام دا دى چي انا لانسلم انه لو حمل الكلام بعد كل على المعنى الذي حمل عليه قبل كل، نو كان كل كيږي كل، للتاكيد، دا ملازمه مونږ نه منو، نو دا نظر په معنى د ملازمي سره شو، معنى د بطلان التالي سره نه شو، يعني بطلان التالي مونږ منو چي ترجيح د تاكيد په تاسيس باندي باطله ده، خو ملازمه نه منو، اوس شارح په دي ماتن باندي شبه كوي چي ولا يخفى ويل پټ پناه نه ده چي ان هذا المنع دا منع د ماتن، دا نظر او اعتراض د ماتن انما يصح په دي قيل باندي، خو على تقدير ان يراد التاكيد الاصطلاحي كه قيل د تاكيد نه تاكيد اصطلاحي اخيستى وي په اصل كي، نو تاكيد اصطلاحي دويمه قسمه دى، يو لفظي بل معنوي، تاكيد اصطلاحي لفظي ديته وائي چي تكرار د لفظ واحده شوى وي جاءني زيد زيد او تاكيد اصطلاحي معنوي ديته وائي چي هغه په الفاظ معدودؤ مخصوصؤ سره وي، لكه كل، واجمع،

ابنع وابصع، وفلانكي...الخ، نو كه دا يې اراده كړې وي نو بيا د ماتن خبره ټيك ده، نظر په قيل باندې وارد دی، ځكه چې خبره په اسناد كې ده، په الفاظو كې نه ده، او تاكيد لفظي دی او كه معنوي دی هغه په الفاظو كې راځي، او دلته كې زمونږه خبره خو په اسناد كې ده، نو بيا په قيل باندې دا نظر صحيح دی، چې ته تاكيد اصطلاحي اراده كوې؟ او دلته كې خبره خو په اسناد كې ده، اسناد نه په تاكيد لفظي اصطلاحي كې داخل او نه په معنوي كې داخل دی، **لكن لو اريد بذلك** په دې تاكيد سره چې **ان تكون كل لافادة معنى** حسي معنى كان حاصلاً بدونه بغير د كل نه، يعني تاكيد لغوي شي، نو بيا د ماتن نظر په قيل باندې نه صحيح كيږي، ځكه صورت اولی كې مخكې د كلې نه هم نفي عن الجملة وه او وروستو هم نفي عن الجملة شو نو دا تاكيد لغوي شو، ما يفيد د احدهما عين ما يفيد د اخر شو، دارنګه صورت ثاني كې د دخول د كل نه مخكې هم نفي عن كل فرد وه، او وروستو هم نفي عن كل فرد شوه، نو تاكيد لغوي خو راغلی كنه، نو فاندفع المنع نو پس ټيله وركول منعې د ماتن ته ظاهر .

دی معترض راغلی شبه يې وكړه چې يا هلكه بيا د دې قيل خو مسلك ټهيك شو نو ؟ شارح وائي چې د قيل مسلك نه ټيك كيږي، دا يو نظر اول وارد نه شو په قيل باندې، هغې ته ټيله وركړې شوه، ليكن نظر ثاني او ثالث خو پرې وارد دی كنه بيا هم، نو قيل نه صحيح كيږي، **وحينئذ: ای وحين اندفاع المنع ای منع المذكور يتوجه** ما هغ منع اشار اليه الماتن بقوله، دا دويمه منع ده، خو دا په صورت ثاني باندې ده، ويل **لان الصورة الثانية** ځكه صورت ثاني تخصيص كوي، شبه يا هلكه صورت ثانيه د دخول د كل نه مخكې وي كه وروستو وي **يعني السالبة المهملة نحو لم يقم انسان** ته وائي **اذا افادت النفي عن كل فرد** نو سالبه كليه راغله، او قانون دا دی چې په سالبه كليه كې سالبه جزئيه وي، نو **فقد افادت النفي عن الجملة** يې هم فائده كړه، او دخول د كل نه په هر يو باندې چې ته حملوې نو تاكيد لازميږي تاسيس نه راځي، نو **فلذا حملت كل على الثاني** او ثاني تعيين كوي **ای على افادة النفي عن جملة الافراد حتى يكون معنى لم يقم كل انسان نفي القيام عن الجملة لا عن كل فرد شي**، نو دا بيا هم لاتكون تاسيساً ځكه دا معنی خو مخكې د كل نه هم معلومه شوې وه، بل تاكيداً: بلكه تاكيد كيږي، تاكيد ځكه كيږي چې ويل **لان هذا المعنى** چې نفي د **لها عن الجملة كان حاصلاً** بدونه بغير د لفظ د كل نه، د دې نه مخكې هم هم دغه وه، وحينئذ او په دغه وخت كې چې نفي عن الجملة والا معنی بغير د كل نه هم حاصله وه، نو **فلو جعلنا لم يقم كل انسان لعموم السلب مثل لم يقم انسان نو لم يلزمه ترجيح التاكيد على التاسيس** ځكه **اذ لا تاسيس اصلاً، بل انما يلزم ترجيح احد التاكيدين على الاخر** نو كه نفي عن كل فرد كوي نو بيا هم تاكيد لازميږي، او كه نفي عن الجملة كوي نو بيا هم تاكيد لازميږي، نو اوس ته نفي عن كل فرد اخلې نو ترجيح د احد التاكيدين على الاخر راغله، اوس يو مولانا قيل راغلی، د دې نظر نه يې جواب كړی دی، شارح په هغه نظر د هغه باندې رد كړې، هغه مولانا قيل د قيل اول نه نه جواب داسې كړی دی، چې ای هلكه دا لم يقم انسان دی چې

دلالت کولو په نفي عن کل فرد باندې، نو په طريقې د دلالت مطابقي سره يې کولو، خکه چې نکر واقع شي په سياق د نفي کې، نو دا دال دی په دلالت مطابقي سره نفي عن کل فرد باندې، او دا لم يقم انسان چې دلالت په نفي عن الجملة باندې کولو، نو په دلالت التزامي سره يې کولو، په دې اعتبار سره چې سالبه کليه مستلزمه دی، صدق د سالبې جزئيې لره، نو استلزاماً راغلی، نو اوس د دخول د کل نه وروستو مونږه لم يقم کل انسان کې، که مونږه دا حمل کړو په نفي عن کل فرد باندې په دليل مطابق سره، نو بنکته د دخول د کل نه مخکې هم نفي عن کل فرد وو په مدلول مطابقي سره او وروستو هم مدلول شو په مدلول مطابقي سره نو اتحاد د دلالتينو راغلی چې دواړه مطابقي شو، نو تاکيد لازم شو او د دخول د کل نه مخکې نفي عن جملة الافراد وو خو التزاماً وو، او د دخول د کل نه وروستو مونږ نفي عن الجملة واخيسته خو مطابقةً، نو اتحاد دلالتينو رانغلی نو چې رانغلی نو دا ګويا که تاسيس شو تاکيد نه شو، دا د قيل د طرف نه چا جواب وکړو

نو شارح د قيل دا جواب رانقل کوي او بيا پرې شارح رد کوي، **وبل ما يقال** هغه جواب چې ويلی شوی دی دجانب د قيل نه چې **ان دلالة لم يقم انسان على النفي عن الجملة بطريق الالتزام، ودلالة لم يقم كل انسان عليه** په دې نفي عن جملة الافراد باندې بطريق المطابقة، نو اتحاد دلالتينو رانغلی، نو **فلا يكون تاكيدا** خکه تاکيد کې شرط اتحاد دلالتينو دی، او اتحاد دلالتينو رانغلی، شارح وائي چې په دې ما يقال کې نظر دی. دا ما يقال خطاء دی، خکه چې ته تاکيد کې شرط اتحاد الدلالتين وائې، نو بيا صورت اول کې هم ستا دليل نه صحيح کيږي، **وبل انا اشترط في التاكيد اتحاد الدلالتين نو لم يكن كل انسان لم يقم** چې دا صورت اول وو، د کل د دخول نه وروستو **على تقدير كونه لنفي الحكم عن الجملة تاكيدا** نو تا په صورت اول کې نفي عن کل فرد ګرځولی دی، نو مونږ وايو چې نفي عن کل فرد مه ګرځوه خه؟ بلکه نفي عن الجملة وګرځوه، نو بيا تاکيد جوړيږي، نو اوس ګوری: اذ لو اشترط في التاكيد اتحاد الدلالتين دا مقدم د قياس شو، او لم يكن انسان لم يقم على تقدير كونه لنفي الحكم عن الجملة تاكيداً دا تالي د قياس شو، مقدمه استثنائيه ورسره تل کوي، لكن التالي باطل، فالمقدم مثله، هر چې ده وجه د بطلان التالي د وجې د اعتراف د قيل نه، خکه قيل په خپله اعتراف کړی دی، چې کل انسان لم يقم مونږ نفي عن الجملة نه وګرځوو، نو دا تاکيد کيږي، نو لم يكن تاكيداً باطل شو، نو بطلان التالي د وجې د اعتراف او اقرار د قيل نه شو، دليل د ملازمې دا دی چې ته اتحاد د دلالتينو شرط وائې، دلته کې اتحاد د دلالتينو خو نه دی، خکه **لان دلالة انسان لم يقم** د کل نه مخکې على هذا المعنى، چې نفي د حکم عن الجمله دی بطريق الالتزام دی، خکه چې انسان لم يقم معنى مطابقي دا ده، عدم ثبوت د قيام، چې دا عدم قيام انسان ته ثابتول دي خکه دا موجبه معدولة المحمول ده، يعني عدم قيام ثابتول انسان ته، او دا معنى چې دا عدم قيام ثابتول بعضې افرادو د انسان ته، دا دلالت

التزامي دی، خکه چي دا مهمله ده، او مهمله په قوت د جزئيي کي وي، نو التزاماً شو، نو اوس د دخول د کل نه وروستو هم ته نفي د حکم عن الجملة وکړي، نو هغه په طريقې د مطابقت سره شو، نو تاکيد رانغلی، خکه د دخول د کلُ نه وروستو نفي دحکم عن الجملة په طريقې د مطابقت سره شو، او د دخول د کل نه مخکې نفي د حکم عن الجملة التزاماً وو، خکه معنی مطابقي خو عدم ثبوت دقيام رو انسان ته، او نفي د حکم عن الجملة خو د دې وجې نه وو چي دا مهمله ده، او مهمله په قوت د جزئيي کي ده، نو التزاماً وو، نو د قيل د طرف نه دا جواب خطاء شو

دريم رد کوي **ولان النكرة المنفية** ديته مؤاخذه لفظي وائي، **ولان النكرة المنفية اذا عمت كان قولنا لم يقم انسان سالبة كلية لا مهملة** ويل ته په نوم کي خطاء شوی نې، ويل ديته به سالبه کليه وائي او تا ورته مهمله ويلي ده، ته خطاء شوی يې كما ذكره هذا القائل چي هغه ورته مهمله ويلي ده، خکه **لانه قد بين فيها** ويل خکه چي بيان کړی شوی دی په دې قضيه کي چي ان الحكم چي قيام دی **مسلوب عن كل واحد من الافراد** د افرادو د انسان نه، **والبيان** او دا بيان د هر واحد **لا بدله من مبين، لولا محالة هنا شئ** نو خامخا دلته کي يو سُور به وي، يو مبين به وي، يدل دلالت به کوي هغه مبين په دې على ان الحكم فيها، په دې چي حکم په دې کي على كمية افراد الموضوع او ولا نعني بالسور سوى هذا، او کومه قضيه کي چي سور راشي نو هغه سالبه کليه وي، وائي وحينئذ ويل په دغه وخت کي چي دا سالبه کليه شوه، او مهمله نه شوه، **يندفع** مندفع شو ما هغه جواب قيل چي ويل شوی دی د قيل نه، چي **سماها مهملة** چي قيل دا مسمی کړي ده په مهملي باندې باعتبار عدم السور نو دا جواب خطاء شو چي سور شته دی کنه چي هغه وقوع دنکرې په سياق د نفي کي واقع کيدل دا سور د سالبې کليې دی.

**وقال عبد القاهر** دا وقال عبد القاهر عطف دی په وقيل قد يقدم باندې اوس که څوک شبه وکړي، چي يا هلکه ما قال د قيل، او ما قال د عبد القاهر يو شی دی، نو دا ذکر کول د ما قال د عبد القاهر پس د ما قال د قيل نه مستدرك شو، نو تاسو به جواب وکړئ چي حاجت ورته شته دی مستدرك نه دی خکه چي ما قال د قيل مجمل وو، او ما قال د عبد القاهر د هغې تفصيل دی، او قانون دا دی چي تفصيل بعد الاجمال اوقع في الذهن وي، هغې ته څوک مستدرك نه وائي، نو عبد القاهر ويلي دي **ان كانت كلمة كل داخلة في حيز النفي شبه** څنګ د نفي خو عام دی، چي د نفي نه کل مخکې وي نو هغې ته هم ويلي شي چي في حيز النفي دی، او که د نفي نه وروستو وي نو هغې ته هم ويلي شي چي في حيز النفي، نو پته رانغله چي د دې في حيز النفي نه کوم يو حيز النفي مراد دی نو ماتن تعيين وکړو چي **بان اخرت عن اداته** ويل چي مؤخره کړی شوي وي دا کلمه د کل د اداتو د نفي نه، سواء سره شارح دفع د توهم کوي، چي يا هلکه دا کلمه د کل څنګه چي د اداتو د نفي نه وروستو وي نو دغسې معمول د نفي به هم وي؟ نو ده دا توهم دفع کړو چې نه دا شرط نه دی، وروستوالی د اداتو د نفي شرط دی، او

معمول د نفي كيدل شرط نه دى **سواء كانت معمولة لاداة النفي اولا او لم يكن معمولة لادات النفي بل معمولة للفعل النفي**، خكه چې د اداتو د نفي لپاره معمول نشته، نو د دغه فعل منفي لپاره به وي بل خو څه نشته **وسواء كان** سره دويم دفع د توهم كوي چې خبر د دې كل به وروستو فعل به وي، خكه مثال نه معلوميږي چې **ما كل ما يتمنى المرء يدركه** نو دلته كې خبر فعل دى، نو خبر كيدل به شرط وي؟ نو د دا توهم دفع كړو چې **وسواء كان الخبر فعلا** اى خبر كل فعلاً وي، نحو لكه دا شعر **ما كل ما يتمنى المرء** نه دى هر هغه څيز چې غواړي يې سړى يدركه چې دى دي يې بيامومي دغه څيز لره، دي ما لره، هر سړي ته هره متمنى نه شي حاصليدى، **ولن ليس للانسان الا ما يتمنى** داسې يو ايت دى، دا دويم نيم بيتې دليل دى، د دې مخكښې نفي لپاره چې هر مُتمنى د سړي نه شي حاصليداى، خكه **تجرى الرياح بما لا تشتهي السفن** ويل جاري كيدل بادونو په هغه طريقې سره دي چې نه غواړي اهل سفن، **السفن:** نه مراد اهل سفن دي، او بيړۍ او جهاز په درياب كې روان دي، نو اهل سفن غواړي موافق باد، چې دغه كشتى چې كوم طرف ته خي نو چې هغه طرف ته تيله ووهي، ناسابې طوفان د بل طرف نه راشي، او دغه كشتى الته كړي، او تول اهل سفن غرق شي، نو د هغې متمنى حاصل نه شوه، او غير فعل او يا دا خبر فعل به نه وي غير فعل به وي، لكه قولك ما كل متمنى المرء حاصلاً نه دى هر غوښتلى شوى شى د سړي حاصليدونكى، **او معمولة:** يا معمول وي دغه كل للفعل المنفي، الظاهر سره غرض د شارح دا دى چې بيان د احتمالينو كوي په دې معطوف عليه د او معمولةٌ كې، دويم غرض د شارح دا دى چې ترجيح وركوي احتمال اول ته په احتمال ثاني باندې په الظاهر سره، دريم غرض د شارح په دواړو احتمالينو باندې اعتراض كوي، چې دا دواړه احتمالين خطاء دي، او څلورم غرض دشارح د اعتراض نه وروستو جواب كوي په اللهم سره، نو د شارح څلور اغراض شو، نو وائي چې الظاهر ظاهر دا دى چې انه چې دغه قول چې معمولةٌ دى، عطف، معطوف دى على داخلةٌ باندې، او دا ظاهر دى، خكه چې هغه هم صفت دى، اسم صفتي دى او معمولة هم اسم صفتي دى، نو مناسبت دواړو كې شته دى، ليكن په دې باندې اوس رد كوي چې وليس بسديد ويل دغه عطف محكم نه دى، خكه لان الدخول في حيز النفي شامل بذلك خكه ويل هلته كې ما تعميم كړى وو، چې سواء كانت معمولةٌ لنفي اولا، نو اولا چې د نفي لپاره خو نه شو نو د فعل منفي لپاره به وي كنه بل خو څه شى نشته نو او معمولة للفعل المنفي مستدرك شو، دويم احتمال بيانوي او رد پرې كوي وكذا او همدارنګه برابر نه دى، محكم نه دى لوعطفتها كه ته عطف كړى دى معمولة لره على أخرت باندې، نو معترض شبه وكړه چې يا هلكه عطف د معمولة په اخرت باندې نه صحيح كيږي، خكه هغه جمله ده او دا مفرد دى، نو د عطف د مفرد په جمله باندې راخي، او عطف د مفرد خو په جمله باندې لا يجوز دى، نو شارح جواب وكړو چې او جعلت معمولةٌ د شارح په دې عبارة كې دوه احتمالين دي، جواب خو وشو، خكه ومعمولة بمعنى

پینځم مثال د دې چې کل عین مفعول متاخره واقع شوی وي، کل تاکید لپاره، خلورم مثال د دې چې کل عین مفعول مقدمه شوی وي، او فاعل واقع شوی دی د مفعول مقدمه لپاره، او شپږم مثال د دې چې کل مفعول مقدم شوی وي، او فاعل زیات را نه وړي، خکه بیا بې د مبتداء سره التباس راځي، نو د دې وجې نه ماتن امثله خو مقدم کیدای نه شي، لکه نحو ما جاءني القوم کلهم دا په تاکید د فاعل کې شو، وما جاءني القوم دا په عین فاعل کې شو، اوس اول شبه کوي په ماتن باندې او شبهې نه وروستو جواب کوي، وېل وقدم او مقدم کړو ماتن مثال التاکید مثال د تاکید د فاعل علی الفاعل حالانکه تاکید فرع دی تابع دی، او عین فاعل اصل دی متبوع دی، نو ماتن تابع مقدم کړو په متبوع باندې دا ولې؟ دا جواب چې وېل لان کلمة اصل فیه وېل خکه چې دا لفظ د کل اصل دی په دې تاکید کې، خکه دا د الفاظو د تاکید معنوي نه دی، او لم اخذ کل الدراهم دا په في المفعول المتاخر، خو کل عین مفعول شو، او کل الدراهم لم اخذ دا په في المفعول المتقدم، کل عین مفعول شو، اوس دوه مثالونه د ماتن نه پاتې شوي وو، خکه چې د ماتن مقصود استیعاب نه وو، نو شارح وائي هغه دوه زه تاسو ته پیش کوم، هغه دا دې چې وکذا لم اخذ الدراهم کلها دا مثال د تاکید د مفعول متاخره، او الدراهم کلها لم اخذ دا مثال د تاکید د مفعول متقدمه، ففی جمیع هذه الصور د دې نه غرض د شارح دفعه د توهم کوی متن دا دی چې توجه النفی دا جزاء ده د دې چې ان کانت کلمة کل نو متوهم توهم وکړو چې دا جزاء به د اخر د دې صورت سره به لګي، چې کل الدراهم لم اخذ خکه هغه قریب دی، وېل نه ففي جمیع هذه الصور توجه النفي الی الشمول خاصةً نو نفي عن جملة الافراد کوي، نونفي الشمول، سلب العموم وکړه، رفع د ایجاب کلي شوه، قیل هم دغه وېلي وو، لا الی اصل الفعل اصل فعل به په خپل خای باندې به وي، د افاد الکلام او فائده کوي دا کلام ثبوت الفعل، لکه ما کل ما یتمنی المرء، او الوصف لکه ما کل الدراهم ماخوذاً، بعض مما اضیف الیه کل، چې هغه دراهم دي یا ما یتمنی دی، خو دا ثبوت به هله وي ان کانت کل في المعنی فاعلاً للفعل او الوصف المذکور في الکلام خکه فاعل کې ثبوت راځي، او افاد تعلقه یا فائده کوي تعلق د فعل یا د وصف به ای ببعض هغه اضیف الیه کل دی، خو ان کانت کل في المعنی مفعولاً للفعل، خکه تعلق په مفعول کې راځي، للفعل او الوصف، اوس شارح دمتن لپاره دلیل وائي، چې وذلك وېل دا ثبوت د فعل د یا وصف یا تعلق؟ بعضو پورې بدلیل الخطاب، یو په دلیل د مفهوم مخالف سره دی، دلیل الخطاب نه مراد دلیل مخالف، خکه چې تا په یو خای کې نفي د کل والي وکړو، نو دا مفهوم مخالف دی په ثبوت بعض والي ته، دارنګه و شهادة الذوق، او د وجې د ګواهي ورکولو د ذوق نه، ذوق سلیمه هم په دې باندې ګواه دی، ذوق وائي قوة تدرك بها لطائف الکلام خکه ذوق سره معلومیږي چې په یو خای کې تا نفي د کل والي جمع والی وکړو، نو هغه دلالت په ثبوت د دې فعل او تعلق د دې فعل بالبعض باندې کوي، ولې که بعضې باندې وو نو بیا کلوالي ته حاجت نه وو،

وسلم په صحابه ؤ ته دير لقبونه ويل، خو د مدحي د وجې نه د محبت د وجې نه، تحقير لپاره به يې نه ويل، نو نور صحابه غلي شو او دغه ذواليدين پاڅيده رسول الله صلى الله عليه وسلم ته يې وويل چې حضرت، هغه وفرمايل چې څه وائې؟ ويل اقصرت الصلوة ام نسيت يا رسول الله مونځ كوز شو؟ څلورو نه بنكته دوو ته راكوز شه يا ته هير شوې ئې، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته په جواب كې وويل، چې كل ذلك لم يكن چې يا هلكه ذواليدين! نه مونځ لنډ شوى دى د څلورو نه دوو ته هم دى راكوز شوى او نه زه هير شوى يم، نو هير خو ترې نه راغلى وو، خو په خپل زعم كې زه نه يم هير شوى، خكه د رسول الله صلى الله عليه وسلم خو دا خيال وو چې مونځ ما پوره كړى دى، نو وروستو حديث ټكره راځي چې ذو اليدين ووېل چې حضرت نه قد كان بعض ذلك په دې دوو خبرو كې يو خامخا شوي ده، ځكه مونځ دوه ركعته شوى دى، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم تپوس وكړو نورو صحابه ؤ نه، د ابوبكر نه، عمر نه، نور صحابه ؤ نه رضي الله عنهم اجمعين، چې يا هلكه دا ذواليدين چې وائې دا خبره رشتيا ده، دوه ركعته شوي دي؟ نو هغوى تصديق وكړو چې هو حضرت دوه ركعته شوي دي، نو بيا پاڅيدو رسول الله صلى الله عليه وسلم، پاڅيدو و بناء يې وكړه، دوه ركعته يې نور وكړل، اوس هغه نورې خبرې به په حديث كې راځي، چې دا خبرې وشوې او بيا يې بناء څنګه وكړه، استيناف كول په كار وو، هغه ځان له د حديث تحقيق دى، دا يې ځاى نه دى، خو دلته كې دومره كرتې كافي دى، نو وائې الخ، اسم واحد من الصحابة، اقصرت الصلوة، فاعل قصرت، ام نسيت يا رسول الله، كل ذلك لم يكن هذا قول النبي صلى الله عليه وسلم، والمعنى نو اوس ګوره دلته كې كل د حرف نفي نه مخكې دى، او معمول د فعل منفي هم نه دى، نو **والمعنى لم يقع واحد من القصر والنسيان على شمول النفي وعمومه** سلب كلي شو، **بوجهين احدهما** يو په دې دواړه وجهينو كې دا دى چې د نحوي قانون دا دى چې ان جواب ام چې جواب د ام چې مخاطب كوي نو اما بتعيين احد الامرين او بنفيهما جميعاً د دواړو، لكه اوس ما تاته وويل چې هلكه ارجل في الدار ام امرءة؟، نو زما غرض په دې سوال كې دا دى، چې زما علم په دې شته دى چې په دې دار كې څوك نه څوك خو خامخا شته دي، په دې خوزه عالم يمه، خو تا نه تپوس كوم چې سړى دى كه ښځه ده، نو ته چې ما ته جواب راكوې نو دوه طريقو سره به راكوې، يا به ته وائې چې سړى دى ښځه نه ده، يا به وائې چې ښځه ده، سړى نه دى، په تعيين د احد الامرين سره به جواب كوې، يا به وائې چې نه ښځه ده نه سړى دى، ته په دې خپل علم كې خطاء شوى ئې، بلكه غوا ده يا ميخه دشته ده، نه ښځه ده او نه سړى دى، دا جواب ته نه شې راكولى چې سړى او ښځه دواړه دشته نشته دى، ګنې زه به پرك دلته كې مخ باندې تا نه داسې اوباسم چې دواړه دشته نه دي، دا خو زما هم علم وو، نو تا دا جواب ولې وكړو، بلكه زه وايم چې يو دى دواړه خو نشته دى خو اوس كوم يو دى ښځه ده او كه سړى دى، او بنفيهما جميعاً تخطئة للمستفهم نفي د جميع به

ماتن وائي **واما تاخيره** وائي تاخير د مسند اليه ولې كيږي؟ ويل **فلاقتضاء المقام** د وجې د غوښتو د مقام د تقديم المسند، تقديم د مسند لره، خكه مقام اوحال د مخاطب غواړي تقديم د مسند، نو مسند اليه خود بخود به مؤخر كيږي، وسيجئ كې دا واو استينافيه كوئ،سائل سوال وكړو چې يا هلكه مقام ولې غواړي تقديم د مسند؟ نو شارح جواب وكړو چې وسيجئ بيانه ويل زر دى چې را به شي بيان د تقديم د مسند په بحث د احوالو د مسند كې، متن دا دى هذا مقتضى الظاهر من الحال، نو معترض شبه وكړه چې هذا خو اسم اشاره مفرد لپاره ده، او دې سره تا اشاره كړې ده حذف، ذكر، اضمار او نورو ته، لكه تعريف، تنكير، اطلاق او تقيد، نو اسم اشاره او مشار اليه كې مطابقت رانغلى، نو شارح جواب وكړو چې هذا كې اشاره ده **ملاكرته ويل الذى ذكر** ويل دغه چې مخكې ذكر كړى شو، هغې ته مې په دې سره اشاره وكړه، نو اسم اشاره او مشار اليه كې مطابقت راغلى، نو اوس شبه راغله چې هلكه ما ذكر خو د دې خاى نه تر بسم الله پورې ټول الذي ذكر دى، نو هغې ته خو اشاره نه صحيح كيږي، نوشارح جواب وكړو چې نه نه، مِنْ، مراد هغه ذكر دى چې په دې احوال د مسند اليه كې كړم ذكر شوى وي، هغه دا دى چې **من الحذف والاضمار وغير ذلك** تعريف، تنكير، اطلاق او تقييد في المقامات المذكورة كله دغه ټول مقتضى الظاهر من الحال دا مقتضى ده د ظاهر الحال د مخاطب. چې د مخاطب ظاهر حال حذف د مسند اليه غوښتو، نو ته به حذف كوې، كه ذكر يې غوښتو نو ته به ذكر كوې، ضمير يې غوښتو، ضمير به راوړې، او وقد يخرج الكلام او وقد يُخرج هم صحيح دى، او كله كله خارجولى شي كلام على خلافه خلاف د مقتضى د ظاهر حال، يعنې د ظاهر الحال د مخاطب نه خلاف وي، معترض شبه وكړه چې هلكه چې د ظاهر حال د مخاطب خلاف شو، نو هغه خو غير فصيح كيږي، او مونږ په علم المعاني كې خو هغه كلام ذكر كوو چې هغه فصيح وي، نو شارح جواب وكړو چې **لاقتضاء الحال اياه** د وجې د غوښتلو د حال خفيه نه دى خلاف لره، مخاطب كې بل يو حال خفيه دى، هغه دا غواړي چې دا كلام خلاف د ظاهر حال نه ذكر كړو، نو مطابقت د كلام د حال د مخاطب سره عام دى چې د حال ظاهر سره مطابق وي او كه د حال خفيه سره وي، په دواړه طريقو باندې كلام فصيح كيږي، كه د ظاهر حال د مخاطب سره موافق وي نو هغه كلام ته هم فصيح ويلى شي او كه د مخاطب حال خفيه سره موافق وي يو كلام نو هغې ته هم فصيح ويلى شي، نو اخراج د كلام خلاف د ظاهر نه دى سره كلام د فصاحت نه نه اوځي.

نو دا تفصيل شو چې **فيوضع المضمر موضع المظهر** يو خاى كې ظاهر الحال د مخاطب غواړي چې دلته كې اسم ظاهر ذكر كړه، متكلم د هغه اسم ظاهر په خاى كې ضمير ذكر كړي لپاره د موافقت د خفي الحال، كقولهم لكه دا قول د عربو شو، نعم رجلاً زيد: نو دلته كې اوس خاى د اسم ظاهر وو، نعم الرجل زيد به كار وو، خو د نعم الرجل په خاى تا په نعم كې ضمير ذكر كړو، مكان نعم الرجل په خپله وائي، اوس دا

اعتراض دا وارد شو چي تبه تا ضمير په نعم کي راجع کړو مخصوص بالمدح ته نو په ک...
مخصوص بالمدح مفرد وي نو ضمير به مفرد ذکر کوي، که مخصوص بالمدح تثنيه وي نو نعما
وائي، که مخصوص بالمدح جمع وي نو نعموا به وائي، او دا خو چا نه دي ويلي، نو دي جواب کي
چي ويکون التزام افراد الضمير حيث لم يقل نعما په تثنيې سره چي مخصوص بالمدح تثنيه
ونعموا: په جمع کي چي مخصوص بالمدح جمع وي، دغه التزام د افراد د ضمير من خواص هذا الب...
لکونه من الافعال الجامدة الغير المسموعة بالتثنية والجمع، خکه چي دا نعم د افعالو جامدو نه
او مسموع نه دی تثنيه او جمعيت د دي، دا قيد ورسره ولګوئ چي الغير المسموعة...الخ نو دي
لګولو سره ما ليس خارج کړو، ليس باندي شبه وه، چي دا ليس هم د افعال جامدو نه دي، حال
هغي تثنيه او جمع خو راځي، ليسا ليسوا ليسوا سواءً نو ما تاسو ته قيد زياتي کړو چي دا او
جامده و غير مسموعة التثنية والجمع دی، او ليس د افعال جامده و نه دی خو مسموعة التثنية
والجمع دی، نو هغه شبه دفع شوه، نو اوس شارح فيحتمل وويل، نو فيحتمل په هغه خای کي و...
کيږي چي د هغي په مقابله کي بل احتمال وي، يا هلکه څوک چي مخصوص بالمدح مبتدا، مؤ
وائي نعم رجلاً او خبر مقدم وائي، نو يو تا په کي ذکر کړو چي فيحتمل عنده شو، نو تاسو وايئ چي
احتمال په هغي کي دا دی چي دا نعم کي ضمير دی مخصوص بالمدح ته راجع نه شي، بلکه راجع
دغه متعقل ذهني ته، په شان د قول اول، خکه هغي کي هم متعقل ذهني ته راجع وو، نو په دي
ثاني کي هم راجع شي متعقل ذهني ته، نو د دي احتمال مقابل دا احتمال دی، خو شارح دا احتمال
شرح کي نه دی ذکر کړی، خکه دغه احتمال ضعيف دی، خکه ضعيف دی چي بناء په دي باندي
قبيلي د وضع د ضمير مبهم نه شو په خای د ضمير معينه کي، نو مثال مطابق د ممثل سره نه شو،
ممثل خو دا وو چي وضع د ضمير په خای د اسم ظاهر کي، نو بناء په دي احتمال باندي وضع د ضمير
مبهمه وشو د ضمير معينه په خای، نو بيا مثال د ممثل سره نه مطابق کيږي، د دي وجي نه دا احتمال
ضعيف وو نو شارح دا په شرح کي نه دی ذکر کړی، دويم مثال بنائي د وضع د ضمير په خای د
ظاهر کي چي وقولهم هو شان دا دی زيد عالم او هي يا قصه دا ده چي زيد عالم، زيد عالم دواړو
ولګوئ، مکان الشان، دا په زيد هو عالم کي، او القصة دا په هي زيد عالم کي شو، د مثال مطابق
ممثل سره دی، خکه ويل فالاضمار ضمير راوړل په دي مثال کي ايضاً د نعم رجلاً په شان خلا
مقتضى الظاهر، خکه چي لعدم التقدم د وجي د عدم تقدم د مرجع د مسند اليه نه، نه مسند الي
مذکور دی او نه پري قرينه شته دی، په ذکر د هغي باندي.
واعلم نه شارح تمهيد ږدي اعتراض ته، نو فقوله پوري تمهيد دی او قوله نه اعتراض دی، دويم غرض
د شارح د واعلم نه دا دی چي تعريف کوي د ضمير شان او تعريف کوي د ضمير قصه، دريم غرض

شارح د واعلم نه دا دي چې فرق بيانوي په ما بين د ضمير شان او د ضمير قصه کې، نو واعلم ويل به شه چې ان الاستعمال مبني يا جار على ان ضمير الشان انما يؤنث اذا كان في الكلام كله چې وي په کلام مفسره کې، وروستو چې کوم کلام وي هغه مفسر وي، هغې کې مؤنث وي غير فضلة، هسې مؤنث چې هغه فضله نه وي بلکه عمده وي، په هغه وروستو کلام کې چې کلام مفسره ورته وائي هغې کې مؤنث وي چې يا به هغه مؤنث مسند اليه واقع شوی وی، لکه مثال نحو هي هند مليحة، او ضمير شان مذکور کيږي هله چې په دې جمله مفسره کې مذکر غير فضله وي لکه هو زيد عالم شو، نو زيد مسند اليه غير فضله دی، نو هو زيد عالم دا ضمير شان شو، نو اوس هغه اعتراض کوي چې دا مخکې چې ماتن ويلې دی نو دا هو زيد عالم صحيح دی، دا ضمير شان شو، خکه وروستو په جمله کې چې زيد عالم دی، مذکر غير فضله شته دی چې زيد دی، او هي زيد عالم نه صحيح کيږي، خکه چې هې قصې لپاره شرط دا دی چې هغه جمله کې مؤنث غير فضله وي، نو زيد خو مؤنث غير فضله نه دی، نو فقوله هي زيد عالم مجرد قياس خالي دی د سماع نه، چېرته سمع داسې نه ده شوې، او قياس دی په هي هند مليحة باندې قياس تا وکړو، او دا قياس قياس مع الفارق دي، خکه هي هند مليحة کې شرط د ضمير قصه شته دی، چې هغه په کلام کې مؤنث غير فضله دی، او هي زيد عالم کې شرط د ضمير قصه نشته دی چې پروستو کلام کې مؤنث غير فضله وي، هغه خو نشته دا شبه شارح وکړه او خان له لاړ، جواب يې نه دی کړی، جواب تاسو بهر نه کوئ، جواب بهر نه دا وکړئ چې په دې زيد کې دوه احتماليں دي، يا به زيد علّم به وي د مذکر لپاره، يا زيد علم به وي د مؤنث لپاره، زيد بنځې لره نوم کېښودو د سره هيڅ دنيا نه خرابيږي، نو اوس که زيد عَلَم وي د مذکر لپاره، لکه هو زيد عالم، نو دا صحيح شو، او که دغه زيد علم وي د يو مؤنثې لپاره هي زيد عالم نو صحيح دی، لګه ما اوس تاسو ته وويل جاني زيد نو ما تاسو نه تپوس وکړو چې دا څه ترکيب دی؟ نو تاسو به وايئ چې دا جاني فعل دی او نې مفعول دی او زيد فاعل دی شبه هلکه زيد خو مذکر دی او فعل دې مؤنث ذکر کړی دا ولې؟ نو دې جواب سره دا ترکيب هم حل شو، يعنې يا هلکه زيد د بنځې نوم دی، چې د بنځې نوم شو، نو جاءت فعل مؤنث ذکر کړې شو.

ما هداية النحو ويله، په دې شاليين کې زه وم، نو د خوازه خيلې نه بنکته باندې نومې يو کلی دی، هلته کې هغه وخت يو نحوي مولوي صاحب وو، نحوه کې مشهور وو نو زيارت په ورځ مونږه هلته کې جګړه ته لاړو، نو هغه مولوي صاحب سره مونږه جومات کې ملاؤ شو، نو ماته يې ويل چې هلکه ته څه سبقونه وائې؟ نو ما ويل زه هداية النحو وايم، نو ما نه يې تپوس وکړو چې کان زيد عالم څه ترکيب دی؟ نو تاته وايم ای شوپرا دا څه ترکيب دی! دلته شيخ صاحب يو طالب نه دا ترکيب تپوس وکړو...الخ دا په هداية النحو کې دی، که بهر وي نو زه به وو وايم...الخ

**ثم علل وضع المضمر** دې کې شارح اشاره کوي چې دا ليتمکن دليل دی لپاره د دويمې دعوی په متن
کې، ځکه چې متن کې دوه دعوی شوي يو دعوی دا چې کله کله کلام ظاهر شي خلاف د مقتضی د
ظاهر نه، دويم دا چې دا کلام موافق به وي د مقتضی د حال خفي سره، يعنې دا کلام مقتضی د حال
خفي به وي، نو دوه دعوی وې، هغې ته شارح بنکته په فلاتقتضانه اياه کې اشاره کړې وه، نو دا
مخکې مثال چې ذکر شو نو په هغې کې خلاف د مقتضی د ظاهر خو مونږ ته معلوم شو، نو اوس دا د
هغه دويمې دعوې اثبات کوي، چې دا د حال خفي سره څنګه موافق دی، نو شارح هغې ته اشاره وکړه
چې ثم علل نو يا غرض د شارح دا شو، يا غرض د شارح دفع د اعتراض کوي د ماتن نه، اعتراض دا
وارد شو چې هلکه د ماتن غرض مثال بيانول وو، خلاف دمقتضی د ظاهر لپاره، نو هغه مخکې په
دې باندې تام شو چې هو زيد عالم مکان الشان زيد عالم مکان القصة، باندې، نو اوس اشتغال د
ماتن په ليتمکن کې دا اشتغال بما لايعني شو نو شارح جواب وکړو چې اشتغال بما لايعني نه دی، دا
ماتن دليل وائي چې دا حال خفي سره موافق دی، او مقتضی د حال خفي دی، ثم علل اى الماتن وضع
المضمر موضع المظهر في البابين چې باب د نعم رجلاً دی او باب د هو زيد عالم او هي زيد عالم دی،
بقوله ليتمکن مايعقبه تعيين د مرجع کوي اى يعقب ذلك الضمير چې دا ه ضمير متصله، الضمير ته
راجع دی، اوس ای سره دفع د ابهام کوي، چې يا هلکه په دې عبارت کې خو ابهام دی، چې يعقب ذلك
الضمير نو که يعقب کې ضمير شي نو بيا ذلك الضمير مفعول شو، نو يعقب کې ضمير ما ته راجع
شو، وروستو به وي ما د دغه ضمير نه ترجمه نو بيا خو ترجمه صحيح شوه، ځکه ضمير مقدم شو، او
ما مؤخر شو، او دا هم احتمال دی چې يعقب کې ضمير نه وي، او د دې فاعل ذلك الضمير وي نو بيا
خو معنی دا شوه چې وروستو به وي دا ضمير، نو دا معنی خو خطاء ده، نو ابهام وو، نو شارح د تعيين
د ما هو المراد لپاره ای سيجئ سره ووېل، چې ذلك الضمير دا مفعول دی د يعقب لپاره، او يعقب کې
ضمير راجع دی، ما ته ای يجئ راځي به دغه ما علی عقبه په عقب د دې ضمير کې وروستو د دې
ضمير نه يعنې دغه ما به د ضمير نه وروستو راځي، نو وروستو د ضمير نه هغه تفسير دی، هغه مفسر
دی، او متقرر شي وما يعقبه د ضمير في ذهن السامع، شبه يا هلکه دا څنګه متقرر کيږي ويل لانه
ځکه چې دی سامع ای السامع اذا لم يفهم منه ای من الضمير معنیً څه معنی؟ ځکه نعم کې ډېر بنه
دی هغه، نو هغه څوك دی او څه شی دی؟ څه معنی يې فهم نه کړه، يا هو شان دا دی يا قصه دا ده، نو
څه شان او څه قصه ده؟ نو انتظره تعيين د مرجعګانو کوي ای انتظر السامع مايعقب الضمير انتظار
کوي د هغه ضمير چې هغه راځي وروستو د ضمير نه، او انتظار ځکه کوي ليفهم منه معنی نو
فيتمکن نو متقرر به شي دغه ما بعد وروده په ذهن د سامع کې فضل تمکن، ځکه به متقرر کيږي،
ويل لان المحصول بعد الطلب ځکه کوم شی چې حاصل کړی شوی وي پس د طلب نه اعز هغه ډېر ګران

دی، عارض او معروض نه دی، نو ده ځواب وکړو چې اګر چې دې کې تغاير په عنوان کې نشته خو په معنون کې شته دی، ځکه چې دا دويم عاقل معنی دا ده چې بمعنی کامل العقل متناه فيه ترجمه: نو ډير کرته يو عاقل هسې عاقل چې کامل وي په عقل کې او انتهاء ته رسيدلی وي په دې عقل کې اعيت کې يو شارح تفسير د لفظ غريبه کوي، چې اعيت په معنی د عجز سره دی يا اعيت په معنی ګران والي سره دی، دارنګه اشاره کوي شارح چې دا باب لازمي هم راځي او متعدي هم راځي، اعيته: نو متعدي شو بيا په معنی د اعجزت دی، او اعيت عليه: نو بيا لازمي شو بيا معنی د صعبت به معنی سره، نو دواړه معنی صحيح کيږي، اعيت مذاهبه: عاجزي شوی وي طرفونه د معاش د ده، يا ګران شوي وي لارې د ژوند د تيرولو د ده، چې غذا او مال دی، چې هغه ورسره نه وو، وجاهل جاهل تلقاه مرزوقاً. هذا الذي ترك الاوهام حائرة وصير العالم النحرير زنديقاً. نحرير معنی مراد بيانوي او المتقن ته وائي، متقن اسم صفتي دی موصوف غواړي: موصوف ورته کيږدی يعني عالم متقنه مرلو شو، من نحر الامور علماً اتقنها يعني دا ماخوذ دی د دې مقولې نه، نو علماً تميز شو د نحر نه امرو ته، نو حقيقت کې دا مفعول شو، نو تقدير دا شو من نحر علم الامور معنی اتقنها، ويل مضبوط کړي دی، دې عالم علم السائل، معنی دا محکم کړی دی، مغز ته رسيدلی دی، کنه ته رسيدلی دی، محکم کړی دی د زنديقاً تفسير کوي کافراً نافياً للصانع العدل الحکيم دهري ترينه جوړ شي، زنديق دهري ته وائي، ځکه هغه وائي چې که صانع عالم وي حکيم وی، نو بيا خو په کار دا ده چې عاقل سره په کروړونو زرګونو شی وی، مال ځکه هغه سره هنر شته دی چې عقل دی، او جاهل سره هيڅ نه وي خو معامله بالعکس شوه، نو د دې نه معلوميږي چې العدل الحکيم نشته دی، د ګردش د زمانې وجې دا کار هسې کيږي، دا مثال مطابق د ممثل سره دی، فقوله دا قول د ماتن چې هذا دی دا اشاره دی، الی حکم سابق او دا حکم سابقه غير محسوس دی، نو ځای د اسم اشاره نه وو، ځکه اسم اشاره مخکې مشار اليه محسوس غواړي، دا ځای د ضمير وو، هغه حکم سابقه غير محسوس دا دی چې کون العاقل محروماً والجاهل مرزوقاً دا کون محسوس نه دی، نو فکان القياس فيه الاضمار فعدل عدول وکړو شاعر الي اسم الاشارة لکمال العناية، د وجې د کمال مقصود مندی: د متکلم نه شاعر نه بتميزه: په جدا کولو د مسند اليه سره د اغيارو نه، د دې لپاره چې ليری السامعين ان هذا الشئ چې کون د عاقل محروم او د جاهل مرزوق چې دا شی المتميز المتعين دی، هو الذي له الحکم العجيب حکم عجيبه ثابت شوی دی، او حکم عجيبه دا دی چې جعل د اوهام حائرةً والعالم النحرير زنديقاً شبه نو يا هلکه دا حکم عجيبه به غير وي او دا مسند به غير وي، ويل نه نه، دا يو شی دی، چا چې غير ويلی دی هغه خطاء شوی دی، حکم عجيبه او مسند يو شی دی، فالحکم البديع هو الذي اثبت للمسند اليه هغه مسند اليه چې المعبر عنه باسم الاشارة نو دا دغه مسند هم شو، جعل د اوهام حائرة

ظاهرة يا هذه مسلمة عند الكل، دا ظاهره ده، مسلمه ده نو ته تري څنګه انکار کوي، يا دا مسلم عند الکل ده نو ته يې څنګه نه مني؟ وعليه تعيين د مرجع کوي اى وعلى وضع اسم الاشارة موضع المضمر لادعاء کمال الظهور خو من غير هذا الباب اى غير باب المسند اليه، دامثال نه شو، نظير شو، شعر دا قول د شاعر دى تعاللت شبه يا هلکه تعاللت دا معنى چې ته علت ظاهروى، نو د دې څه معنى علت خو مؤثر في المعلول ته وائي، هغه څنګه ظاهر وي، دا خو نه صحيح کيږي، دى جواب کوي اى اظهرت العلة والمرض ويل اى محبوبه چې ته زما خوا ته راشي نو ته علت ظاهروى او مرض، چې زه بيماره يم، مره شومه، ويل ستا بل څه مقصد نه دى واقع کې ته نه بيماره يې او نه مره کيږې. کي اشجى دا ته د دې لپاره کوي چې ته ما خفه کړي، اى احزن تفسير د غير مشهور بالمشهور سره کوي تحقيق لغوي کوي په اشجى کې، دا رنګه تحقيق صرفي کوي من شجي بالکسر نو په معنى د ص حزيناً سره دى، يعني صار فلان حزيناً لامن شجى بالعظم بالفتح يعني شجى فلان معنى، هلوکي نښتي وو په مرۍ د فلانکي کې، بمعنى نشب في حلقه

واقعه د شيخ الحديث مولانا فضل محمد رحمة الله چې زه حج ته لاړم سره د خپلې اهلي نه او د مکې نه مدينې ته تلو نو بدر کې زمونږ ګاډې ودريدو، نو زه راکوز شوم چې د دې بدر چکر وکرم وګورم، نو هلته کې يو هوټل وو، د هغه هوټل مخې ته کټونه وو زه په کې کيناستم نو هوټل والاويل يو مهى راوړ او زما مخې ته يې کيښودو، نو اوس که دا وايم چې هلکه زه خورم، زما شوق ويل نه کيدو، نو بيا به هوټل والاوائي چې دا سپور سرې دى پيسې نه شي ورکولى او که خورم، نو زما طبيعت نه منله، خو ويل بهر حال ما شروع کړه، يو څو نورې ما وکړې نو يو لاشه راغله دې خاى کې زما ونښته، مرې کې حلق کې، نو ويل ما څه زور وکړو خو هغه شى ونه وتلو، زه پاڅيدم هغه مهى ما پريښودو، او هغه هوټل والاته ما پيسې ورکړې، ګاډې ته ايسته ودريدم خو هغه شى اووځې نه، به هر حال ويل ونښت شروع شوه. هغه شى دننه زما په دې مرې کې ونښته، او زما هغه تبر هم پورې نه حيران دې چې دا څه مصيبت کې لاړو، ويل وينه شروع شوه، ويل دې مينځ کې ما دوه رکعته نفل وکړو او الله ته ما سوال وکړو چې الله د دې مصيبت نه ما خلاص کړي، ويل ما زور وکړو هغه شى پورې وغورځيدلو، چې وغورځيدلو نو د هغې نه پس په کې وينه شروع شوه ځکه زخم په کې وشو، نو مونږ سره توليه رومال وو نو هغه ما ونيول او هغه وينه په مخه ځي، او رومال او توليه خرابيږي، داسې لاړو تر مدينې ويل دا وينه روانه ده، او مرى زما خرابه شوه، او څه شى په کې تيريږي نه، بيا هلته کې مدينه کې ويل زما شاګرد وو هغه مونږ ته دعوت راکړو، نو هلته کې مونږ لاړو، نو هغه څه حلوه ملوه پخه کړه هغه مي وخوړله، نو هغه قيصه دا ده چې نشب في حلقه

وتربية المهابة او د پاره د زياتولو د يرې، مهابة هم يرې التمكن، في ضمير السامع په زړه د سامع كې ادخال الروع او تربيت المهابة دا خو يو شى دى، نو ته وائې، دبدبې ته وائي، معترض شبه وكړه چې وهذا داتربيت المهابة پس د ذكر د مهابة پس د ادخال الروع نه مستدرك شو، شارح جواب وكړو چې كالتاكيد يې وويل عين تاكيد نه دى ادخال الروع نه كالتاكيد ويل دا د ادخال الروع لپاره تاكيد دى، نو تاكيد لفظي خو تكرار دلفظ دا ولې؟ ويل خكه چې عين تاكيد خو دوه قسمه دى لفظي او معنوي، هغه هم نشته دى، ها البته اول ته وائي، هغه خو نشته دى، معنوي خو په الفاظ مخصوصه ؤ سره وي، خكه چې ادخال الروع او تربيت المهابة معنى يوه ده كالتاكيد دى، په دې كې چې تاكيد معنوي دى، او تقوية داعي المامور، يا وضع د اسم لكه جاني زيد زيد لفظ هم يو دى او معنى يې هم يوه ده، يعنې لپاره د قوي والي قول الشيخ قوت والى د ظاهر كولى شې په خاى د ضمير كې لپاره د تقويت، نو چې هغه قوي دى نو مامور د هغه خلاف نه شي كولى، مامور به هغه هغه داعي د مامور لره، مع التربية قول الخلفاء مامور كوي، د دواړو لپاره مثال ومثالهما اى مثال للتقوية وادخال الروع امير المؤمنين يامرك بكذا، مكان امرك بكذا، خكه په دې لفظ د ابوبكر رضي الله تعالى عنه ووائې او يره پرې راځي، دارنګه امير امير المـؤمنين كې يره او رعب دى هغه سړى پورې بيا ريږي، نو مامور د هغه خلاف نه شي كولى، المؤمنين يې چې وويل نو په دې كې تقويت د داعي د مامور دى، لتقوية داعي هغه مامور به فوراً هغه ادا كوي، وعليه او په دې خاى د مضمر كې وضع د مظهر فاذا عزمت فتوكل المامور خو من غيره نظير دى، من غير باب المسند اليه دا قول د الله تعالى دى على الله يعني تاعزم مصمم وكړو پس د مشورې نه او پس د عمل كولو نه په يو رايې باندې، چې دا كوم نو بيا شكوك مه پيدا كوه، بيا تپوسونه مه كوه چې دا به څنګه وشي، دا به څنګه وشي، څه به اوشي، څه چې الله مقرر كړي وي هغه به اوشي، فتوكل على الله عاقبت او انجام الله ته وسپاره، لن يصيبنا الا ما كتب الله لنا به اوشي، دې كې خو علې په كار وو، چې فتوكل على الله خو ولې ويل چې فتوكل على الله لما في لفظ الله من تقوية الداعي الى التوكل عليه يعني چې تاسو خان سپارى، نو په الله باندې سپارى، الله مستجمع دى جميع صفات كماليه ؤ لره، او چا چې خان وسپارلو په هغه ذات چې هغه مستجمع وي جميع صفات كماليه ؤ لپاره، نو هغه ذليل كيداى او مُهان كيداى نه شي، للدلالة د وجې د دلالت د لفظ د الله نه على ذات موصوفة بصفات كاملة من القدرة وغيرها نو د دې نه مونږ ته دا سبق ميلاو شو چې مشوره كوئ په هر كار كې، ليكن په يو رايې باندې د تولې شورى رابې راغله، بيا شكوك او وهمونه په كې مه جوړوئ، توكل كوئ په الله باندې، دا وايئ چې د دې انجام به هغه را اوخي چې الله څه مقرر كړي وي

د عمرو نه تعبير شوی دی په غائب سره پس د تعبير نه په مخکې مخاطب سره، نو ستاسو تعريف وپ التفات پرې صادقيږي او ديته څوك التفات نه وائي، دارنګه په دې قول د شاعر کې

نحن اللذون صبحوا الصباح ‌‌‌ يوم النخيل غارة ملحاحا

ويل مونږ هغه خلک يو چې صبا په وخت کې حمله کوو، الصباح، صبا، مفعول مطلق يې کوی. يوم النخيل غارةً ملحاحا، په هغه ورځ د نخيل کې، نخيل د ځای نوم دی، خو مونږ چې حمله کوو نو غارا لوټ کوو. ملحاحا: معنی کامله حمله کوو، نو اوس دلته کې اللذون کې تعبير شوی دی په غائب سره پس د تکلم نه چې نحن دی، نو ديته التفات ووايه، او ديته تاسو التفات نه وايئ، او تعريف پرې صادقيږي، بل مثال واياك نستعين واهدنا، وانعمت، ديته هم التفات وايئ، ولې؟ څکه مخکې الحمد لله، الى مالك يوم الدين غائب وو، او اياك نستعين او اهدنا او انعمت دا ټول خطاب دی، حالانکه ديته څوك التفات نه وائي، "التفات خو صرف په اياك نعبد کې دی، او دا وروستو اياك نستعين او اهدنا او انعمت ټول په موافق باندې چليدلی، نو جمهورو مخکې نه جواب ورکولو چې شرط په کې شته بشرط ان يکون التعبير الثاني على خلاف ما يقتضيه الظاهر ظاهر الكلام. يترقبه او انتظار کوي د تعبير ثاني سامع، او ويل ولابد من هذا القيد، ويل دا قيد ضروري دی، ولې څکه که دا قيد کې نه دي، نو بيا تعريف د التفات مانع د دخول د غير نه نه ګرځي، څکه ليخرج مثل قولنا انا زيد وانت عمرو اوس دا تعبير ثاني خلاف د مقتضی د ظاهر نه دی، او خلاف د وما يترقب د سامع نه دی، څکه متکلم چې د ځان نه خبر ورکوي نو په اسم ظاهر سره به ورکوي کنه، متکلم د ځان نه خبر په ضمير سره نه شي ورکولی، دارنګه يو مخاطب چې خبر ورکوي د يو مخاطب نه نو په اسم ظاهر او غائب سره ورکوي، دارنګه نحن اللذون صبحوا الصباح نحن: متکلم دی، نو متکلم چې خبر ورکوي نو په اسم ظاهر سره ورکوي، او موصول سره د صلې نه اسم ظاهر دی، دارنګه وقوله تعالى واياك نستعين، اهدنا وانعمت، فان الالتفات انما هو في اياك نعبد والباقي جار على اسلوبه نو دا باقي خلاف د مقتضی د ظاهر نه شو، شارح يو بل زاعم بابا باندې رد کوي، ويل ومن زعم ان في مثل يايها الذين امنوا التفاتاً دی، څکه چې يايها الذين منادی ده، او منادی هو المطلوب اقباله، دی نو خطاب شو، نو دلته کې مقتضی د ظاهر امنتم وو، نو التفات راغلی خطاب نه غيبت ته والقياس امنتم دی، شارح وويل فقد سها ويل په تحقيق سره دغه سړی خطاء شوی دی، وجه دا ده علي علي په معنی د لام اجليه سره کوی، لاجل ما يشهد به کتب النحو د وجې د هغه نه چې ګواهي کوي په دې سهوې باندې کتب د نحوې، څکه الذين موصول دی، او امنوا صله ده، او موصول سره د صلې نه غائب وي، هغه چيرته خطاب نه وي، ها جواب د منادی مخاطب دی، خطاب دی چې يايها الذين امنوا اذكروا نعمت الله، نو اذكروا نعمت الله جواب د منادی شو، يا زيد قم، يا عمرو اقعد، جواب د

چې دې صحيح طور باندې قره علينا الترمذي قره علينا ، دوی ته هيڅ نه راتله ، نو چې هيڅ نه راتلل
دا ورته زه ولې هسې وليکم ، او دا محدثين ظلم کوي چې يو هلك نه پوهيږي او هغه ته ليکي قره علينا
الامامين الهمامين الصحيح للبخاري والصحيح لمسلم ، هلکه قره علينا ، تا استعداد معلوم کړی دی
چې د دې د کوم استعداد د قبيلې دې ، لفظي او معنوي تصحيح د احاديثو کولی شي؟ د نفاحت طبيو
د رسول الله صلى الله عليه وسلم پوره حفاظت کول په کار دي ، د دې لپاره ملا ترل په کار دي ، او دا
مقصود اصلي گرځول په کار دي . من کذب علي متعمداً فليتبوا مقعده من النار لاندې مرفت ليکي
چې دغه وعيد چې څنگه په معنوي غلطی کې دی نو دغسې په لفظي کې هم دی ، چې قصداً پيغمبر
صلى الله عليه وسلم جر لوستلی وي او ته رفع او نصب کوي

نو ما تاسو ته ويل چې د محققينو مسلك دا دی چې يو خو په دې کې التفات راغلی ، نو اوس بيا نول
کلام په تکلم باندې جاري کول په کار وو ، نو واليه ارجع په کار وو د واليه ترجعون په خای ، بيا د تکلم
نه التفات خطاب ته راغلی . نو دوه التفاتونه شول ، نو دا التفات د سکاکي په مسلك باندې هم شول
د جمهورو په مسلك باندې هم ، د سکاکي په مذهب باندې دا اول وشو ، او د جمهورو او سکاکي دواړو
په نزد دا دويم وشو ، نو جمع راغله ، نو خکه واني چې والتحقيق چې ان المراد دا وو ما لکم لا
تعبدون الخ ، لكن عبر عنهم بطريق التكلم ، ليکن تعبير کړی صاحب ياسين ، د دې قوم نه په طريقې
د تکلم سره ، کان مقتضى ظاهر السوق اجراء باقي الكلام على ذلك الطريق ، فعدل عنه الى طريق
الخطاب . فيكون التفاتا على المذهبين خو التفاتاً على المذهبين دا معنی چې سکاکي په مذهب
باندې فقط هم التفات راغلی او د جمهورو او سکاکي دواړو په نزد باندې هم التفات راغلی ، او په اول
طريقې کې د سکاکي او د جمهورو دواړو باندې التفات راتلل . او فقط د سکاکي په مذهب التفات نه
راتلو . گني نو هسې شبه راخي . چې د مشهورينو په طريقه باندې هم التفات على المذهبين دی کنه ،
خو دا اول التفات چې محققينو وويل ، دا د سکاکي په مذهب باندې دی ، او د مشهورو په مسلك
باندې نه دی . خکه هغوی مخکې تعبير شرط واني

**ومثال الالتفات من التكلم الى الغيبة** انا اعطيناك الكوثر فصل لربك وانحر ، مثال مطابق د ممثل سره دی د
مقتضى الظاهر ، ومثال الالتفات من الخطاب الى التكلم قول الشاعر شعر ، طحا بك قلب ، دا تفسير
د غير مشهور کوي په مشهور سره ای ذهب بك ، او بك کې دا باء زائده دی ، ويوړو تا لره يو زړه **في
الحسان طروب** د شارح د ومقتضى سره يو غرض دا دی ، چې دا في الحسان وروستو طروب پورې متعلق
دی . هغې ته شارح اشاره وکړه ومعنى طروب في الحسان سره ، دويم غرض يې دا دی چې في الحسان
کې حذف د مضاف دی . هغې ته شارح اشاره وکړه . چې ان له طرباً في طلب الحسان چې د دې نفس د
سړي لپاره طلب وو په طرف د خوبرويانو کې . دريم غرض دشارح دا دی تفسير د غير مشهور کوي په

خپلې سره . بشداند فراقها ، با ، په کې محذوفه کړئ. نو بنا ، په دې باندې بيا دغه بو التفات دی. ..
نه دې بيا . يو دی د خطاب نه تکلم ته . او على سره په دې دويم روايت کې دويم احتمال بيانوي
على او يا بناء دی په دې باندې چې انه خطاب القلب چې دې تکلفني کې چې دا د مخاطب صيغه ...
او خطاب په دې کې قلب ته شي نو فيكون التفاتا اخر من الغيبة الى الخطاب نو بيا دوه التفات شو ...
دې دويم روايت کې په دې دويم احتمال باندې. وقد شط تفسير د غير مشهور په مشهور سره کوي
اي بعد وليها اي قربها . وبل يقينا لرې شوی دی قرب د دې ليلى. ليلى هغه ولاس ته نه راځي
وعادت عواد بيننا وخطوب قال المرزوقي سره غرض د شارح دنقل د قول د امام مرزوقي نه دا دی په
دې عادت کې تحقيق صيغي کوي، دارنګه په عادت کې تحقيق مادي کوي. دارنګه په دې کې
تحقيق معنوي کوي وقال المرزوقي چې امام اللغة دی عادت. يجوز ان يكون فاعلت دباب مفاعله
نو عادت اصل کې عاودت وو ، نو واو بدل په الف. بيا الفونو کې التقاء ساکنين راغله. نو الف حذف
شو نو عادت ترې جوړ شوو نو دا من المعاداة دی. عداوة د دشمنۍ نه شو. نو صيغه او معنی يې بيان
کړه. اوس د شعر معنى دا شوه چې كان الصوارف ګويا کـه عوارض والخطوب او موانع صارف
تعادبه. دشمني کوي د دې شاعر سره د ليلى وصل ته يې نه پريدي. عوارض و عوائق و امور عظامه
خطوب امور عظامو ته ويلی کيږي. هغه حائل شوی دی. دشمني کوي د ليلى وصل ته نه پريږدي.
ويجوز بل احتمال بيانوي يجوز ان يكون من عادي يعود چې دا عادت د عادت يعود نه شي. نو بنا په
دې باندې ددې وزن فعلت شو. نو اصل کې دا عودت وو . په شان د قولت. نو بيا واو په الف بدل شو
خکه واو متحرک ما قبل مفتوح او را بالف کردند تا عودت ګشت عادت شد بيا معنى دا شوه ای
عادت عواد چې بيا په معنى د رجوع سره شو. را واپس شو هغه عوائق. عوارض، كانت چې وو دغه
عوارض چې تحول بيننا واقع کيدل زمونږ په مينځ کې الى ما هغه شي ته راجع شو كانت عليه يعنې
مخکې هم وصال نه وو اوس د دې عوائقو د وجې نه هم وصال نشته. وبل الان كما كان په شان يم،
يعني اوس خو څه اميد وو د وصال خو دغه عوائقو ماته ليلى نه بنودله، وقال الشيخ خو دې ليلى ماته
خان نه بنودلو نو هغه عوائقو راجع کړو وصال ما كان ته ما كان عدم وصال وو. نو اوس هم عدم وصال
شو دی . و مثال الالتفات من الخطاب الى الغيبة قوله تعالى حتى اذا كنتم في الفلك وجرين بهم او و
القياس بكم. و مثال الالتفات من الغيبة الى التكلم قوله تعالى والله الذي ارسل الرياح فتثير سحابا
فسقنه ومقتضى الظاهر ساقه. وساقه تفسير کوي ای ساق الله ذلك السحاب واجراه او بوځي دې لره.
اى بلا ميت. و مثال الالتفات من الغيبة الى الخطاب. قوله تعالى مالك يوم الدين اياك نعبد
ومقتضى الظاهر اياه. ووجهه دا ده. شبه هلكه زمونږ کلام خو په نفس التفات کې نه وو. حسن د
التفات کې وو. نو شارح جواب وکړو چې دلته کې حذف د مضاف دی. ای وجه حسن الالتفات. نو

هلكه تربيت هله كيږي چې اسباب د تربيت پيدا كړي. الرحمن الرحيم، اى الله محسن او منعم هم ند
ني. اسباب د تربيت هم ته پيدا كوي، بيره صرف په دنيا كې الله موصوف شوى دى صفات كمالية
سره؟ نه نه اخرت ته لاړ نو بل صفت، مالك يوم الدين، د اخرت فيصلې هم ستا لاس كې دي لمن الملك
اليوم لله الواحد القهار څوك به تلفظ نه شي كولى، نو وكلما اجرى عليه په دې مستحق بالحمد باندې
صفت من تلك الصفات العظام قوي ذلك المحرك چې صفت سيوا كړى نو دا محرك قوى كيږي له دې
وجې نه مدارك ليكي هو الخالق ابتداء والمربي بقاء والغافر انتهاء، الرحمن الرحيم قوي ذلك المحرك الى
ان يؤل الامر الى خاتمتها اى خاتمة تلك الصفات. يعني مالك يوم الدين، دا سې خاتمة المفيدة چې فائده
كوونكې ده چې انه اى ذلك الحقيق بالحمد دنيا كې څه كوى؟ مالك الامر كله يوم الجزاء الامر كله كې
يې اشاره وكړه چې مفعول به محذوف ده. او مالك يوم الدين كې اضافت د اسم فاعل مفعول فيه ته
شوى دى. ويل لانه اى الشان. اضيف مالك الى يوم الدين، على طريق الاتساع، اتساع ديته واني چې
مفعول به ته حذف كوي، او مفعول فيه ته قائم كړى په مقام د مفعول به كې يعني په لفظ كې هغه
مفعول فيه قائم مقام د مفعول به وي او په معنى كې ترجمه د مفعول فيه به كوي، يا مفعول فيه به
مفعول فيه كوي، يعني هم هغه به يې ګرځوي والمعنى على الظرفية نو تقدير دا شو چې اى مالك في
يوم الدين والمفعول به محذوف دي چې الامر كله دى، او مفعول حذف شوى دى، نكته دا ده دلالة
على التعميم معترض شبه وكړه چې تعميم خو په دې صيغه كې دى نه په حذف كې چې الإمر كله، نو
ناكت جوابا ليكلى مع الاختصار، چې هلكه ذكر كې تعميم وو خو اختصار نه وو، او حذف كې تعميم
راغلى سره د اختصار نه، نو فحينئذ يوجب ذلك المحرك لتناهيه في القوة الاقبال عليه ويل هلكه چې
دا سې ذات وي نو حاضر ناظر وي. نو دننه كې دى. نو راځه ورسره خطاب وكړه خبرې وكړه. مشغولا
ورسره وكړه. اى اقبال العبد على ذلك الحقيق بالحمد الف لام عوض د مضاف اليه نه شو. والخطاب
بتخصيصه بغاية الخضوع اياك نعبد والاستعانة واياك نستعين او مفعول ثاني د نستعين. في
المهمات كلها. فالباء في قوله بتخصيصه متعلق بالخطاب. شبه يا هلكه چيرته باء صله د خطاب
راځي؟ ويل هو يقال خاطبته بالدعاء اذا دعوت له مواجهة كله چې ته را اوبلې يا دعا ورته وكړې الخ.
اى دعوت من الدعوة او الدعاء معترض شبه وكړه چې تا په تفسير د عبارة كې دا غاية الخضوع د كوم
خاى نه راوسته. ويل وغاية الخضوع هو معنى العبادة شارح ته چا وويل دا مهمات تا د كوم خاى نه
راوويسه. ويل وعموم المهمات مستفاد من حذف مفعول نستعين خكه مفعول ثاني د نستعين
محذوف دى. شبه يا هلكه تخصيص تا د كوم خاى نه راوويستلو؟ بتخصيصه. ويل والتخصيص
مستفاد من تقديم المفعول، د اياك نعبد واياك نستعين، اوس شارح واني چې لطيفة دلته كې په حمد
كې دا شوه د التفات چې فاللطيفة المختصة بها هي موقع هذا الالتفات هي ان فيه تنبيها من الله. على ان العبد اذا

ولما انجر الكلام د دې نه غرض د شارح يو ربط بيانوي د دې راتلونكي عبارت د ما قبل سره. ...
داسې بيانوي چې ما قبل كې امثله د خلاف د مقتضى د ظاهر وو. خو د مسند اليه نه. او په ما ...
كې امثله د خلاف د مقتضى د ظاهر دې خو د غير مسند اليه نه. نو مناسبت دا شو. چې دې دواړو ...
اخراج د كلام شوى دى خلاف د مقتضى د ظاهر نه. نو يو يې ربط مقصد شو. دويم غرض د شارح ...
دفع د اعتراض كوي د ماتن نه. اعتراض دا وارد شو چې يا هلكه زمونږ بحث خو په احوالو د مسند اليه ...
كې وو. نو نا شروع وكړه په احوالو د غير مسند اليه كې نو دا خو خروج د بحث نه راغلى. او خروج ...
بحث نه لايجوز دى. نو شارح جواب وكړو چې تيك ده زمونږ بحث په احوالو د مسند اليه كې وو. نو ...
ماتن دا راتلونكى بحث ذكر كړې دى. طرداً للباب. هسې د شوق او ذوق د وجې نه. او اشاره يې دېته ...
وكړه چې څنګه خلاف د مقتضى د ظاهر نه په مسند اليه كې كيږي نو داسې په غير مسند اليه كې هم ...
كيږي. او ما من علم الاوقد يبحث فيه عن اشياء بالتبع استطراداً خو ما تاسو ته د دې ترجمه وكړو ...
چې بالتبع. مسلم الثبوت كې تاسو ته وائي، نو ماتن هسې درباقي صيغ نيز حذف كردند طرداً للباب ...
د قبيلې نه شو. نو وائي ولما انجر الكلام ويل هر كله چې راښكودلى شو كلام اى خلاف مقتضى ...
الظاهر خو په مسند اليه كې نو اورد اى الماتن عدة اقسام منه. اى من خلاف مقتضى الظاهر وان لم ...
يكن من مباحث المسند اليه خو دا يې طرداً للباب راوړې دى. نو فقال **ومن خلاف المقتضى** شارح ورسره ...
لګوي اى مقتضى الظاهر. دې كې اشاره كوي چې المقتضى كې الف لام عوض دى د مضاف اليه نه
يا الف لام عهدي خارجي دى مراد ترينه خلاف د مقتضى د ظاهر الحال نه ده. تلقى المخاطب. شبه يا
هلكه دا تلقى فعل دى كه مصدر دى. پته ونه لګيده؟ او بيا چې مصدر شو نو اضافت فاعل ته دى بيا
او كه مفعول ته دى؟ شارح د دواړو تعيين كوي اضافة المصدر يا هلكه دا تلقى مصدر دى فعل نه
دى. او دويم ته يې اشاره وكړه الى المفعول اضافة د مصدر مفعول ته دى فاعل ته نه دى. سائل سوال
وكړو چې يا هلكه بيا فاعل چيرته لاړه شارح الي سره جواب كوي چې فاعل محذوف دى، اى تلقى
المتكلم المخاطب. غورخول د متكلم دى مخاطب ته. غورخوي بغير ما يترقبه غير د هغه كلام نه
چې انتظار كوي مخاطب د دې كلام. والباء سره غرض د شارح دا دى چې تعيين مصداقي د باء كوي،
خكه باء په ديرو معانيو سره راځي. چې يا هلكه دا باء د څه لپاره ده؟ دويم غرض د شارح دفع د
اعتراض كوي. اعتراض پرې دا وارد شو. چې يا هلكه نحوي قانون دا دى چې د يو فعل تعدد. د يو
فعل پورې متعلق كول دوه حرفين جارين چې د جنس واحده نه وي. لفظاً او معناً نو دا لايجوز دى، نو
دلته كې تا دوه حرفين جارين لفظاً او معناً متعلق كړې دي په يو فعل پورې چې تلقى دى، خكه چې
بغير هم متعلق شو په تلقى پورې او وروستو بحمل كلامه هم متعلق شو په تلقى پورې. نو دا حرفين
جارين چې با. ده د جنس واحده نه دى لفظاً او معناً هم. نو تعلق يو شي پورې دى. په شريعت نحوي

دې دا داني زر توزې کړي. او دا بره د دې غنچك خاى نه راپريکړي او د انګورو دا اوبه په موټر باندې اوڅکې. نو زما مراد دغه وو ما تا ته خيرې نه دي کړي. نو حجاج ووېل توقې مه کوه لاحملنك على الادهم نو ته به هتکړى واچوم جيل ته به دې وغورځوم. قبعثري ورته ووېل مثل الامير يحمل على الادهم والاشهب وېل چې ستا غوندې بادشاه وي نو هغه په اسپي باندې سرى سور وي. ما په برګې اسپي باندې سور کړه. ستا خوښه ده

نو اوس ګوره دلته کې حجاج متکلم شو او قبعثري مخاطب وو. نو حجاج ورته ووېل چې لاحملنك على الادهم نو د هغه مقصد دا وو چې دې به ما ته څه سفارش کوي. منت زاري به کوي چې ما خلاص کړه. هغه مخکې نه ووېل چې بادشاه صاحب تا سره دا مناسب نه دى چې ته خلکو ته هتکړې غورځوې. تا سره مناسب دا ده چې برګې اسپي باندې سور کړه. او په بازار کې ما باندې چکر ووهه. حجاج ورته ووېل وېلك انه لحديد د ادهم نه زما اوسپنه مراد ده. هتکړې د اوسپنې وي. او اسپه مې مراد نه ده. نو قبعثري ووېل چې ان يكون حديداً خير من ان يكون بليداً وېل اوسپنه کېدل بنه دي د کم عقل کېدو نه. نه ما ته ډېر کم عقل ښکاري نو حجاج نوکرانو ته ووېل چې دى په اوښ باندې سور کړئ. او په بازار کې يې وګرځوئ او ونې شرموئ. چې په اوښ باندې يې سور کړو نو ووېل سبحن الذي سخرلنا هذا وما كنا له مقرنين بيا حجاج ووېل چې راکوز يې کړئ. او په زمکه باندې يې پرمخ وغورځوئ. او دپاسه پرې خېژئ. هغه ووېل منها خلقناكم ومنها نعيدكم ومنها نخرجكم تارة اخرى نو بعضې رواياتو کې تاريخي رواياتو چې حجاج ووېل چې دې پريدئ ده سره سرته نه رسي، او د بيت المال نه يې ورته ډېر انعام ورکړو چې وېل خه. نو وائي وقد قال الحجاج له اى للقبعثري حال كونه الحجاج. کې يې اشاره وکړه چې دا متوعداً حال دى د حجاج نه. يروونکى وو اياه دى قبعثري لره چې لاحملنك على الادهم الادهم تفسير د غير مشهور کوي يعني القيد هتکړه. هذا مقول قول الحجاج. نو حجاج اوس متکلم شو او قبعثري مخاطب دى. نو حجاج وائي چې دي به اوس ما ته څه سفارشې زاولي څه محنت زاري به کوي. په دې طمع باندې دى، نو ده ورته ووېل مثل الامير يحمل على الادهم والاشهب هذا القول قول القبعثري. نو قبعثري چې مخاطب وو فابرز و عيد الحجاج في معرض الوعد بشارة کې وتلقاه او دې متوجه شو د دې حجاج سره بغير ما يترقب حجاج خو د دې انتظار کولو چې دي به اوس ما ته سفارشې راولي محنت زاري به کوي بان حمل الادهم في كلامه اى كلام الحجاج على الفرس الادهم. فرس ادهم د ته وائي. چې الذي غلب سواده حتى ذهب البياض. وضم اليه الاشهب، اى الذي غلبه بياضه. نو چې سواد او بياض دواړه غالب شي هغې ته برګ وائي. ومراد الحجاج انما هو القيد فتنبه اى قبعثري چې مخاطب وو متکلم ته چې حجاج دى على ان الحمل على الفرس الادهم هو الاولى بان يقصده الامير. اى من كان مثل الامير في السلطان اى الغلبة تفسير کوي، د غير مشهور په مشهور سره.

جواب داسې وکړو چې فاجيبوا الصحابة ببيان الغرض من هذا الاختلاف چې د غرض تپوس وکړئ چې ستاسو د حالت سره مناسب دا دی چې په دې کې د الله څه حکمت دی، او څه غرض دی، وهو اوغرض دا دی چې ان الاهلة چې مياشتي **بحسب ذلك الاختلاف معالم** علامات لري يوقت بها الناس تعيين کوي په دې سره خلک د خپلو کارونو من المزارع والمتاجر خکه د هر تجارت خپل خپل وخت وي موسم وي. هر شی هر وخت کې نه خرڅيږي ومحال الديون اووخت د کوزيدو د قرضونو والصوم وغير ذلك لکه عدة شو او موده د حمل د ښځې شو ومعالم الحج ای اوقات الحج يعرف بها وقته خکه دا په نمر سره نه معلوميږي دا په سپوږمۍ سره معلوميږي، نو شرعي حساب د سپوږمۍ حساب دی، د نمر حساب غير شرعي دی، نوشرعي حساب سن هجري شو او دا بل غير شرعي دی، دا انګريزي حساب. وذلك ويل دغه جواب للتنبيه لپاره د خبرداري ورکولو دی صحابه ؤ ته على ان الاولى والاليق بحالهم ان يسالوا عن ذلك دغه غرض د حکمت نه، **ولايسئلوا عن السبب، لانهم اى الصحابة رضي الله عنهم ليسوا ممن يطلعون بسهولة على دقائق علم الهيئة** علم الرياضي، معترض راغلی شبه يې وکړه چې دا خو سوء ادب راغله د صحابه ؤ په باره کې، حالانکه صحابه ټول اصحاب د قوة قدس وو، د علم هيئت او د رياضي مسئله ورته وړاندې شوه نو هغې هسې حل کوله. د منطق ورته وړاندې شوه نو هغې هسې حل کوله، نو تا وويل چې صحابه په اسانۍ نه خبريدل، بې د ونيلو نه هسې نه خبريدل، نوشارح جواب وکړو چې ولايتعلق لهم به غرض يا هلکه هغوی خبريدل، هغوی ټول اصحاب د قوة قدس وو، ليکن هغوی دقائق د علم هيئت سره څه کول. دقائقو د علم هيئت سره څه مسئله شرعي نه ثابتيدله، يا څه ضرورت ورته نه کيدو، نو هغوی ويل د دې سره مونږ څه کوو، ويل پريږده دا بيکاره شی دی، دويم مثال د مهم. کقوله تعالى يسئلونك ماذا ينفقون څومره شی خرچ کړي، ډير ورکوو که نه لږ قل ما انفقتم من خير فللوالدين والاقربين واليتامى والمساكين وابن السبيل دا مثال مطابق د ممثل سره دی، خکه سالوا عن بيان ما ينفقون د بيان د مقدار هغه نه چې دوی خرچ کوي، چې څومره شی خرچ کړو **فاجيبوا ببيان المصارف** چې دې خايونو کې ورکوئ، او د شي تپوس مه کوئ ډير وي که لږ وي، هر څه چې وي خو مصرف ګورئ تنبيهاً على ان المهم هو السوال عنها اى الصارف، لان النفقة لايعتد بها الا ان تقع موقعها چې مصرف دی، اوس که په دې باندې دا اشکال څوك وکړي چې د دې نفقة نه خو مراد مستحب نفقه ده. زکوة ترې مراد نه دی، خکه زکوة په والدينو باندې نه شي کيدای، او نفقه نو هغې لپاره مصارف خو معين نه دی، هر چا ته چې يې ورکړي نو هغې لپاره په قران کې مصارف معينه بې نه دی ښودلی، نو تاسو به جواب وکړئ چې مصرف نه مراد دا دی چې د سنت په طريقې سره واقع شي، نو د دې تپوس وکړئ چې په کوم کيفيت سره ورکوو خکه کوم خيرات مستحبه چې د سنت سره موافق ادا شي هغه يعتد بها دی، او کوم چې د سنت په کيفيت سره ادا، نه شي هغه لايعتد بها دی، لکه

دا خلک چې راشي نو دا به اوړي خي. ګوانډيان خو ورته ډوډۍ نه ورکوي. کوهستان کې دا طريقه ده
چې خلک راشي. دې علاقو کې خو د دې خلکو مزي دي. چې راشي خان له لاړ شي دعا وکړي.
کوهستان کې چې راشي هلته په پټکي کې ديره شي. خپل نسبيان او داسې نور. نو هغوی ته مړي
ويلی هم نه شي چې هلکه خي. نو يا هلکه هلته کې ډوډۍ کوه. مجبوري ده. حالت د مخمصه کې د
مرداري خوراك حلال دی. دا خلک مړه کيدل نو ما دوی ته ډوډۍ کړي ده. خيرات نه دی کړی. خيرات
ديته وائي چې مړی ته ثواب رسي. او مړي ته هله ثواب رسي چې د پيغمبر د سنت موافق وي. بس
داسې وايه چې ما دوی ته ډوډۍ کړي ده الضرورات تبيح المحظورات دي. دا رسم ختمول ډير ګران
کار دی. زما خپل والد صاحب چې وفات شو. نو مونږه اووه ورونه وو. نو په دې کې دوه ما نه خلاف
شو. او دواړه خدای دې وبخښي مړه شوي دي. او پينځه ما سره متفق شو. ويل چې دی نه کوي
نو مونږه هم نه کوو. نو هغه يو خان له يوه مېنه حلاله کړه هغه بل خان له يوه مېنه حلاله کړه. او د
جون مياشت وه چې خلکو وخوړه په خلکو يې دستونه او هيضه يې پرې ولګوله. هغه خلک ټول
ناروغه شو. الله پرې دا مرض ولګولو نو ما ويل هلکه ما تاسو ته نه وو ويلي چې مه کوئ. هغه نور
پينځه چې کوم ما سره متعلق شو. نو هغته پس هغوی ويل چې خيرات کوو. نو ما ويل چې اوچې
پيسې ولې نه ورکوو؟ چې ۵۰ هزار يا ۲۰ يا کم يا زيات چې مونږ ورکوو. دا اوچې به چيرته يو
مسکين يا يو مدرسه کې به ورکړو. نو څوك به خبر نه وي. او خلک دې خان له وائي چې دوی خپل
والد پسې هيڅ ونه کړل وائي دي. مونږ خلکو سره څه کوو څه له هغوی ته خان بښايو. ويل نه نه مولوی
صاحب مخکې مونږه ستا منلي ده اوس ستا نه اورو. ما ويل چې نه اورئ نو راوړئ. بيا يې دوه درې
غواګانې راوستې او حلالې يې کړې. او خيرات مونږه وکړه الله دې يې قبول کړي. دا رسم ډيره شوی
دی. د مظهر شيخ الحديث ما ته ويل چې نور الحق په ميلمه باندې زه خفه کيږم نه. خو زمونږ کلي والا
راشي او دلته په دې پټکي کې ديره شي نو په دې باندې زه خفه کيږم. ميلمه خو ښه شی دی. خو بيا
مجبوره کړي. نو ايسته تلی شوم او نه بل چيرته

بله مسئله کوي. ماتن وائي ومنه او بعضې من خلاف مقتضى الظاهر التعبير. تعبير کول په لفظ د
ماضي سره. نو سائل سوال وکړو چې يا هلکه تعبير خو معبر عنه غواړي. معبر عنه به څوك وي. ويل
**عن المعنى المستقبل** معبر عنه معنی مستقبل به وي. او تا به ترې تعبير په لفظ د ماضي سره کړی وي.
ای هلکه د دې خلاف د مقتضى د ظاهر لپاره نکته څه ده؟ نو ماتن نه وه ذکر کړي. شارح يې ذکر
کوي. ويل تنبيهاً لپاره د خبرداری ورکولو د متکلم على تحقق الوقوع ای وقوع المستقبل چې دا
مستقبل په تحقيق کې او وقوع کې داسې يقيني او قطعي دی چې ګويا که دا مخکې واقع شوی دی.
نحو يوم ينفخ في الصور فصعق نو صعق په نسبت سره نفخ ته مستقبل وو. خکه صعق د نفخ نه

بنه نشته. خو هسي ما تاسو ته د مثال په طور سره وويل، چاگ به ډير مشهور سړی وو. او ډير ملي سړی وو. هغه به ملي ډيرې کولې. هغه نحوي وو، نو هغه سره به طالبان اوسيدل. نو هغه وخت کي چتهان طالبان وو. فاجران، فاسقان، طالبان وو. نو د مونځ نه خبر وو، نه بل څه نه خبر وو. بې نمازان به دې قبرونو کې به خان له برينډ لغړ به ناست وو او اخر کنز به يې يادولو. او کافيه به يې يادوله عقيدې نه خبر وو نه مونځ. نه اسلام. نه ايمان نه، هسې يو څيزونه وو، هسې هيولاګان وو. الله رحم وکړو او د طالبانو ذهنونه يې اوس په قران او حديث سره غوړ کړل. نو اوس طالبان د درې څلور کتابونه واني او بنه پرې پوهيږي. هغه وخت لس کاله به يې په اخر کنز کې تير کړل او هيله به وه چې اخري کنز راغلی. او محنت به يې دومره کولو چې شپه او ورځ به يې يو کړی وو. نو هيله به ورته اخري کنز ياد شوو خکه الله غيرتي بادشاه دی، ويل چې څه ته دومره محنت کوي نو څه اخر کنز درته راغلی هغه هسې هم چتهان طالبان وو يو کتاب به يې ونيوو، وخت پاسې يې کوله، يا نهه، لس کاله به يې کافيه کې تير کړل. په يو خوارو سره کافيه به ورته راغله. نو طالبان د کافيې به ورته جمع وو. خو خير او برکت په کې نه وو. خو د هغه طالبانو دعا قبليده. دا هم د الله امتحان وو، خلک به راغلل هغوی نه به يې ويل مونږ ته طالبانو دعا وکړئ، هغوی به دعا وکړه الله به قبوله کړه، نو پخوا مشرکانو چې قبرونو ته تلل نو هم الله هلته کې د هغوی سوال پوره کولو، خو دا امتحان وو، ورنه د داسې چتهانو دعا الله قبلوي؟ خو دا د الله امتحان وو کنه، چې د دوی يقين به په دې طالبانو وي او که په ما باندې، نو بيا طالب خلکو د بنخې سره ونيولو، نو د بابا خوا ته يې راوستلو. ويل بابا مونږه طالب بنځې سره نيولی دی. ويل راکړئ دا خنزير. د ده داسې داسې وکړم، ويل دا حرامي. دا لوی حرامي دی، ويل دی لږ ما ته راکړئ، چې دې خنزير ته زه لږ وګورم، چې دا څنګه دی. نو بابا د هغه طالب لاس خپل لاس کې ونيولو. خلکو خو نيولی وو چې طالب ونه تښتي، نو چې بابا ونيولو، نو طالب ته واني چې ای هلکه طالبه رجلين دې ملګري نه دي فرار وکړه جبل ته، رجلين دې منکسر نه دي فرار وکړه جبل ته، او په دې کې يې لاس ورو غوندې سست کړو، نو طالب لاس ووېستلو او منډه يې کړه، هغه خو پهلوان سړی وو. طالبانو خو پريمانه خوړلي وي. منډه يې کړه، بابا ويل هلکه نيسئ ګورئ طالب ما نه خلاص شو. هغه خلکو تلو پورې طالب خان له تللی وو، بنه والاشارح اشاره کوي چې دا الادي خای کې مخفف ده د ان لم يکن نه او استثنائيه نه ده، ای وان لم يتضمن ای القلب اعتبارا لطيفا رُدَّ، لانه عدول عن مقتضى الظاهر من غير نكتة، شبه يا هلکه نکته خوشته دی کنه چې د سکاکي هغه ملاحة دی ويل يعتد بها داسې نکته چې هغې باندې اعتماد وکړی شي او ملاحت څه نکته معتمد بها نه ده.

دې مثال چې قلب شوی وو او په کې نکته معتد بها نه وي، ويل کقوله ای الشاعر، په مدح د خپلې اوښې کې، ويل فلما ان جري سمن عليها ويل هر کله چې ښکاره شو خورب والی په دې اوښې باندې او دا لحم شحم زيات شو، ويل دا داسې وه کما طينت بالفدن. فدن قصر ته واني. ماڼۍ ته بيتهک ته.

# احوال المسند

احوال د مسند نه مراد امور عارضه دي مسند ته، چې هغه کوم راتلونکي امور، چې تقریباً پینځلس دي. دا امور عارضه دي مسند ته، من جمله د امور عارضه ؤ نه مسند ته ترک د مسند دی. نو متن وویل چې اما ترکه هر چې دی ترک د مسند یعني حذف د مسند. دلته کې یې ترک وویل او په احوال د مسند الیه کې یې حذف ویلي وو، هغه وجه شارح هلته کې ذکر کړې ده، نو ویل فلما د هغه نکاتو وجې نه چې تیر شوی دی، تعین د ما مر کوي، ویل في حذف المسندالیه چې هغه احتراز د عبث نه یا تخییل الی اقوی الدلیلین، یا اختبار د تنبه د سامع، یا اختبار د مقدار د تنبیه د سامع، یا د ضیق المقام د وجې نه یا د فلانکي فلانکي د وجې نه الخ. دا تیر شوي دي، اوس دلته کې ماتن صرف په مثالونو باندې ور لګولی دی، مثالونه ذکر کوي، کقوله لکه دا قول د شاعر شو، او له مصرعه په متن کې نه وه نو هغه شارح ذکر کوي، ویل **ومن یك امسی بالمدینة رحله** ویل هغه څوك چې وو په مدینه کې کور د هغه رحل کور ته ویلی شي، نو د دې جزاء محذوف ده، دا فاني علت جزاء دی قائم دی په مقام د جزاء کې، فحسنت حاله وساءت حالي، ویل بنه دي حال د دې مَن او زما حال بد دی، او زما حال خکه بد دی چې فاني وقیار بها لغریب ویل خکه چې زه یم او که زما اسپه ده، یا اوښ دی، یا زما غلام دی، په دې مدینه کې مسافر دی، تشریح د دې الفاظ غریبه ؤ کوي **الرحل هو المنزل** کور ته وائي، والماوی خای د اوسیدو ته وائي، نو تعبیر ته هم شامل شو، **وقیار:** باچې ګل ویل اسم جمل للشاعر، د شارح د اوښ نوم دی، او دا وروستو د دې مخکې سره لګوي، وقیل اسم فرس او ناکت ورسره لګولی چې وقیل اسم غلامه، درې قیلان شو تعین د شاعر کوي، شاعر ضامي بن الحارث دی، او دا تعین دی کذا في الصحاح امام جوهري په صحاح کې داسې ویلي دي، زه ناقل یم، نو الابلا بر ګردن جوهري وي، هغه داسې ویلي دي، زه خلاص یم، شبه راغله چې هلکه بیت نه مقصد یا مدحه وي یا ذم وي، مونږ ته په نه راغله چې د بیت نه مقصد مدحه شوه که ذم شو، نو شارح جواب وکړو چې ولفظ البیت خبر و معناه التحسر والتوجع افسوس دی او خپل درد بنکاره کول دي، په دې خبره چې مدینه کې زما کور نشته دی زه مسافر یم. فالمسند سره تطبیق کوي د مثال د ممثل سره، چې دلته کې مسند حذف شوی دی، دیته وائي دلیل لپاره د تطبیق د مثال مع الممثل، فالمسند الی قیار محذوف چې غریب دی، نو معنی دا شوه چې وقیار بها غریب لغریب او دا لغریب خبر شو مخکې د دې ان لپاره په فاني کې ویل نکته د حذف دا ده چې لقصد الاختصار یو والاحتراز عن العبث دوه، شبه یا هلکه عبث څنګه راغي دا خو رکن د کلام دی، او رکن د کلام ذکر کولو سره خو عبث نه راځي، جواب یې وکړو چې بناء علی الظاهر چې هلکه حذف والې بناء په ظاهر دي چې قرینه شته دی، نو چې اوس قرینه شته، او نه خبر

يې ذكر كړو چې عطف د مفرد په مفرد باندې چې قيار عطف شي په محل د اسم ان باندې او د هغې
هغه مسند عطف شي غريب. په لغريب باندې. چې خبر د ان دې، اوس ذكر كوي چې عطف د جملې په
جملې باندې هم جائز دی. نو غرض د دې نه، دويم احتمال ذكر كوي. ويل ويجوز ان يكون د قيار
مبتدا.. والمحذوف خبره، چې غريب دی، او دغه جمله والجملة باسرها عطف شي على جملة ان مع
اسمها وخبرها باندې. اوس حاصل د كلام دا شو چې په دې شعر كې تول ټال احتمالونه څلور دي دو
جائز دي. دوه نا جائز دي. جائز كې اول دا دی چې قيار مبتدا، شي خبر ورله محذوف شي چې غريب
دی. او دا عطف د جملې په دې اسم د ان او خبر باندې شي. او دا هم جائز دی چې قيار عطف شي په
محل د اسم د ان باندې او هغه خبر محذوف د دې عطف شي په لغريب خبر د ان باندې. عطف د مفرد
على المفرد شي. دا هم جائز شو. دوه ناروا دي، يو دا دی چې دا قيار ته عطف كړی په محل د اسم د
ان باندې او لغريب د دواړو لپاره خبر ونګرځوی. دا ممنوع شو، دويم ممنوع دا دی چې دا مذكور
لغريب خبر د قيار وګرځوي او د ان خبر محذوف را وباسې، دا هم ممنوع دی. ځكه لغريب كې لام
تاكيديه ابتدائيه راغلی دی. او لام ابتدائيه تاكيد په خبر د ان كې راځي، بل مثال بنائي وكقوله شعر
نحن بما عندنا وانت بما عندك راض والرای مختلف ويل مونږه په هغه اعتقاداتو او اعمالو. هغه
افعالو سره چې مونږه سره دي، راضي يو. او ته بما په هغه اعتقادات، اعمالو، افعالو باندې چې تا
سره دي. ته راضي يې. او رايې زمونږه مختلف ده، دا مثال مطابق د ممثل سره دی. فقوله نحن
مبتدا. دی محذوف الخبر، چې راضون دی لما ذكر د وجې د هغه نكاتو نه چې مونږه ذكر كړل په
محكي كې. چې هغه څلور دي. ای سره هغه خبر مقدره ته اشاره كوي ای نحن بما عندنا راضون اوس
شبه راغله چې يا هلكه لما د وجې د هغه نكاتو نه چې مونږه په مخكې شعر كې ذكر كړي دي، نو بيا
خو دې مثال ثاني كې څه فائده رانغله. نو مستدرك شو، څه نوې فائده په كې رانغله. نو شارح اشاره
كوي هغه فائدې ته فالمحذوف ههنا خبر الاول چې د نحن خبر محذوف دی. بقرينة الثاني، چې انت
لپاره خبر شته دی چې راض دی. **وفي البيت السابق بالعكس** خبر د ثاني قيار محذوف وو په قرينې د اول
سره چې ان دی. بل مثال بنائي دريم چې وقولك زيد منطلق وعمرو ای سره هغه خبر محذوف ته اشاره
كوي چې هغه دا دی چې عمرو منطلق. فحذف للاحتراز عن العبث ځكه چې يو شی معطوف شي په
بل باندې. او د معطوف عليه خبر وي، نو د هغه معطوف هم هغه خبر وي، معترض راغلی شبه يې
وكړه چې يا هلكه د دې مثال ثالث د مثال اول او ثاني سره بيا فرق څه راغلی؟ كه فرق وي څه دی؟
وايه. او كه نه نوي نو استدراك لازم شو، نو جواب يې وكړو چې من غير ضيق المقام چې هلته كې يو
نكه ضيق المقام وو. او دلته په كې دا نشته دی. څلورم مثال بنائي. چې وقولك خرجت فاذا زيد هغه
يو غرض دا دی چې هغه خبر محذوفه ته اشاره كوي، چې هغه خبر د دې زيد لپاره دا دی. دويم اشاره

ته وظيفه ورکړه. هلکه هغه بيا دي فلش ته راځي؟ د دنيا مثال د دي نيکو خلکو لپاره د فلش دی، ر
ليترين. هلته چې څوك قضاء حاجت وکړي، نو بيا هلته کيني نه چې خوشبوئي اخلي، او که بدبخت
وي نو هغه هلته کې الله قيد کړی دی جيل خاني ته يې اچولی دی، چې حکومت تا جيل ته وغورځوي
بيا تا کور ته واپس پريدي؟ نو که نيك بخت وي نو هغه هلته کې مزو کې دی، هغه وائي زه بيا ليترين
ته نه ځم. او که بد بخت وي هغه هلته الله جيل ته غورځولی دی، د الله د جيل نه څوك يې نه شي
خلاصولی. چې ته وائي وَر کې ولاړ دی. يا رسول الله صلى الله عليه وسلم محراب کې ناست دی،
نعوذ بالله منها. هغه بيا دي ليترين ته راغلی؟ اعلى الجنة کې دی، وحرام على قرية اهلكناها انهم
اليهم لا يرجعون. وحرام... الخ، تطبيق د مثال د ممثل سره کوي، فحذف المسند، شبه يا هلک
مخکښني مثالونو کې هم حذف د مسند وو، نو که فرق وي نو څه دی؟ تفصيل يې وکړه، او که نه وي
نو استدراك لازم شو، نو جواب يې وکړو چې الذي هغه ظرف شبه يا هلکه ظرف خو مخکې مثال کې
هم وو کنه چې باللباب، هغه هم ظرف وو، جواب يې وکړو چې قطعاً، ويل هلته کې احتمالاً وو قطعاً نه
وو، او حذفِ شو لقصد الاختصار والعدول الى اقوى الدليلين اعني العقل، **والضيق المقام اعني المحافظة على
الشعر، والاتباع الاستعمال** خکه عربو قانون اينبنی دی چې د ان خبر لنا دی، يعني ضمير د متكلم مع الغير
دي سره د لام نه، هغه به هميشه حذف کيږي، ويل **لاطراد الحذف في مثل ان مالاً وان ولداً** يعني ان لنا مالاً وان
لنا ولداً. تائيد لپاره ذکر کوي وقد ذكر سيبويه في كتابه لهذا د دې حذف د مسند لپاره باباً فقال هذا
باب ان مالاً وان ولداً نو دا قانون کلي شو، شپږم مثال بناني باچا ګله ويل وقوله تعالى قل لو انتم
تملكون خزائن رحمة ربي دا مثال مطابق د ممثل سره دی فقوله: انتم ليس بمبتداء، چې انتم مبتداء
شي او تملکون ورله خبر شي، خکه نه دی لان لو خکه دا لو شرطيه انما تدخل على الفعل نو فعل خو
ملفوظ نشته، نو پته ولګيده چې مقدر شته دی، بل هو اى انتم فاعل فعل محذوف، والاصل لو
تملکون تملکون، نو که څوك شبه وکړي چې هلکه په دي سره خو په مفسر او مفسر کې جمع راغله، او
جمع په مفسر ومفسَر کې خو جائز نه ده، نو تاسو وواين چې دا جمع يې په اعتبار د مثال سره ويلي ده،
فرضاً حقيقة داسې نه **فحذف الفعل اى الفعل الاول وهو تملكون، احترازاً عن العبث لوجود المفسر** چې دا وروستو
تملکون دی، خو دا مفسر چې ګرځي نو د حذف نه وروستو ګرځي، او د حذف نه مخکې دا مفسر نه
وو، نو دا ما تاسو ته دويم جواب وکړو، چې کوم چې مفسر وو نو هلته کې جمع نه ده راغلې، او کوم
خای کې چې جمع ده نو هلته کې مفسر نشته دی، خکه چې تا ذکر کړو نو دويم تملکون مفسِر ورله نه
وو، تاکيد وو، او اوس تملکون اول چې تا حذف کړو نو اوس دا مفسِر دا دويم شو خو اوس جمع نشته
دی، نو اوس تملکون اول حذف شو، نو قانون دا دی چې د ضمير متصل عامل حذف شو، نو ضمير
متصل بدليږي ضمير منفصل باندې، نو وائي ثم ابدل من الضمير المتصل، الضمير المنفصل چې

اتم دی علی ما هو القانون عند حذف العامل. شبه یا هلکه د دې مثال د مخکښینو سره څه فرق دی؟ که نه وي نو مستدرك شو او که وي نو څه دی، نو ده جواب وکړو چې فالمسند المحذوف ههنا فعل. شبه یا هلکه مخکښني کې هم فعل وو کنه. خکه لن متعلق ثبت پوري دی، او ثبت فعل دی. جواب کوي چې وفیما سبق اسم او جملة هلته کې احتمال وو. که د کوفیانو په مذهب باندې خې نو بیا اسم دی. او که د بصریانو په مذهب باندې خې نو ثبت جمله دی. اووم مثال ذکر کوي وقوله تعالی فصبر جمیل. یحتمل الامرین تعیین د امرینو کوي چې حذف د مسند او مسندالیه دواړه جائز دي. حذف المسند والمسند الیه، نو که حذف د مسند اوشي نو تقدیر به داشي چې فصبر جمیل اجمل. او که مسندالیه شي نو امري فصبر جمیل. شبه یا هلکه د دې مثال فرق د دې شپږم مثال سره څه شی شو؟ که نه وي نو بیا مستدرك شو، احتمالین راغلل. داسې چې بامکان حمل الکلام علی کل من المعنیین چې حذف د مسند او مسندالیه دی بخلاف ما لو ذکر فانه یکون نصاً في احدهما خکه چې ذکر کوي. نو یا به مسند ذکر کوي او یا به مسندالیه ذکر کوي، دواړه خو نه شي ذکر کولی. اوس د دې نه وروستو دی ماتن قرینه ذکر کوي. واني ولابد للحذف من قرینة ستاسو کتابونو کې للمحذوف نه دی؟ قال الطلبة الحذف دی. قال الشیخ دا هم جائز دی. د حذف لپاره قرینه په کار ده. داسې قرینه. اثر د قریني به دا وي چې دالة علیه چې دا قرینه به دال وي په دې محذوف باندې. اثر مرتبه د دې قریني به دا وي چې دال به وي په دې محذوف باندې. متن لپاره دلیل واني لیفهم المعنی خکه چې قرینه نه وي، نو بیا فهم د حذف د مسند ته نه شي کولی. نو قریني سره فهم د معنی د مسند به اوشي. هغه قرینه به دا وي کوقوع الکلام واقع کیدل د هغه کلام شو چې په هغې کې حذف د مسند شوی دی، دا کلام واقع شوی وي جواباً لسؤال خپله سوال محقق وي لکه په ایت کریمه کې او وروستو راخي چې وي او مقدر لکه په شعر اتیه کې د محقق مثال داسې شو چې لکه نحو ولئن سالتهم من خلق السماوات والارض؟ لیقولن الله نو الله مسندالیه فاعل دی، او د دې مسند محذوف دی، هغې ته اشاره وکړه شارح، ای خلقهن الله نو مسند محذوف شو، نو فحذف المسند. قرینه پرې دا ده چې لان هذا الکلام چې لیقولن الله دی، عند تحقق ما فرض من الشرط. دې خای کې شارح خطاء شوی دی. داسې خطاء شوی دی. شارح دفع د اعتراض کړي ده او هغه اعتراض په ماتن باندې د سره وارید لو نه. اعتراض د خپل خان نه شارح په ماتن باندې داسې وارد کړی دی، چې یا هلکه دا مثال خو مطابق د ممثل سره نه شو، خکه چې ممثل سوال محقق وو. نو شارح د محقق نه مراد قطعي یقیني اخیستی دی، او مثال کې بې ولئن سالتهم ویلی دی. او ان په شرط مشکوکه مستعملیږي نه په مقطوعه کې. نو شارح خان له دا اعتراض سوال جوړ کړي دی، او بیا بې جواب کړي دی. دا سوال د شارح هم د خان نه شو او جواب هم د خان نه شو. شارح جواب داسې وکړو، چې هلکه تیك ده دا سوال مشکوك دی په ان سره دی. خو کوم وخت کې چې

تول مال يې ختم کړو. نوقائع دا يې ترجمه د طوائح وکړه. او ماله مفعول محذوف شو. دويمه توجيه کوي چې او مما متعلق دی بيکي المقدر، بيکي مقدر يو دی، نو بيا تقدير دا شو ای بيکي هذا السائل والمختبط. لاجل اذهاب المنايا يزيد مفعول للمنايا شو او د يزيد مرګ خو يو دی درې څلور مرګونه خو نه دي. د يزيد خو اسباب د مرګ ډير وو نو د دې وجې نه المنايا يې جمع ذکر کړه. قلت المنايا تعبير عن الوقائع والطوائح، وهو فاعل لامفعول والمفعول يزيد فافهم وتطيح سره دفع د اعتراض کوي، اعتراض داسې وارد شو، چې يا هلکه تطيح خو مضارع ده مستقبل، د دې معنی دا شوه چې ژاړي دې ضارع او مختبط، خکه دې ژاړي چې وروستو چيرته وقائع را روان دي او د ده مال هلاکوي وروستو چيرته مرګونه راځي او يزيد مر کوي، نو دی دې اوس ژاړي، نو دا خو ليونی سړی وي. نو شارح جواب وکړو چې وتطيح على التقديرين بمعنى الماضي چې مما متعلق شي په مختبط پورې او که په يبکي مقدر پورې تطيح په معنی د ماضي سره ده، د مرګ د يزيد او د اذهاب د وقائع نه مال د ده. دوه مخکې مراد دی، وروستو نه. معترض شبه وکړه چې هر کله په معنی د ماضي سره شو نو بيا يې تعبير په ماضي سره ولې کړی دی؟ جواب ويل دا د حکاية الحال نه دی. هغه زمانه د ماضي فرض کړي متکلم، شاعر اوس په معنی د تکلم کې، نو واني وعُدل اليه مستقبل ته استحضارا لصورة ذلك الامر الهائل او په حال باندې دلالت مستقبل مضارع کوي ماضي نه کوي نو ځکه يې تعبير په تطيح سره وکړو. د حکاية الحال لپاره، نو دا د وکلبهم باسط ذراعيه بالوصيد د قبيلې نه شو. اوس دومره قتل ته خبره پاتې شوه چې الطوائح فاعل دی د تطيح لپاره، نو فاعل مفيد لپاره د فائدې جديدې خو نه شو. ځکه معنی دا شوه چې د وجې د اهلاك د مهلکاتو نه، نو تطيح نه خو هم اهلاك فهميږي کنه، اهلاك مهلکات کوي، نو فاعل مفيد د فائدې جديدې نه شو. جواب نو تاسو وايئ دلته کې صفت محذوف دی لاهلاك المهلكات العظيمة.

ماتن ووييل وفضله: په دې سره د دې مخکې ترکيب او توجيه غوره والي بيانوي چې دا ليبك صيغه مجهول شي، او يزيد نائب فاعل شي دا غوره دی، د دې نه چې ليبك صيغه معلوم شي او يزيد مفعول مقدم شي او ضارع فاعل مؤخر شي، نو واني وفضله شارح ورسره لګوي ای رجحان دې کې يې اشاره وکړه تفسير د فضل ته، خکه چې فضل زيادة ته هم وائي، او فضل رجحان ته هم وائي، دارنګه فضل په معنی د انعام الله، نعمت الله سره هم دی، نو دلته کې فضل په څه معنی سره دی؟ ويل فضل په معنی د غوره والي سره دی. د زيادة په معنی سره نه دی، احسان الله، نعمت الله نه دی مراد، نحو ليبك يزيد ضارع دې کې يې تعيين د مرجع ته اشاره وکړه چې غوره والی د چا؟ چې د ليبك يزيد غوره والی مراد دی. شبه يا هلکه ليبك او ليبك کې تجنيس خطي وو، نو پته رانغله چې د ليبك يزيد ضارع غوره والی؟ ويل نه مبنياً للمفعول، يعني په حال کون د دې ليبك کې چې مبني للمفعول واخلي، غوره والی

زيداً عارف کي دا نشته دی. فان قلت سره اوس ښکاره شبه کوي او بيا وروستو د منعي نه جزاز بلکه دوه جوابونه کوي. ويل که ته وائي په اعتراض کي چي زه به تا ته وښايم چي المسند قد يکون غير سببي يو مسند به وي هغه غير سببي به وي، ولا مفيداً للتقوى او مفيد د تقويت لپاره به هم نه وي، نو په کار دا ده چي هغه علت د افراد راغلی، ومع هذا لايکون مفرداً او سره د دې نه به بيا هغه مسند نه وي، لکه کقولنا انا سعيت في حاجتك، ورجل جاءني کي او ما انا قلت هذا کي، عند قصد التخصيص. چي کوم وخت کي تا قصد د تخصيص وکړو، نو دلته کي ګوره مسند غير سببي دی، او مفيد د تقويت دحکم هم نه دی، او مفرد نه دی بلکه جمله ده. د دې نه شارح دوه جوابونه کوي. اول جواب منفي کوي او ولو سلم نه جواب تسليمي کوي، نو وائي قلت سلمنا ان ليس القصد في هذه الصور الثلثة الى التقوى. بلکه قصد تخصيص ته دی لکن لانسلم انها لاتفيد التقوى تقويت په کي راغلی دی. مخکي بې تاسو ته ويلي دي چي فرق بين ان يکون الشئ حاصلاً من الشئ وبين کون الشئ مفهوماً تبعاً نو تقويت اګر که حاصل قصداً نه دی خو تبعاً ترې نه فهم کيږي ضرورة حصول تکرر الاسناد الموجب للتقوى خو دلته کي کوم چي علت لپاره د افراد وو هغه نه وو راغلي، نو څکه مفرد نه شو. جمله نه شوه. څکه علت د افرادو لپاره مجموعه وو، او هغه مجموعه نه دی راغلی، ولو سلم سره دويم جواب کوي تسليمي، چي ګوره دا غير سببي والی او عدم افادة د تقويت دا د افراد لپاره علت نه دی، دا شرط دی، او تخلف په ما بين د علت او معلول کي ناروا دی، او تخلف په شرط او مشروط کي جائز دی. شرط به وي او مشروط به نه وي، نو دا شبه به تا هله کړې وي چي دا غير سببي او عدم افادة تقوى الحکم ما علت وئيلي وي د افراد لپاره، دا علت نه دی بلکه شرط دی، نو وائي ولو سلم چي قصد په دې کي تقويت نه دی، بلکه تخصيص دی، خو فالمراد ان افراد المسند قد يکون لاجل هذا المعنى په طريقې د شرطيت سره، و لايلزم منه تحقق الافراد في جميع صور تحقق فيه هذا المعنى څکه چي مونځ نه صحيح کيږي بغير د طهارت نه، او چيرته چي طهارت وي نو مونځ ضروري نه دی. داسي ويلې کيږي چي مونځ نه صحيح کيږي بغير د طهارت نه او دا ضروري نه ده چي کوم خاى کي طهارت وي نو مونځ به وي. طهارت اودس وکړه، او مونځ خان له مه کوه، ته څه ماخوذ نه ني، او سببي څه ته وائي، نوشارح وائي ثم السببي والفعلي مسند سببي او مسند فعلي دا من اصطلاحات صاحب المفتاح نه دی، دا سکاکي خان له يو اصطلاح قائمه کړې ده، ويل دا داسي دی چي سمي في النحو الوصف بحال الشئ صفت کول په حال دموصوف سره، ديته صفت بحاله وائي، صفت بحاله نحوه کي ديته وائي، چي نعت ثابت منعوت ته حقيقاً وي، لکه رجل کريم، نو دا کريم معنى نعتي رجل ته بالذات ثابته ده، نو په نحوه کي مسمى کړې شوې دی دا وصف بحال الشئ وصفاً فعلياً، ديته وصف فعلي وائي، او سکاکي دلته علم المعاني کي مسند فعلي ورته وائي، والوصف بحال ما او

نحو زيد منطلق ابوه خكه خارج شو چي لاته مفرد، خكه چي دلته كي منطلق سره د خپل فاعل
جمله ده، مفرد دى، نو دا خارج شو، نو بجملة تكي سره منطلق ابوه خارج شو، دارنگه وفي قل هو
احد دا هم خارج شو په بعائد سره، خكه چي الله احد، دا جمله خبر دى، د هو لپاره، خو لان تعليق
المبتداء ليس بعائد عائد په كي نشته دى، وفي نحو زيد قام و زيد هو قائم دا هم خارج شول. خكه
العائد فيهما مسنداليه دا دري فصلونه شو، اوس دا خل په دي كي څوك شو؟ نو وائي ودخل فيه
زيد ابوه قائم جمله اسميه ده او خبر په كي اسم فاعل دى، وزيد قام ابوه جمله اسميه ده، او فاعل
ظاهر دى، وزيد مررت به كي جار مجرور وزيد ضربت عمرا في داره، وزيد ضربته ونحو ذلك
الجمل التي وقعت خبر المبتداء ولاتفيد التقوى

والعمدة سره شارح دفع د اعتراض كوي، اعتراض دا، چي هلكه سكاكي يو قيد بل هم ابيني دى،
قيد سكاكي دا ايني دى، چي دا مضاف دى ضمير ته به اسم مرفوع وي، نو تيك ده د خل زيد ابوه
داخل شو، خكه چي ضمير ته مضاف اسم مرفوعه دى، زيد قام ابوه هم داخل شو، خو زيد مررت به
داخليږي، خكه مضاف دلته دي ضمير ته اسم ظاهر نه دى، مرفوع نه دى، دارنگه زيد ضربت عمرا في
داره، خكه چي مضاف اسم ضمير ته عمده نه دى، دارنگه زيد ضربته، هم داخل نه شو، نو دا ته اى شارح
څنگه داخلوي، شارح باندي داشبه راغله، نو شارح خان نه ويريدو، نو شارح ويل خان له د سكاكي نه
تپوس كوئ، دا اصطلاح هغه ابيني ده، ما ته څه وائي؟ ويل والعمدة في ذلك تتبع كلام السكاكي ويل
معتمد عليه په دي تفسير كي تفتيش تلاش د كلام د سكاكي دى. ويل هغه خانله وگوري، ويل خكه
لانالم نجد هذا الاصطلاح لمن قبله. د سكاكي نه مخكي مونږه دا اصطلاح د چا نه نه ده اوريدلي

واما كونه هر چي دى كيدل د مسند فعلاً، فعل به ولي وي مسند؟ ويل فلتقيده تعيين د مرجع كوي،
ويل د وجي د تقييد د مسند نه باحد الازمنة الثلاثة، الماضي، د دي نه غرض د شارح تعيين كوي،
تعيين مصداقي كوي، د ازمنو ثلاثو، او د هر يو تعريف كوي، نو وي ويل چي الماضي يو په ازمنو
ثلاثه ؤ كي ماضي ده، د دي تعريف دا دى چي وهو الزمان الذي ويل دا ماضي هغه زمانه ده قبل
زمانك چي مخكي ستا د زماني نه وي، الذي هغه زمانه انت فيه چي ته يي په دي زما نه كي، نو په دي
باندي اشكال راغلى، چي ستا د وجود نه مخكي چي كومه زمانه وه هغي ته ماضي وائي، او د وجود
نه وروستو چي كومه زمانه ده هغي ته ماضي نه وائي، نو دا خو غلطه ده، خكه چي زما وجود خو ډير
مخكي راغلى دى، او اوس زما د دي تكلم نه مخكي دا ټول ماضي ده، نو تاسو وايئ چي دلته كي
حذف د مضاف دى وهو الزمان الذي قبل زمان تكلمك الذي هغه زمانه د تكلم انت فيه چي ته په كي
موجود يي، نو اوس تيك شو. دويمه په هغه دريو كي مستقبل دى، والمستقبل وهو الزمان الذي
يترقب، انتظار كولى شي وجوده بعد هذا الزمان پس د دي زماني د تكلم نه، د زماني د تكلم نه

اولی سره دی، خکه یَضرِبُ تا وویل یا ضَرَبَ وویل، نو دي کې حصول د شي بعد العدم راغلی.
ضرب مخکې نه وي او اوس راغلی، تا پیدا کړو، او زمانه چې دلالت کوي نو په معنی ثاني باندې
کوي، خکه زمانه ختمیدل او حاصلیدل د یو شي دي تدریجاً، یو جزء لاړ شي بل جزء هله پیدا کیږي.
بل جزء لاړ شي نو دریم جزء هله پیدا کیږي، دریم لاړ شي نو څلورم جزء د زماني پیدا کیږي، نو معتبر
په مفهوم د فعل کې تجدد په معنی اولی سره وو او زمانه کې تجدد په معنی ثاني سره دی، نو اوس نه
واني چې مع افادة التجدد نو صحیح شو؟ یو[1] تقید یو د ازمنه ؤ ثلاثه ؤ پورې شو، او دا تقید د یو د
ازمنو ثلاثو پورې سره د افادې د تجدد نه کوي، نو سره د افاده د تجدد نه، دا خو فعل نه کوي، دا خو
زمانه کوي، خکه تجدد په معنی ثاني سره زمانه نه دی، فعل نه دی، نو دي راخي جواب کوي **ولما كان**
**التجدد** سره، حاصل د جواب دا چې دا تجدد د معنی ثاني سره لازم وو د زماني سره، او زمانه جزء وو د
مفهوم د فعل نه، نو تجدد په معنی ثاني سره لازم شو د فعل سره، خکه لازم د جزء لازم د کل وي، دا
قانون دی، نو تجدد په معنی ثاني سره اگر که حقیقةً مفهوم د فعل نه دی خو لازماً دی، نو مع افادة
التجدد صحیح شو، او شبه به هله تا کوله چې ما تجدد په معنی ثاني سره عین په مفهوم د فعل کې
معتبر کړی دی، خو عین معتبر په مفهوم د فعل کې تجدد په معنی اولی سره دی، معنی ثاني سره نه
دی، نو واني لما كان التجدد لازماً للزمان خو تجدد په معنی ثاني سره، چې ختمیدل د شي حاصلیدل
د شي تدریجاً، لازمه د زماني سره خکه وو لکونه د وجې د کیدو د زماني نه کما زمانه یو مقدار دی
غیر قار الذات اجزاء یې مجتمع في الوجود نه دی ای لایجتمع اجزاؤه في الوجود، والزمان جزء من
مفهوم الفعل، نو كان الفعل مع افادته التقيد باحد الازمنة الثلثة مفيداً للتجدد، په معنی ثاني سره،
والیه اشاره بقوله مع افادة التجدد، کقوله ای الشاعر، شعر ویل او كلما وردت عكاظ هلكه دا
عکاظ څه شی وو د سرې نوم وو او که د ښځې که د خای، ویل وهو سوق للعرب، كانوا يجتمعون فيه،
فينا شدون، تناشد ویلی شي شعرونو ویلو ته، ويتفاخرون بانسابهم وشجاعتهم، وكانت فيه ای
السوق الوقائع، حوادث جګړې به کیدی، معارضې به یو بل سره کیدی، مناظرې به کیدی، ترجمه نو
هر کله چې وارد شو، راغلی عکاظ میلې ته قبیلة یو قبیله د عربو، نو ظریف واني شاعر، چې زه
دومره بهادر ووم چې د هرې قبیلې په ما باندې بدله او قصاص وو، نو بعثوا وي لیږلو ما ته عریفهم
هغه پیژندونکې خلکو لره په رنګونو سره، عریف هغه چاته واني چې هغه خلق په رنګ سره پیژني،
لکه زه ووایم چې هلکه دا فلانی د فلانی زوی دی؟ دا فلانکی د فلانکي ورور دی، دا فلانکی
دفلانکي پلار دی، دیته عریف واني، دومره تفرس او پوهوالی ورته الله ورکړی وو، چې د رنګ نه

---

[1] نو یو نقصان دا راغلی چې تقید د فعل په ازمنو ثلاثو پورې راغلی چې فعل دلالت کوي په حصول الشئ بعد ان لم یکن باندې

سري معلوموي، ديته علم القيافت هم وائي، عربو کې د دې علم القيافت ډېر لوی رواج وو. حديث کې راځي، د حضرت عائشة رضي الله عنها نه غالبا روايت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم يو ځلې کور ته راغلی ډېر هشاش بشاش، ډېر خوشحال وو، نو دې ترینه تپوس وکړو چې حضرت ته ولې دومره خوشحاله ئې؟ نوویل أسامه او زید دواړه به یو کمبل کې پراته وو، أسامه د زيد خوی وو، د زيد بن حارثه، د رسول الله صلی الله علیه وسلم متبنی چې وو، نو ویل قائف راغلی او هغه ویل چې هذه الأقدام بعضها من بعض او مخکې مشرکانو به طعن ویلو چې دا أسامه د حضرت زید زوی نه دی. نو چې قائف راغلی او دا يې وويل. نو ويل زه به دې باندې خوشحاله شوم. چې ويل هغه تهمت تري نه پورته شو، قال الشيخ هذه الجمل على شئ من البكاء نو خکه دې تفسير کوي د عريف د دې لفظ غريب، د عريف القوم، القيم بامرهم هغه سري ته وائي، چې متولي وي متصرف وي د امر د قوم الذي شهد بذلك وعُرف نو عريف ورته خکه وائي چې هغه په علم القيافت سره مشهور وي په علم الفراست سره مشهور وي، اتقوا فراسة المؤمن فانه ينظر بنور الله دا علم غيب نه دی، بلکه دا هوښيارتيا ده چې الله يې چاته ورکړي، خکه فانه ينظر بنور الله خکه دې د الله د هغه ورکړی شوي شي سره ګوري، دا الله داسې فراست ورکړی وي چې هغه په دې سره معلوميږي، ديته علم غيبيه وائي، علم غيب ديته وائي چې هغې لپاره سبب نه وي، او د دې سبب شته دی، چې الله ورته داسې قوت ورکړی دی، نورانيت ورکړی دی، چې په هغې سره دې د رنګونو نه شي معلوموي، يتوسم اوس موضع د استشهاد دا دی. دلته کې يتوسم مسند يې فعل ذکر کړو، متوسم يې ونه ویل، يتوسم فعل شو مسند او ضمير په دې کې راجع شو دې عريف ته، هغه مسند اليه شو، نو د دې ترجمه اى يصدر عنه تفرس الوجوه معلومول د مخونو، چې دا فلانکی دی فلانکی نه دی، وتاملها شيئا فشيئا لحظة بعد لحظة داسې ګوري کنه، بيا داسې ګوري، ويل دا د فلانکي زوی دی، شاعر د خپل خان بهادري بيانوي چې د هرې قبيلې، هر سرى، بدله او قصاص په ما باندې وو، نو هرې قبيلې به خپل عريف ليږلو چې وګوره چې شاعر چيرته شته دی چې مونږ د هغه وينه چيرته وڅکو، نو ويل عريف او قائف ما پسې لګيدلي وو، او ما پسې ولاړ وو، ما خان بنج کولو، زه داسې بهادر يم، او چې په واقع کې وو او که نه وو خدای خبر دی؟ واما كونه اى المسند اسماً، اسم خکه کيږي، ويل فلافادة عدمهما تعيين د مرجع کوي د وجې د افاده کولو د عدم تقييد مذکوره نه او د تجدد نه يعني سره شارح دا ذکر کوي، چې عدم تقييد مذکوره او تجدد فائده ونه کړه، نو څه به فائده کوي، نو يعني سره د دې مقابل ته اشاره کوي، نو چې تجدد يې فائده نه کړه نو دا به فائده کوي. چې لافادة الدوام دوام به فائده کوي. او چې تقييد مذکوره دې يې فائده نه کړو نو والثبوت ثبوت به فائده کوي، دويم غرض دشارح د يعني سره دا دی چې دفع د تدافع کوي، د ماتن د کلام او وروستو راتلونکی کلام د شيخ کې، دماتن دکلام نه دا معلومه شوه چې دا

مسند اسم د دې لپاره کيږي چې دې دوام او ثبوت فائده کړي، نو د ماتن د کلام نه دا معلومه شوه چې زيد ضارب دا خنګه چې دلالت کوي په ثبوت د ضارب باندې زيد ته، نو دغسې دلالت کوي په دوام او ثبوت باندې هم، دارنګه زيد منطلق خنګه چې دلالت کوي په ثبوت د انطلاق باندې زيد ته نو دغسې دلالت کوي په دوام او ثبوت د انطلاق باندې، چې دا انطلاق دائم او مستمر دی، او وروستو د شيخ کلام ګورئ ص ۱۳۹ وقال الشيخ سطر اول شيخ عبد القاهر بابا ويلي دي چې موضع الاسم وضع د مسند على په دې باندې ده، بنا ده په دې باندې چې ان يثبت به الشئ للشئ چې ثابت کړی شي په دې سره شئ چې دې په خپله دې بل شئ ته چې مسند اليه دی، من غير اقتضاء بغير د غوښتلو د دې مسند نه، چې انه دغه ثبوت **يتجدد ويحدث شيئا فشيئا** دا په کې تجدد او حدوث نشته دی، بيا وروستو شيخ وويل فلا تعرض وراندې کيدل، اشاره کول في زيد منطلق کې **لاكثر من اثبات الانطلاق فعلا له** چې صرف انطلاق فعل دی، د زيد، او دوام او استمرار معلوم نه شو. لکه کما في زيد طويل وعمرو قصير کې، خکه په زيد طويل کې صرف ثبوت د طول زيد ته شو او عمرو قصير کې قصير عمرو ته شو، دې کې څه دوام او استمرار نشته دی، دغسې مخکې کې هم نشته دی، نو د شيخ د کلام نه معلوم شو چې مسند اسم وي نو هغه دلالت په دوام او استمرار باندې نه کوي، صرف ثبوت باندې کوي، ها استمرار او دوام د قرائن خارجيو د وجې نه کوي، او د ماتن د کلام نه معلوم شو چې مسند اسم وي نو هغه دلالت به په دوام او استمرار باندې کوي، نو د شيخ او د ماتن کلام کې تدافع راغله، نو شارح د مخکې نه دفع د تدافع کوي، چې افاده د دوام او د ثبوت چې کيږي نو لاغراض يعني د قرائن خارجيو د وجې نه، داسې غرض چې متعلق کيږي بذلك په دغه دوام او ثبوت پورې، نو د شيخ او د ماتن مسلك يو شو، ماتن دا نه وائي چې دا مسند دلالت کوي په دوام او استمرار باندې، بلکه دوام او استمرار باندې دلالت د قرائن خارجيه ؤ د وجې نه کوي، او شيخ هم په دې باندې قائل دی، مثال لکه دا قول د شاعر شو کقوله **لا يألف الدرهم المضروب صرتنا** ويل نه تينګيږي روپۍ مهر کړی شوي خمونږه په بټوه کې، وهو ما يجعل فيه الدراهم هميانه ورته وائي بټوه ورته وائي. لکن يمر عليها ليکن تيريږي دغه روپۍ په دې بټوه باندې وهو منطلق او حال دا دی وهو منطلق نو معنی دا يعني **ان الانطلاق من الصرة ثابت للدراهم دائما** دائما او د قرينة خارجيه د وجې نه، د دې مسند اسمي د وجې نه دی، قرينه خارجيه دا ده چې دی د خپلې سخا بيان کوي چې زه دير سخي يم زما په بټوه کې پيسې روپۍ نه تينګيږي، نو دا هله کيږي چې روپۍ هميشه خي. يو ورخ يا دوه ورځي نه تينګيدل دا څه سخي کيدای نه شي، دا قال الشيخ خو مونږه او تاسو مخکې اووې، **واما تقييد الفعل وما يشبهه** د دې سره دفع د اعتراض کوي چې هلکه خنګه تقيد د فعل چې مسند واقع شوي وي کيږي نو تقيد د شبه فعل هم کيږي کنه، نو ويل وائي چې کلام د ماتن په حذف د معطوف سره دی وما يشبهه او هغه چې مشابه وي دفعل سره، **هغه من اسم الفاعل**

**بمفعول وغيرهما** تقيد دا دی فعل به کوي چې مسند دی بمفعول مطلق لکه ضربت ضرباً. او به يا په مفعول به سره. لکه ضربت زيداً. او فيه يا په مفعول فيه سره. لکه قعدت في المسجد. او بمفعول له نحو ضربته تاديباً. او بمفعول معه. نحو ضربت زيداً وعمرواً. ونحوه من الحال والتميز والاستثنا. ځکه چې **فللتربية الفائدة** لپاره د زياتولو د فائدي. اوس تقيد سره فائده زياتيږي. دليل وائي د متن لپاره ويل ځکه چې **لان الحكم** ويل ځکه چې مسند كلما زاد خصوصاً په اعتبار د قيد سره نو زاد غرابة نو دي زياتيږي په لري والي کې د ذهن د سامع نه. چيرته چې په يو کلام کې يو قيد زائد شي نو هغه د ذهن د سامع نه ډير لري وي، دا صغری شوه، او وكلما زاد غرابة نو زاد فائدة. نو زياتوي دغه فائده سامع ته زياته، سامع ته فائده زياته وي، نو نتيجه راغله كلما زاد خصوصاً نو زاد افادةً اوس دليل په کار شو. ليکن د کبری لپاره دليل ته ضرورت نشته دی. هغه د مسلماتو نه ده، ځکه چې کوم شی څومره چې بعيد وي د سامع د ذهن نه، نو هغې کې افاده زياته وي، دا هر څوك مني. اوس پاتې شو دليل د صغری چې هر هغه شی چې هغې کې يو قيد زيات راشي نو هغه د سامع د ذهن نه ولې لري کيږي. ويل وجه په دي کې دا ده كما يظهر بالنظر الى قولنا ما تاته وويل شی: ما موجود چې هلکه يو شی ما موجود دی. نو ته وائي چې مولوی صاحب ماته هم پته وه. چې په مشرق مغرب جنوب شمال کې يو شی ما موجود دی، نو ستا په دي خبره کې ای مولوی صاحب هيڅ فائده رانغله. او اوس ما تاته وويل چې فلان بن فلانٍ حفظ التوراة سنة كذا في بلدة كذا نو دا فائده زياته شوه. **ولما استشعر سوالاً** دي کې اشاره کوي چې دا راتلونکی متن جواب دی دسوال مقدره نه، خو دا سوال بناء دی په دي باندې چې دي سائل دا کان مقيد گرځولی دی، او دا خبر د دي يې قيد گرځولی دی، نو چې ده داسې دا کان مقيد او خبر يې قيد گرځولی نو سوال پيدا شو چې هلکه دلته کان زيد قائماً، نو کان مقيد دی او قائماً قيد دی، نو بغير د قائم نه اصل فائده نه راځي، چې کان ناقصه شي، نو زيادة فائده ځنګه راغلی. نو وائي ولما استشعر سوالا دی والتقيدبه په دي خبر د کان سره ليس لتربية الفائدة. زيادة فائده خو نشته لعدم الفائدة بدونه ځکه بې د خبر نه. او چې کان ته ناقصه ووائي چې کان زيد قائما ووائي نو څه زياته فائده نشته دی. نو اشار الى جوابه نو جواب په دي باندې بناء دی، چې دلته کې دا خبر مقيد دی او کان ورله قيد دی، نو اوس تربية الفائده راغله، ځکه چې زيد قائم عام وو چې زمانه ماضي کې وي که مستقبل کې که حال کې، او چې تا کان زيد قائماً ووېل نو دا داسې شو چې زيد قائم في الزمان الماضي نو مقيد دا خبر شو او کان ورله قيد دی، نو وائي **والمقيد في كان زيد منطلقاً هو منطلقاً لا كان. لان منطلقا هو نفس المسند، وكان قيد له. للدلالة على زمان النسبة كما اذا قلت زيد منطلق في الزمان الماضي.** **واما تركه** ای ترك التقيد. فلمانع منها ای من تربية الفائدة. يو مانع موجود دی. د مانع بيان ماتن نه دی کړی. شارح يې کوي مثل خوف انقضاء المدة متکلم وائي دومره وخت ما سره نشته دی چې زه دا

مقيدات ورسره ذکر کړم د مسند، نو هغه مقيدات پريږدي والفرصة دا عطف تفسير دی. او اراده ان يطلع الحاضرون على زمان الفعل ومكانه، زمان الفعل باندې په مفعول فيه يې زماني کې او مكان الفعل به مفعول فيه مكاني کې. او هوله که په زمانه د فعل يا مكان يا مفعول باندې عالم شي، نو دغه مفعول په حاضرينو کې دشمن به وي، نو هغه به لاړ شي هغه به بيا وژني. او عدم العلم بالمقيدات يا د متكلم علم په دغه مقيداتو باندې نه وي، د دغه فعل او نحو ذلك د اختصار لپاره يې نه وي ذکر کړي يا متكلم تنگ دلی وو، پريشان وو، مضطرب وو، خفه وو، او خفه سړی اوږد کلام نه شي کولی، نو مقيدات پريږدي

**واما تقييده** هر چې دي تقيد د هغه فعل چې واقع شوی وي مسند تقييد يې کوي بالشرط په شرط سره، اوس مثلُ سره شارح مثال بناني د هغه فعل چې واقع شوی وي مسند په شرط سره، نو يو غرض بې دا چې مثال بناني، دويم غرض تعميم ته اشاره کوي چې دا شرط عام دی مؤخر وي او که مقدم وي، مؤخر مثال مثل اكرمك ان تكرمني يا مقدم وي لکه او ان تكرمني اكرمك نو اوس دا تقيد د فعل په شرط سره کيږي چې واقع شوی وي مسند فلاعتبارات. د وجې داعتباراتو نه، د اعتباراتو تفسير کوي ماتن وحالات او د وجې د حالاتو نه، دي سره دفع د اعتراض کوي، چې هلکه اعتبار خو صفت د معتبر دی، نو صفت د معتبر د وجې نه ته څنګه تقييد د هغه فعل کوي. چې واقع شوی دی مسند په شرط سره کوي، حالانکه صفت د معتبر لپاره مقتضي دي نه وي کنه؟ نو ده جواب وکړو چې دلته مراد د اعتباراتو نه حالات دي، يعني هغه امور چې په جانب د مخاطب کې دي، او هغه معتبرات دي، نو ذکر د اعتباراتو شو او مراد ترينه معتبرات شو، ځکه چې حالات هغه شی دی، چې هغه احوال د مخاطب دي لکه انکار، خلو د ذهن، شك، نو دا امور معتبره شو، ځکه متكلم د دوی اعتبار کړی دی، ورنه نو اعتبارات خو صفات د متكلم دي، نو معتبر دي، نو د هغې د وجې نه تقيد د هغه فعل چې واقع شوی وي مسند هغه په شرط سره نه کيږي، بلکه د مخاطب د حال د وجې نه کيږي، نو په حالات سره يې ځکه تفسير وکړو، داسې حالات چې تقتضي چې هغه غواړي تقيده تقيد د دغه فعل چې واقع شوی دی مسند . به په دې شرط سره، لاتعرف نه شي پيژندلی دغه حالات او اعتبارات الابمعرفة ما مګر په پيژندګلو د هغه نسبت سره چې بين ادواته چې په مابين د ادواتو د شرط کې دی، هغه چې تا وپيژندل نو ته خودبخود به پيژنې چې دلته کې د مخاطب حال دا تقاضا کوي. د مخاطب حال دا تقاضا کوي، دا کوي، يعني سره دفع د توهم کوي، چې يا هلکه ادوات خو حروفو ته ويلی شي، نو د دې نه مراد صرف حروف شرط دي؟ نو کوم چې اسماء شرط دي هغه خو خارج شو لکه من شو ما شو، اذا شو، نو ده جواب وکړو چې يعني قصد کوي ماتن په دې ادواتو سره حروف الشرط واسماء چې هلکه حروف شرط وي او که اسماء شرط وي، هغه ما څه دی؟ **من التفصيل** د تفصيل نه، وقد بين ذلك ويل بيان کړی

نعميم ته اشاره کوي چې کله دا جنس به مطلق وي لکه متني مثال کې شو او که جنس مقيد وي لکه رانلونکي مثالونو کې شو نو بيو غرض د شارح داشو چې حاصل ددې مخکې متن بيانوي دويم غرض به جنس کې تعميم کوي چې جنس مطلقه وي او که جنس مقيده وي نو قصر د دوارو کيدلې شي دريم غرض د شارح دادې چې د **وقد يفيد** فائده بيانوي خکه چې قد داخل شوي دې په مضارع باندې او قد چې داخل شي په مضارع باندې نو تقليل فائده کوي نو ددغه قيد فائده بيانوي چې کله دا فائده کوي قصر دجنس او کله نه فائده کوي نو ددې قد دخول په يفيد . د دې قيد فائده بيانوي چې ماتن قد په دې يفيد ولې داخل کړو نو درې غرضونه شو

اول غرض ګورئ وائي **والحاصل** حاصل د متن داشو چې **ان المعرف بلام الجنس ان جعل مبتداء** لکه ته ووائي چې الامير زيد الشجاع عمرو نو **فهو مقصور على الخبر سواء كان الخبر معرفة** لکه الامير زيد او الشجاع عمرو شو **اونكرة** لکه **الامام من قريش** شو او **وان جعل** دغه معرفه بلام الجنس **خبرا** نو **فهو مقصور على المبتداء**، لکه زيد الامير عمرُالشجاع شو ، اوله فائده ئې بيان کړه

اوس هغه دويم غرض بيانوي **والجنس قد يبقى** تعميم ته اشاره کوي چې جنس کله ثابتيږي يځپل اطلاق باندې يعني مقيد په مفعول سره يا په حال سره يا په ظرف سره نه وي شوې خو جنس به مطلق وي **كما مر** په مخکې مثالونو کې تيرشو ، نو الامير زيد الشجاع عمرو دلته کې جنس امارت ، امارت مطلقه جنس شجاعت ، شجاعت مطلقه مقصور شو زيد پورې **وقد يقيد** او کله کله مقيد کيږي دغه جنس **بوصف** يعني جنس مقيده مقصور وي په يو شي پورې **اوحال** او ظرف او نحو ذلک په مفعول فيه له اومعه سره به وي نحو ذلک داشو مثالونه داسې شو **نحو هوالرجل الكريم** ګوره جنس رجليت مقصور په هو پورې نه شو بلکه رجليت کريمه مقصور شو په هو پورې نو دا مثال شو د تقيد بوصف لپاره **وهو السائر راكبا** نو دلته کې قصر د جنس سائر په هو به دې زيد پورې دا د حال مثال شو بل **وهو الامير فى البلد** دا د ظرف مثال شو وائي دغه زيد امير دې په کلي کې نو دلته کې قصر د امارت فى البلد شو په دې **هو** پورې **ونحو ذلك** مثال نسائي **وهو الواهب الف قنطار** وائي دغه زيد ورکونکې دې زرګونو روپو لره نو اوس ګوره دلته کې قصر د جنس واهبيت اونه شو بلکه هغه واهبيت د الف قنطار مقصور شو په **هو** پورې نو دا د مفعول به مثال شو اوس **الف قنطار** خوك وائي چې دا هغه پيسو ته وائي چې په مقدار د ډك والې د خرمنې د غوا وي او خوك وائي الف قنطار عبارت دې د مال کثير نه او خوك وائي الف قنطار عبارت دې د يو لاکهو ديناړو نه هرڅنګه چې وي خو معنى داچې ډير شي ورکوي

اوس دليل څه دی چې کله قصر د جنس مطلق کيږي او کله قصر دجنس مقيده کيږي وائي **يع لمك معلوم بالاستقراء وتصفح تراكيب البلغاء** .

نو قرينه په دې نشته دې هسې ظاهرې د خولې خبره شوه او مقصود د عربو په داسې كلام د مخكښې نه دا وروستوني كلام خارجوي، د قبح نه ئې حسن ته خارجوي قصر مقصود نه وي **وقيل** قائل امام رازي صاحب دې هغه وائي په نحو زيد المنطلق كې او المنطلق زيد كې چې **الاسم متعين للابتداء** اسم چې زيد دې متعين دې ابتداء له پاره **تقدم** وي لكه زيد المنطلق او وائي يا **تاخر** وي لكه المنطلق زيد او وائي څكه **لدلالته** اى الاسم **على الذات والصفة متعينة للخبرية تقدمت او تاخرت** تقدمت داسې لكه المنطلق زيد تاخرت داسې چې زيد المنطلق **لدلالتها على امر نسبي** او كوم شي چې په امر نسبي باندې دلالت كوي هغه خبر وي **لان معنى المبتداء المنسوب اليه ومعنى الخبر المنسوب** والذات هى المنسوب اليه والصفة هى المنسوب فسواء قلنا زيد المنطلق او المنطلق زيد نو يكون زيد مبتداء والمنطلق خبراً اوس دا تعيين ددې قائل ددې قيل كوي وائي وهذا راي الامام الرازي نو دې سره په وعكسها دماتن باندې رد اوشو

اوس دى وائي ماتن **ورد** ما قال القيل چې **هلكه** مونږه دا ذات چې خبر ګرځوو نو دانه چې هغه ذات سره د لحاظ د ذاتيت نه مونږه خبر ګرځوو او هغه صفت سره د لحاظ د صفتيت نه مونږه مبتداء ګرځوو . بلكه مونږ د ذات نه چې خبر ګرځوو نو دې ذات ته جامه د خبر اغوندوو نو بيا ئې خبر ذكر كوو د دې صفت نه چې مبتداء ګرځوو نو دې صفت ته جامه د ذات اغوندوو او مبتداء ئې ګرځوو وائي **بان المعنى الشخص الذى له الصفة** المنطلق زيد معنى داده چې هغه شخص چې دهغه لپاره صفت د انطلاق دى **صاحب الاسم** نو صاحب الاسم وصف شو **يعنى** اى الماتن **ان الصفة** چې **للمنطلق** دې **تجعل دالة على الذات ومسندا اليها والاسم تجعل دالا على امر نسبي ومسندا**.

ماتن بله مسئله كوي **واما كونه** تعين د مرجع ته ئې اشاره وكړه اى المسند **جملة** مسند به جمله ولې وي؟ وائي **فللتقوى** پس لپاره د تقويت د حكم هغه حكم. چې هغه عبارت دې د ثبوت نه په قضيه موجبه كې او د سلب نه په قضيه سالبه كې دهغې د تقويت لپاره، د تقويت مثال داسې شو **نحو زيد قام** داپه موجبه كې يا **ما زيد قام** شو د په سالبه كې او يا سبب د كيدو د مسند د جمله كيدلو دادې **چې اولكونه سببيا** او يا دا مسند مسند سببي وي لكه **نحو زيد ابوه قائم** نو دلته كې دا مسند چې جمله واقع شوي مسند سببي دې ګوره د مسند د جمله كيدلو لپاره دا هر يو مستقل سبب شو . تقويت خان له سبب دې لپاره د كون د مسند جمله او سببي خان له علت دې لپاره د كون د مسند جمله او د افراد لپاره چې دا علت ګرځي نو مجموعه من حيث المجموع يعنى انتفاء د دواړو چې **سببيت منتفي** شي سره د تقويت نه نو د دې مجموعه انتفاء علت لپاره د افراد.دې ماتن وويل **كما مر** لكه چې تير شوي دي

**من** سره شارح تعيين د **ما مر** كوي څكه ما مر خو ددې ځاى نه واخلې تول كتاب دې تر بسم الله پورې

اوس **سواء كان** برابره خبره ده چې دغ
مسند غواړم نو نه زما مسند نې ماته ستا اسناد شوي دي اوس **سواء كان** برابره خبره ده چې دغ
مسند **خاليا عن الضمير** خالي وي د ضمير نه لكه ته **زيد حيوان** ووائي نو دلته كې حيوان خو زيد خان ته
راواړولو .خو ليكن څه تقويت نه دي راغلي **او متضمنا له** او يا متضمن وي دې ضمير لره لكه زيد قائم
شو نو **فينعقد بينهما** نو موجوديږي په مابين ددې مسند او مسند اليه كې **حكم** يعنې نسبت ثبوتي يا
نسبت سلبي خو نفس نسبت سلبي يا ثبوتي څه تاكيد ماكيد په كې نشته دي
اوس **ثم اذا كان متضمنا** وائي پس د هغه نه كله چې وو دغه مسند متضمن **لضميره** لپاره د ضمير راجع
مبتدا ، ته لكه **قام** كې . **قام** كې ضمير دي او بيا راجع دې مبتدا ، ته چې زيد دې معترض راغلو شو
نې وكړه چې هلكه ضمير خو په **زيد قائم** كې هم شته دې حالانكه هلته كې خو تقويت نشته دې نو
جواب وكړو چې داسې ضمير چې **معتد به** وي المعتدبه چې د ضمير نه مراد ضمير معتد به مراد دې
او په **زيد قائم** كې دا ضمير غير معتدبه دې اوس معتد به څه ته وائي او غير معتدبه څه ته وائي وائي
معتد به ضمير هغه ته وائي چې **هغه** مشابه د خالي سره نه وي او غير معتدبه ضمير هغه ته وائي چې
هغه مشابه دخالي سره وي نو د معتد به تفسيرني وكړو چې **بان لايكون مشابها للخالى عن الضمير فى زيد**
**قائم** خكه **زيد قام** مشابه دخالي عن الضمير چې زيد رجل دې دهغې سره نه دي په تغير كې په احوال
ثلاثه ؤ كې بلكه داسې ويلې كيږي چې **زيد قائم** انا قائم انت قائم نه بدليږي يو شانتې وي دا مثال
كمافي زيد قائم د منفي لپاره ګرخوي چې مشابه د خالي عن الضمير سره وي لكه په **زيد قائم** كې نو
دې زيد قائم كې هم ضمير شته دې خو دا غير معتدبه دې خكه دې مشابه د خالي عن الضمير سره
دې خكه دلته كې ويلې كيږي زيد قائم انت قائم انا قائم مغاير كيږي نه او هلته كې مغاير كيږي داسې
چې زيد قام انا قمت انت قمت نو معتدبه ضمير **هغه** شو چې **هغه** مشابه د خالي عن الضمير سره نه
وي په تغير كې په احوال ثلاثه ؤ كې او غير معتدبه **هغه** ضمير شو چې **هغه** مشابه دخالي عن
الضمير سره وي په تغير كې په احوال ثلاثو كې نو **صرفه** دا جزاء شوه د **ثم اذا كان** له پاره چې كله چې
وو دغه مسند متضمن ضمير معتدبه لره نو **صرفه** اړوي دې مسند لره ذلك الضمير الى المبتداء ثانيه
دا مسند بيا مبتداء ته راګرځي نو تكرار د اسناد راغلو يو ځل **قام** مسند شو زيد ته بيا د ضمير په
واسطې سره بيا مسند شو زيد ته نو **فيكتسي الحكم** نو پس حاصل كړو دې حكم دې نسبت ثبوتي **قوة**
خكه چې **كلما تكرر تقرر** شو نو قوت راغلو نو **فعلى هذا** نو پس بنا په ما قال د سكاكي باندې
**يختص التقوى** غرض ددې نه تفريع ده په مذهب د سكاكي باندې خاص شو تقوى **بما** په هغه مسند
پورې **يكون** چې وي دغه مسند **مسندا الى** ضمير المبتدا ، يعنې په دې مسند كې ضمير به وي راجع
به وي مبتدا ، ته هله تقويت راخي **ويخرج عنه** او خارج شو ددې تقويت نه **نحو زيد ضربته** دا خارج شو

نه دي شوي مګر د قام ذکر کولو لپاره معرى شويدي چې کلام مسنده دي ليکن داهسې مونږ شيخ ته پرتوګ جوړکړو ، په واقع کې د شيخ مذهب خراب دي دا هسې شليدلي پرتوګ ته توتي لګول دي ولن يصلح العطار ما افسده الدهر چې يو سړي د امتداد زماني د وجې نه بوډا شي بوني لګولو خوشبوي سره هغه نه صحيح کيږي که ته ورته ډير پالش ولګوي ورکړې خوشبو ولګوي خو هغه خوانيږي نه هغه بوډا شوي وي نو د شيخ مذهب ضعيف دي خو مونږ په کې توتې د مانحن فيه لګوو الا لحديث مګر د کلام مسند به لپاره فيما نحن فيه قد نوى اسناده اليه وائي يقيناً نيت شوي دي د اسناد ددې حديث دي اسم ته چې مبتداء ده نو اوس تا زيد وويلو نو اجمالاً زړه ته راغلل چې يا هلکه د زيد نه وروستو يو کلام به ذکر کيږي هغه به ده ته مسند وي نو وروستو تا تفصيل وکړو ، قام دې وويلو نو دا حصول د شي بعد الاشعار او حصول د شي پس د اشنائيت نه راغلو پس د مانوسيت نه راغلو او حصول د شي بعد المانوسيت اقوى وي نو قوت په کې راغلو نو تقويت د حکم په کې راغلو ، نو فاذا قلت زيد نو اشعرت قلب السامع داسې چې بانك تريد الاخبار عنه اى عن زيد نو فهذا پس دغه اتيان په زيد باندې چې خالي دي د عوامل لفظيونه ، توطية واسطه شوه له ددغه اخبار لپاره وتقدمة مقدمه شوه وسيله شوه للاعلام به په دې اخبار سره نو فاذا قلت قام نو دخل داخل شو اسناد فى قلبه اى قلب السامع دخول المانوس په شان د داخليدلو د اشنا شي او اشنا خاى ته سړى بلا تحاشا او بلا خوفه ځي قوي زړه سره ځي وهذا اشد او دا دخول فى قلب السامع دخول المانوس دا اشد دي ډير سخت لپاره ثبوت د محکوم به محکوم عليه لره وامنع من الشبهة والشك.

سوال يا هلکه د شيخ په مذهب باندې مونږه پوهه نه شو چې د شيخ څه مطلب شو؟ نو شارح وائي چې پوهه نه شوئ نو زه تاسو پوهوم وبالجملة وائي اقول بالكلام المجمل ليس الاعلام بالشئ بغتة مثل الاعلام به اى بذلك الشئ بعد التنبيه عليه اى على ذلك الشئ والتقدمة او پس د وسيلي او مقدمې نه په دې باندې فلن ذلك وائي خکه پس دغه اعلام پس د تنبيه او پس د تقدمې نه يجرى مجرى تاكيد الاعلام فى التقوى والاحكام اوس د سکاکي اود شيخ په مذهب کې فرق ته اشاره کوي د سکاکي په نزد باندې زيد ضربته او زيد مررت به د تقويت نه خارج وو او سببيت کې داخل وو مسند ئې جمله وو د سببيت د وجې نه . او بنا په مذهب د شيخ باندې فيدخل فيه نحو زيد ضربته ومررت به دا هم په کې داخل شو .

اوس هغه اخري ځلورمه خبره کوي دفع د اعتراضينو دا اول اعتراض راغلو چې يا هلکه ته وائي چې مسند چې جمله ذکر کيږي نو د دوو علتونو د وجې نه يا د تقويت د وجې نه او يا د سببيت لپاره زه به درته اوښايم چې مسند به جمله وي اونه به په کې مقصود سببيت وي اونه به تقويت وي هغه لکه ضميرشان کې هو زيد عالم هو مبتداء شوه او زيد عالم ئې خبر مسند جمله ده نه دلته کې تقويت شته

**وظرفيتها لاختصار الفعلية** ځكه زيد فى الدار دا مختصر دې د زيد ثبت فى الدار نه نو ظرفيت دې جملې لپاره د اختصار د جمله فعليه د وجې نه دې وائي **لانها** اى الظرفية ضمير د هې ظرفيت ته راجع دې **مقدرة بالفعل** دا مؤول دې په فعل سره په مذهب اصح باندې چې مذهب د بصريانو دې. مقدر معنى مؤول دې په فعل پورې په مذهب اصح باندې دليل د اصح دادې وائي لان الفعل هو الاصل فى العمل دليل کې اختصار دې وائي ځکه چې متعلق عامل وي په متعلق کې او اصل په عمل کې فعل دې نو ددې د وجې نه متعلق د ظرف به فعل وي

**وقيل** سره د اصح مقابل ذكر كوي چې قيل دې، مذهب د كوفيانو **وقيل** دا ظرف مقدر دې **باسم الفاعل** ثابت پورې زيد ثابت فى الدار دې ځکه چې **لان الاصل فى الخبر ان يكون مفردا** او افراد باندې دلالت اسم فاعل كوي اوس دې ترجيح وركوي مذهب اول ته چې **ووجه الاول** وائي ترجيح وركړې شوې ده مذهب اول ته **بوقوع الظرف صلة للموصول** كله كله ظرف صله لپاره د موصول واقع كيږي نو هلته كې تعلق اسم فاعل پورې صحيح دې ځکه صله د موصول نه وي مگر جمله لكه په **نحو الذى فى الدار اخوك** نو اوس دلته كې **ثابت فى الدار** نه شي ويلې دلته كې متيقن دې چې الذى ثبت فى الدار اخوك اوس كوفيان ددې نه جواب كوي **اجيب** شارح وائي په كوفيانو باندې دغه دليل سبب د ترجيح نه شي كيدلې ځکه كوفيان وائي چې كوم ظرف چې صله واقع شي هلته كې مونږه متفق يو چې هلته هغه به متعلق وي فعل پورې خو كوم ظرف چې خبر واقع شي په هغې كې مونږ كلام كوو نو دا دليل او سبب لپاره د ترجيح په مذهب د كوفيانو نه شي كيدلې وائي **واجيب** جواب ترې كړې شوې دې چې **ان الصلة عن مظان** د مواضعو د گمان د جملې نه دې او په خلاف د خبر نه زمونږ كلام په خبر كې دې.

اوس دې شارح شبه كوي په ماتن باندې او ځان له خې خو شبهې دوه دې يو شارح په كې كړې ده او يوه د بهر نه ده په كې چې كومه شارح شبه كړې ده نو هغه داده چې **لانها** كې ضمير د هې ظرفيت ته راجع دې نو ظرفيت وائي هغه ظرف ته سره د فعل نه نو اوس ترجمه وكړه **لانها** وائي دغه ظرفيت چې ظرف سره د فعل نه دې مؤول دې په فعل پورې په مذهب اصح باندې نو دوه اعتراضونه وارد شو يو اعتراض داچې بيا په مذهب غير اصح باندې دا **ثبت** فى الدار دغه ظرفيت به متعلق وي **ثابت** پورې او دا خو مذهب غير اصح نه دې ځکه چې متعلق به ثابت پورې فى الدار فقط دې ثبت فى الدار نه دې ثبت فى الدار هغوى د ثابت پورې متعلق نه وائي نو وائي چې **لانها** نه وو يكار **لانه** هو يكار وو چې ماتن ويلې وې نو چې هونې ويلې وې نو **هو** ضمير به ظرف ته راجع وو نو دغه فعل ظرف مقدر دې په فعل پورې په مذهب اصح باندې او غير اصح وائي نه شبه فعل پورې دې ولو قال الماتن **انه الظرف** يعني **انه الظرف** اسم ظاهر سره ئې ويلې وې مقدر بالفعل على الاصح لكان اصوب نو دا قول به ډير

اصوب و خکه **لان ظاهر عبارته** ای الماتن **يقتضی ان الجملة الظرفية** خکه **هی** ضمير خو جمله ظرفيه نه راجع دي او جمله ظرفيه داده چې ظرف سره د فعل نه دا جمله ظرفيه مقدر ده په اسم فاعل پوري **علی القول الغير الاصح ولا يخفی فساده** او دا مذهب د قول غير اصح نه دي

دويمه شبه د بهر نه دا واردېږي چې **الا هی** کې تا ضمير ظرفيت ته راجع کړو او مراد د ظرفيت نه جمله ظرفيه شوه جمله ظرفيه ديته وائي چې فعل سره د ظرف نه نو دا ظرفيت مؤول دي په فعل پوري؟ نو بيا خو ظرف لپاره په مذهب اصح باندې دوه فعلونه پکار شو او حالانکه دا خو مذهب اصح نه دي چې ظرف متعلق کيږي دوو فعلينو پوري نوولې يو فعل کافي نه دي

نو تاسو جواب وکړئ چې دلته کې مجاز دي ذکر د کل دي مراد ترې نه جزء دي **الا هی** دغه ظرفيت خو کل شو چې ظرف سره د فعل نه مراد ترې نه صرف ظرف دي جزء.

**واما تاخيره** تعيين د مرجع کوي هر چې دي تاخير د مسند وائي **فلان ذکر المسند اليه اهم** وائي دا د دې وجې نه چې ذکر د مسند اليه اهم وي او اهم مقدم وي نو مسند اليه به ته مقدم کوې نو چې مقدم دې کړو نو مسند خود بخود مؤخر پاتې شو. او ذکر د مسند اليه اهم وي خکه **کما مر** لکه مخکې تير شوي دي په نکته د تقديم د مسند اليه کې.

**واما تقديمه** هرچې تقديم د مسند کوي خکه کوي **فلتخصيصه بالمسند اليه ای لقصر** شارح اشاره کوي چې دلته کې تخصيص په معنی د قصر سره دي اوبل اشاره کوي چې تخصيص او قصر دواړه مترادفين دي اودريم اشاره کوي چې دلته کې باء داخله ده په مقصور باندې په مقصور عليه باندې نه ده داخله نو مسند اليه مقصور شو او مقصور عليه نه شو نووائي **ای لقصر المسند اليه علی المسند** سوال هلکه بنديدل د مسند اليه په مسند باندې څنګه به کيږي؟ وائي **علی ما** په **هغه طريقې** سره **حققناه** چې مونږ ثابته کړي ده دا طريقه په ضمير فصل کې لکه **زيد هو القائم** ددې معنی دا چې دا زيد مقصور دي په قيام پوري متجاوز نه دي د قيام نه قعود ته دا معنی ده هلته کې تيره شوې ده اوس دا دليل وائي د دې مخکې دعوې لپاره چې قصر د مسند اليه په مسند بلندې ولې کيږي؟ څنګه راځي وائي **لان معنی قولنا تميمی انا** اوس دلته کې تميمی مسند مقدم شو په انا مسند اليه باندې نو ددې مطلب دادې چې **هو** دغه متکلم **مقصور علی التميمية لايتجاوزها** نه دي متجاوز ددې تميميت نه **الی القيسية** نو يا قصر افراد دې او يا په کې قصر قلب دې که مخاطب عقيده د شرکت ساتلې وه نو قصر افراد شو او که قيسيت نې ساتلې وو نو قصر قلب شو مثال داسې چې تقديم شوې وي د مسند لپاره د قصر د مسند اليه په مسند پوري وائي **نحو لافيها غول نو فيها** دا مسند مقدم شو او **غول** مسند اليه مؤخر شو. نو معنی دا شوه چې دا عدم غول مقصور دې په خمور الجنة پوري نه دې متجاوز بل هيڅ شي ته او ماتن چې

ورسره دا الگوي چي اى **بخلاف خمور الدنيا** ددي نه غرض يودادي چي ماتن اشاره كوي چي دا قصر حقيقي نه دي اضافي دي يعني عدم غول مقصور دي په خمورو د جنت پوري متجاوز نه دي د خمور الجنة نه خمور د دنيا ته بلكه خمورو د دنيا ته غول متجاوز دي نو يوئي اى سره ديته اشاره وكړه چي قصر اضافي دي حقيقي نه دي په نسبت سره كل ماعدا ته نه دي بلكه بعضي ماعداته دي چي خمورد دنيا دي دويم غرض د ماتن اى سره دفع د اعتراض كوي اعتراض دا وارد شو چي يا هلكه تا دا وويل چي دلته كي دا عدم غول مقصور دي په خمور د جنت پوري متجاوز نه دي د خمورو د جنت نه عدم غول متجاوز نه دي بل هيڅ مشروب ته نو بيا خو نورو مشروباتو د جنت كي خوبه غول وي نو سردردي به وي التي به وي حالانكه نورو مشروباتو د جنت كي هم عدم غول دي؟ نو دا جواب وكړو چي دلته كي قصر حقيقي نه دي قصر اضافي دي، **بخلاف خمور الدنيا** خلاف لپاره دليل واني چي دا په خلاف د خمورو د دنيا دي **فان فيها غول**.

**فان قلت** سره شارح شبه كوي تبكاره شبه د شبهي حاصل داچي هلكه كوم چي مسند دي نو هغي پوري قصر د مسند اليه نه دي راغلي اوكوم پوري چي قصر د مسند اليه راغلي دي نو هغه مسند نه دي هغه جزء د مسند دي واني څكه چي مسند **فى** چي جار دي سره د مجرور نه چي **ها** ضمير مجرور دي دا مجموعه مسند دي او دي پوري خو قصرد عدم غول نه دي شوي او قصر د عدم غول چي شوي دي نو **ها** پوري شوي دي چي راجع دي خمورو د جنت ته او هغه خو مسند نه دي **هغه** جزء د مسند دي نو كوم چي مسند وو هغي پوري قصر د مسند اليه نه دي راغلي اوكوم پوري چي قصر د مسند اليه راغلي دي نو هغه مسند نه دي بلكه جزء د مسند دي نو واني چي **فان قلت المسند هو الظرف** شبه هلكه ظرف نه كوم مراد دي **ها**؟ واني نه نه اعنى **فيها** دا **مجموعه والمسند اليه ليس بمقصور عليه** او مسند اليه په دي مجموعه پوري نه دي مقصور **بل على جزء** بلكه په يو جزء باندي مقصور دي منه ددي ظرف نه **اعنى الضمير المجرور الراجع الى خمور الدنيا** نو مثال مطابق د ممثل سره نه شو.

**قلت** سره شارح جواب كوي حاصل د جواب په منع سره كوي چي يا هلكه په دي **لا غول فيها** كي دوه احتمالين دي، يو خو دا قضيه معدوله ده خو په دي معدوله كيدلو كي دوه احتمالين دي، يا دا معدولة الموضوع ده، او يا دا معدولة المحمول ده كه معدولة الموضوع شي نو دا حرف نفي چي **لا** دي جزء شو د غول نه نو بيا موضوع عدم غول شو او يا دا معدولة المحمول ده، يعني دا **لا** جزء دي د **فيها** نه نو بيا مسند اليه **غول** شو او مسند عدم حصول د غول فى خمور الجنة شو، بهر حال دي دواړو باندي قصر صحيح دي كه معدولة الموضوع شي اوكه معدولة المحمول شي، نو واني **قلت المقصود ان عدم الغول** دا بناء شوي دي چي دا معدولة الموضوع شي دا عدم غول **مقصور على الاتصاف**

اليه په مسند پورې او قصر د مسند اليه په مسند پورې نو **لم يقدم الظرف** الذى هو المسند **على المسند اليه فى** په دې قول د الله تعالى كې چې **لاريب فيه** دې كه تقديم ئې كړې وې نو داسې به بې ويلې **الم يفل لاريب** الله داسې نه دې ويلې خكه **لئلا يفيد تقديمه** اى تقديم المسند **عليه** په دې مسند اليه باندې **ثبوت الريب فى سائر كتب الله تعالى** چې نورو كتابونو د الله كې ريب به وې نو خكه **بنفاء** بناء په دې باندې چې **على اختصاص عدم الريب بالقران** پورې راغلو ، نو ددې نه معلومه شوه چې دا عدم ريب مقصور دې په قران پورې متجاوز نه دې د قران نه بل كتاب د الله ته نو هلته ريب متجاوز شو ريب ثابت شو معترض راغلو شبه ئې وكړه چې ماتن **فى سائر كتب الله** ولې وويل **فى سائر الكتب** ئې ولې ونه ويل چې نسبت ئې الله ته په كې وكړو چې اضافت ئې الله ته وكړو نو دې جواب كوې چې **وانما قال** اى الماتن **فى سائر كتب الله تعالى لانه** خكه دا باقي كتب **المعتبر فى مقابلة القران كما ان المعتبر الخ** لكه معتبر په مقابله د خمور د جنت كې خمور د دنيا دې مطلق مشروبات نه دې دغسې دلته كې **وغيرها** او غير ددې مشروباتونه چې مطعومات دې

**اوللتنبيه** دې كې اشاره كوې شارح چې دا **او** عاطفه دې **عطف على تخصيصه** چې تقديم د مسند كيږې لپاره د تخصيص د مسند اليه يا د تقديم د مسند كيږې لپاره د تنبيه **من اول الامر** د اول الوهلة **نه على انه** چې دغه مسند خبر دې او نعت نه دې

**سوال**: هلكه تقديم سره ولې معلوميږې؟ او څنګه معلوميږې چې دا خبر دې او نعت نه دې وائې خكه **اذا النعت لا يتقدم على المنعوت** او دلته كې داخبر مقدم شوې دې نو دا معلوم شو چې دا خبر دې اونعت نه دې معترض راغلو شبه ئې وكړه په ماتن باندې چې بناء د متونو په اختصار باندې ده نو دا **من اول الامر** دې ولې ذكر كړو دې له څه حاجت وو؟ دا كافي وو چې **اوللتنبيه على انه خبر لا نعت** نو شارح وائې **وانما قال** اى الماتن **من اول الامر لانه** اى الشان **ربما يعلم ان** اى المذكور **خبر لانعت بالتامل فى المعنى والنظر الى انه لم يرد فى الكلام خبر للمبتداء** نو خود بخود به معلومه شي چې دا خبر دې څكه بل خبر شته دې نه خو دا توهم د اول الامر نه راخي **كقوله** اى قول حسان بن ثابت رضى الله عنه **له همم لا منتهى لكبارها**...

**وهمته الصغرى اجل من الدهر** وائې د رسول الله صلى الله عليه وسلم لپاره همتونه وو ارادې او قصدونه وو چې نه وه انتهاء د لويو ددې ارادو لپاره او قصد او اراده د رسول الله صلى الله عليه وسلم وړوكې غونده هغه لويه وه د ټولو اهل زمانه د همتونونه او ارادو نه

**اوالتفاؤل** او يا تقديم د مسند كولې شي د خوشحالولو د سامع لپاره **نحو: شعر**

سعدت بغرة وجهك الايام | وتزينت ببقائك الاعوام

وائې كاميابې شوې دې د ستا د مخ د سپين والې سره ورځې او عوام خلق د ستا په پاتې كيدلو سرا

شبه فی الخ ماتن بیانوي چې **لن الغرض من ذكره معه** شارح ورسره لګوي اې دې كې اشاره كوي ابراز

مرجعينو ته چې د **ذكره** ضمير چاته راجع دې او د **معه** ضمير چاته راجع دې دويم غرض د شارح بيا

د احتمالينو كوي په دې مرجع ګانو كې او دريم غرض د شارح دفع د اعتراض كوي چې هلكه د ذكره

ضمير مفرد دې او فاعل او مفعول دوه دي كه د **ذكره** ضمير هغې ته راجع كوي او كه د **معه** ض

راجع كوي هغې ته نو هغه تثنيه دي اود **معه** ضمير مفرد دې نو شارح جواب وكړو په **كل** سره تو

تفسير دري غرضونه شو اى **ذكر كل من الفاعل والمفعول مع الفعل** دا اول احتمال شو او **ذكر الفعل مع**

**كل منهما** دا دويم احتمال شو نو غرض څه دې؟ الغرض كې چې كوم ذكر دې هغه دادې چې **الا**

**تلبسه به** اى سره غرض د شارح دادې چې تعيين د مرجعينو كوي چې د **تلبسه** ضمير چاته راجع دې ا

د **به** ضمير چاته راجع دې او دفع د اعتراض هم كوي چې د **به** ضمير خو مفرد دې او فاعل او مفعول

خو دوه دي نو جواب ئې وكړو چې اى تلبس الفعل **بكل منهما** اى الفاعل والمفعول

معترض راغلو شبه ئې وكړه چې هلكه په دې تلبس كې څه فرق به نه وي؟ نو چې تلبس كې فرق نه شو

نو بيا ته يو ته فاعل او بل ته مفعول ولې وائي؟ نو شارح جواب وكړو چې طريقه د تلبس كې فرق شته

دې وائي **اما بالفاعل** هرچې دې تلبس د فعل د فاعل سره نو **فمن جهة وقوعه عنه** نو پس په جهت د

وقوع ددې فعل دې ددې فاعل نه

**واما المفعول فمن جهة وقوعه عليه لا افادة وقوعه مطلقا** شارح ورسره لګوي اى **ليس** دې كې ئې اشاره وكړه

چې دا **لا** په معنى د ليس سره دې يعني لامشابه بليس دې او دائي چې وسره ولګولو چې **الغرض من**

**ذكره معه** دې كې ئې اشاره وكړه چې اسم د **ليس** محذوف دې اود **لا** محذوف دې اى **ليس الغرض من**

**ذكره معه** نه دې غرض د ذكر دې فعل نه يا ذكر د هر واحد ددې نه د فعل سره **افادة وقوع الفعل** دې كې

ئې ابراز د ضمير ته اشاره وكړه د ضمير د **افادة وقوعه** د متن وقوع د فعل څه معنى؟ **وثبوته** ثبوت د

**فعل فى نفسه** دائي غرض نه دې چې ته ذكرد فعل سره د فاعل او مفعول وكړې او غرض ستا وقوع د

فعل او ثبوت دفعل فى نفسه وي **مطلقا** ترجمه كوي چې دلته كې مطلقا په معنى د خاليا سره دې په

معنى د مجردا سره دې هغه دا چې **من غير ارادة** بغير د اراده كولو ددې نه چې **لن يعلم** چې معلوم كړي

سامع **ممن وقع وعلى من وقع** ددې نه به خالي وي نو دا غرض نه دې ګوري چې ته ذكر د فعل سره د فاعل

او مفعول وكړې ددې لپاره چې صرف د فعل وقوع وثبوت فى نفسه لپاره او مقصود ستا بيان د **من**

**وقع او على من وقع عليه** نه وي

اوس شارح د متن لپاره دليل وائي چې دا غرض ولې نه دې. د ليس او **لا** لپاره دليل وائي نفي لپاره

وائي خكه **الا لواريد ذلك** كه ذكر د فعل سره د فاعل اومفعول نه ته كوې ددې غرض لپاره چې فعل

ددي دې وروستو ذکر کړی وی نو دی جواب کوي چې لانه بکثرة وقوعه واني دغه ثاني په اعتبار د
کثرة وقوع سره اشد اهتماما بحاله زیات دې په اعتبار د احترام کولو سره په حال ددې باندې
دویم جواب دا چې د ثاني مثال د قران نه وو او د اول مثال د شاعر د قول نه دې نو د قران کریم د
احترام واکرام لپاره ددې ثاني مثال ئې مقدم کړو او د اول مثال ئې وروستو کړو
او س متن دادې چې السکاکي معترض شبه وکړه چې هلکه السکاکي خو مفرد دې او مفرداتو کې
خو افاده او استفاده نه وي السکاکي څه ځیز شو؟ جواب ئې وکړو فکر اې هلکه السکاکي مبتدا
ده او خبر ورله محذوف دې
او د شارح غرض د في بحث افادة اللام نه دادې ۱ تعیین د محل د ماذکر د سکاکي کوي چې هغه کوم
ځیز چې ذکر کړې دې سکاکي دهغې محل څه دې؟ کوم ځای کې ئې ذکر کړې دې؟ دویم غرض د
شارح دادې بیان د محلینو دې د ماذکر د سکاکي لپاره چې سکاکي چې دا خبره ذکر کړې ده نو په
دوو ځایونو کې ئې ذکر کړې یو په بحث د افاده د لام استغراق سره او دویم په بحث د حذف د مفعول
به کې نو یو غرض تعیین د محل دهغه ذکر د سکاکي کوي او دویم بیان د محلینو کوي چې د هغه ما
ذکر د سکاکي لپاره چې سکاکي چې دا کلام ذکر کړې نو په دوو ځایونو کې ئې ذکر کړې دې دریم
غرض دادی چې ماتن ویلي دي چې السکاکي ثم اذا کان المقام خطابیا شبه اې هلکه ثم خو تراخي
غواړي د تراخي لپاره راځي او تراخي مترخ عنه غواړي نو ددې مترخ عنه د سکاکي په کلام کې کوم
ځای کې دې؟ نو شارح مترخ عنه ذکر کوي چې دا کوم بحث چې سکاکي ذکر کړې دې په لام
استغراق کې هغه مترخ عنه دې او کوم کلام ئې چې ذکر کړې دې په بحث د مفعول به کې مترخ
معطوف دې نو ثم صحیح شو ځکه بحث اول مترخ عنه شو او بحث ثاني مترخ الیه شو نو دې
غرضونه شو په بحث د افاده د لام کې استغراق لره یو په افاده د لام استغراق کې سکاکي ویلي دي
چې انه شان دادې اذا کان المقام خطابیا خطابي معنی ظني یعني داسې مقام چې هلته کې فائده کوي
ظن په مدعی باندې نه یقین لااستدلالیا نه وي مقام استدلالي چې فائده کوي یقین لره په مدعی او
نتیجه باندې مثال بیا سکاکي دا ذکر کړې دې کقوله علیه السلام المؤمن غر کریم مؤمن سپین داګې
دې هره خبره په داګه کوي زړه کې څه پټوي نه چې څه ئې په زړه کې وي هغه په خله راوباسي او
منافق دوه لیشتي ښکته دوب وي او کریم ښه اخلاقي وي معزز اخلاقو والا وي والمنافق خب لئیم او
منافق دهوکه باز وي خله باندې یوه وائي او زړه کې ئې بله وي نو دا دهوکه شو لئیم بداخلاقه وي نو
المؤمن کې دا لام استغراقي شو او المنافق کې لام استغراقي شو او دا مقام مقام خطابي دې ځکه چې
رسول الله صلی الله علیه وسلم چې دا خبره کړې ده نو د مؤمن په تندې باندې پورې لیکلي نه دي چې

**مطلقا** چې خالي وي د عموم او خصوص نه او دارنګه خالي وي د تعلق بالمفعول نه **مع التعميم فی افراد الفعل** ځکه **دفعا للتحكم** اللازم **من حمله** ای من حمل ذلك الفعل علی فرد دون اخر تحکم ترجیح بلامرجح، ترجیح د احد المتساویینو په اخر باندې راځي

شارح ورسره ولګول **وتحقيقه** د تحقیقه نه یو غرض د شارح دادې چې ددې متن لپاره دلیل وائي چې دغه مقام یا فعل ولې فائده کوي دغه ثبوت فاعل ته یا نفي ددهٔ نه مطلقا سره د تعمیم نه په افرادو د فعل کې دویم غرض د شارح د تحقیقه نه دا تمهید اړدي ددې راتلونکي اعتراض لپاره چې **لایقال** سره ئې ذکر کوي نو وائي وتحقیقه تحقیق ددې افادهٔ مذکوره دادې چې ان معنی **يعطی** چې فلان یعطي ته ووائي **حينئذ** په وخت د کیدلو د غرض کې ثبوت فاعل ته یانفي دفاعل نه دې هغې داشوه چې **يفعل الاعطاء** یعنې فلانکي کار د ورکولو کوي،نو فلان یعطي په معنی د فلان یفعل الاعطاء سره شو چې دا د اعطاء صفت فلانکي ته ثابت دې نو **فالاعطاء** چې مصدر د یعطي دې **المعرف بلام الحقيقة يحمل** دا حملولې شي **فی المقام الخطابی علی استغراق الاعطاءات** په شمول د تولو اعطاءاتو باندې یعنې د هرڅه شي ورکول کوي دراهم، دنانیر ثوب، حدید ،د هرشي ورکول کوي اومقام خطابي دې ځکه چې یو سړي چاته چې اووائي چې **فلان يعطی** نو د حسن ظن د وجې نه وائي چې فلانکې ډیر سخي دې اګر که دهغه په مخکې ئې چاته څه ورکړي نه وي خو په هغه باندې د حسن ظن د وجې نه وائي یاد مینې د وجې نه وائي نوچې د حسن ظن د وجې نه وائي نو دا مقام خطابي شو برهاني نه دې ځکه الله دهغه په تندې باندې نه دې لیکلي قدرتی چې دا فلانې سخي دې ما دې سخي پیدا کړې دې خود حسن ظن د وجې نه وائي نومقام خطابي شو **وشمولها** او ځکه **مبالغة** لپاره د قصد د مبالغې په مدحه د فلانکي کې ځکه چې یو سړې صرف دراهم دنانیر ورکوي نو دهغه دومره مدحه نه ده اوچې هرڅه ورکوي نو دا په مدحه کې مبالغه شوه اوس دا ځکه، د تحکم ترجمه کوي **دفعا للتحكم** ماتن چې ویلي وو چې تحکم عبارت دې د ترجیح بلامرجح نه، وائي. **فلايلزم ترجيح احد المتساويين علی الاخر** ځکه دلته کې مقصود فلانکي ته اعطاء ثابتول دي اوچې اوس ته د اعطاء نه اعطاء الدراهم یا د نانیر اخلې نو دا ترجیح بلا مرجح دي.

اوس یې تمهید کېښودلو او دلیل ئې وویلو نو اوس لاترې لرې کوئ **يقال** سره شبه کوي چې یا هلکه ستا کلام کې تدافع راغله تا د مطلقا ترجمه دا کړې ده چې خالي وي د تعمیم نه په افرادو د فعل کې او متن کې تا دا وویل چې **مع التعميم فی افراد الفعل دفعا للتحكم** نو تدافع راغله مخکې مطلقا په متن کې خو تا ترجمه داسې کړې ده چې خالي وي د تعمیم نه د تعمیم نه به خالي وي **مطلقا من غير اعتبار عموم وخصوص فيه ومن غير اعتبار تعلقه بالمفعول** ص١٢٨ اخر سطر ٣ د لاندې طرفه او دلته کې تا وویل **مع**

مخصوصه پوري نو دا فعل مطلقا **مكنى عنه** ملزوم به وي او دا فعل متعلقه بمفعول مخصوص كنايه او ورسره لازم به وي نو انتقال دملزوم نه لازم ته راغي

**كقول البحتري** تعيين د شاعر ماتن پخپله كړي دي غرض د شاعر دادي چې في المعتز بالله اي مدحه، چې دی قابل د امامت اود بادشاهۍ دی **تعريضا بالمستعين بالله** او په حال كون ددې بحتري كې چې دی تعريض كوي په مستعين بالله باندې چې هغه قابل د امامت اود بادشاهۍ نه دې اگر كه دواړه ورونه وو ليكن د الله قانون دې چې دا يو قابل د بادشاهۍ او مشرئ وو او دا بل نه وو

**شجو حساده غيظ عداه** **ان يرى مبصر ويسمع واع**

واني دا خفگان دی د حاسدانو د ممدوح چې ممدوح معتز بالله دې د ممدوح حاسدان خفه دي او غصه د دښمنانو د ممدوح چې خفه دي او ددۀ دا دښمنان چې غصه دي ددې وجې نه نه دي دا خبر دې ان يرى الخ واني خكه ويني يو ليدونكې محاسن د ممدوح، اوري يو ساتونكې د خبرې اخبار د ممدوح واني وجهئ داده چې چرته په دنيا كې څه خيز چې ليدلې كيږي هغه ټول محاسن د ممدوح دي نو د دۀ په حاسدانو او دښمنانو باندې اور لگيدلې دې چرته چې سړي په دنيا كې څه اخبار لولي نو د معتز بالله اخبار دي نو په دښمنانو اور لگيدلې چې هلكه زمونږ هيڅ بحث نشته ټول ددۀ بحث دی

**اى ان يكون** دې سره دفع د اعتراض كوي چې يا هلكه **ان يرى** خو خبر دې د **شجو** لپاره نو دا خو حمل د مبدئ راغلو په مبدئ باندې او دې كې خو ترادف هم نشته دې خكه **شجو** او رؤيت كې ترادف خو نشته دې او حمل د مبدئ په مبدئ باندې هله صحيح كيږي چې دواړه مترادفين وي يا يو مبداء فرد حسي دبل لپاره وي هغه هم نشته دې نو دې واني چې يا هلكه دلته كې حمل اشتقاقي دې مو طاتي نه دې **اى ان يكون ذو رؤية وذوسمع** واني موجود شي خاوند د ليدلو او خاوند د اوريدلو نو **فيدرك بالبصر محاسنه** نو دا مفعول د **يرى** لپاره شو **وبالسمع اخباره الظاهرة** او په غوږونو سره اخبار د ممدوح چې ظاهر دي او دال دي په استحقاق ددې ممدوح باندې امامت لره **دون غيره نو فلايجد** متوهم تو هم وكړو چې **فلايجد** كې دا فاء فاء فصيحيه به وي جزاء د شرط محذوفه به وي خكه جزم شويدې نو دۀ جواب وكړو چې **نه نصب يا نصب عطفا معطوف دې على يدرك المنصوب** هغه د عطف د وجې نه په **يكون** باندې منصوب وو نو دا هم منصوب شو **اى فلا يجد** دې كې اشاره كوي چې **فلا يجد** كې ضمير چاته راجع دې واني **اعداءه وحساده** يعني اعداء او حسادو ته پس نه به مومي دا دښمنان د ممدوح او حاسدان د ممدوح هغه كسان چې هغوی ارمان د امامت كوي **الى منازعته** منازعت د ممدوح ته **سبيلا** څه لار

**فالحاصل** سره شارح تطبيق دمثال د ممثل سره كوي واني حاصل داشو چې **انه** واني بختري شاعر نزل يرى ويسمع خكه دا دواړه افعال متعديه دي دا دواړه ئې نازل كړي په **منزلة اللازم** كې داسې چې د

چې عورت مراد دې تول حديث دادی **كنت اغتسل ورسول الله صلى الله عليه وسلم من اناء واحد ما رايت منه ولا راي مني اى العورة، ان عاما فعام وان خاصا فخاص** دا ددې قبيلې نه دې چې ان شرا فشر وان خيرا فخير كافيه كې تاسو ته تير شوې دې
**ولما وجب التقدير** دې سره شارح دفع د اعتراض كوي چې يا هلكه هر كله چې تقدير واجب شو نو بيا **ثم الحذف اما للبيان** كی اشتغال دا بما لا يعني شو دا اشتغال ماتن بيا ولې كړې دې؟ نو شارح جواب كړې چې دا مالايعني نه دې دا يعني دې دا نكات د تقدير اود حذف لپاره وائي نو وائي **ولما وجب التقدير** نو **تعين انه مراد** نيت كې به مراد وي **وحذف** او محذوف به وي **من اللفظ لغرض** اوس لفظ نه ئې خكه غورخوي نو فاشارالى تفصيل الغرض بقوله چې د لفظ نه ئې خكه غورخوو
اوس د حذف د مفعول لپاره ماتن نكات وائي يو نكته ئې دا وويله چې **ثم الحذف** پس د هغې نه حذف د مفعول **اما للبيان بعد الابهام** چې ته حذف د مفعول وكړې نو بيان بعد الابهام راخي او كه ذكر وكړې نو بيان بعد الابهام نه راخي نو ددې وجې نه متكلم مفعول حذف كوي چې بيان بعد الابهام راشي خكه چې ابهام بعد البيان اوقع فى الذهن دې ابهام نه مراد اجمال دې بيان نه مراد تفصيل دې هغه راخي **كما فى فعل المشية** نو حذف د مفعول چې راخي لپاره د بيان بعد الابهام نو دهغې لپاره دوه شرائط دي دوه شرطونه وجودي دي او يو شرط عدمي دې يو شرط ماتن ذكر كړو چې فعل د مشيت ونحوها به وي چې محبت دې دا شرط وجودي شو دويم شرط وجودي شارح ذكر كوي ماتن نه وو ذكر كړې هغه دا دی چې **اذا وقع** كله چې واقع شي دا فعل د مشيت **شرطا** دا هم شرط وجودي شو خو شارح ذكر كړو چې دا فعل د مشيت وي او بل دې شرط واقع شوې وي ددې شرط لپاره شارح دليل وائي ددې خپل شرط لپاره چې دا فعل د مشيت شرط به ولې واقع شوې وي؟ وائي خكه چې **فان الجواب** خكه چې هغه جزاء دلالت كوي په دې مفعول محذوفه باندې دا ترجمه د عبارت ده چې يدل عليه خكه چې فعل د مشيت شرط شو نو شرط جزاء غواړي هغه جزاء به قرينه شي او بيان به شي ددې مفعول لپاره **يدل عليه ويبينه** نو وجودي دوه شرطونه لاړل دريم شرط عدمي وو هغه ماتن ذكر كوي **لكنه** ليكن دغه مفعول **انما يحذف** حذف كولې شي خو **مالم يكن تعلقه به** تعيين د مرجعگانو كوي اى تعلق فعل المشية بالمفعول غريبا ترڅوپورې چې نه وو تعلق د فعل د مشيت په مفعول پورې غريبا غُرْبِ ناشنا ممتنع نه وي نو هله، دريم دا شرط عدمي شو مثال دا سې شو **نحو فلو شاء لهداكم اجمعين** اى سره شارح هغه مفعول محذوفه ته اشاره كوي اى **لو شاء هدايتكم لهداكم اجمعين** نو هدايتكم مفعول حذف شو اوس دا مثال مطابق د ممثل سره دې يعني بيان بعد الابهام په دې كې راخي **فانه لما قيل** خكه چې پس شان دادې چې هر كله چې وويلې شو **لو شاء** متكلم او وويل **علم السامع ان هناك شيئا علقت المشية عليه**

حذف د مفعول د مشيت. پريخو دلى شوې دې دا معنى **مفعول المشية** چې پرېښودلې شوې دې په کې ذکر شوې دې، حذف ئې چې پرېښودلو نو ذکر شو د څه وجې نه؟ **بناء على غرابة تعلقها به** ددې فېلې نه نه دې بنا په دغه غرابت د تعلق د مشيت په دې مفعول پورې ددې وجې نه ترک د حذف نه دې شوې بلکه ترک د حذف وروستو شارح به وجه وائي چې ددې وجې نه شوې دې

چې دلته کې ترک د حذف د **على ما ذهب اليه** دا منفي سره لګوئ چې دې باندې څوك قائل شته دې ها؟ غرابت د وجې نه دې؟ وائي: او **على ما ذهب اليه صدر الافاضل** نو دوو خبرو ته ئې اشاره وکړه يو داچې دا ترک د حذف د غرابت د وجې نه دا مذهب د صدر الافاضل دې او دويم ئې اشاره وکړه چې د ماتن غرض دادې چې په دې صدر الافاضل باندې رد دې غرض د ماتن ته ئې هم اشاره وکړه **فى ضرام السقط** ضرام السقط د صدر الافاضل کتاب دې **هغه** داسې ويلې دي چې دلته غرابت داسې راغلو چې ان ابکى نه مراد **بکاء فکرى** دې او تعلق د مشيت بکاء فکري پورې غريب دې لکه څنګه چې تعلق د مشيت په بکاء د دم پورې غريب دې دغسې په بکاء د فکر پورې هم غريب دې وائي **من ان المراد لوشئت ان ابکى تفکرا بکيت تفکرا** نو ددې **ان ابکى** نه مراد بکاء فکري شو، نو وائي دې پورې تعلق غريب دې نو فلم يحذف اى الشاعر **مفعول المشيئة ولم يقل لوشئت بکيت تفکرا** څکه **لان تعلق المشية ببکاء التفکر غريب کتعلقها** په شان د تعلق د مشيت **ببکاء الدم** په مخکې شعر کې

اوس **لان المراد** دې راتلونکې متن کې دا دليل دې متن کې ددې مدعى کومه شوه؟ نو شارح اشاره وکړه چې مدعى ددې **فليس منه** دې چې مخکې متن کې تيرشو اى **وانما لم يکن من هذا القبيل** وائي دا قول دشاعر نه کيږي ددې قبيلې چې ترک د حذف د مفعول دمشيت د غرابت د وجې نه دهغې نه نه دې څکه **لان المراد بالاول** چې لوشئت ان ابکى دې دا اول دې دادې **البکاء الحقيقى** بکاء حقيقي ترې مراد دې **لا البکاء الفکرى** لکه صدر الافاضل چې وائي

اوس دوه دعوې شوې چې د اول نه بکاء حقيقي مراد ده او فکري نه ده مراد دليل پرې دادې چې دا: ارادې د شاعر نه خلاف دې څکه چې بکاء حقيقي نه اخلې نو د ارادې او قصد د شاعر سره موافق دې اوکه بکاء فکري اخلې نو د شاعر د ارادې او قصد نه خلاف دې وائي: **لانه** دې شاعر **لم يرد ان يقول لو شئت ان ابکى تفکرا بکيت تفکرا** دا مطلب نه دې **بل اراد الشاعر ان يقول الفانى النحول** برباد کړې دې ما لره خوار والي نحول خوروالې نرې توب ته وائي اوچ کړس لرګې پاتې شوې يم ما ژړا کړې ده اوچ شوې يم نو رطوبت وائي بالکل په ماکې ختم دې څومره رطوبت چې وو هغه ټول رابهکلې شوې دې او بهر ته راوتلې دې نو **فلم يبق منى غير خواطر** پس نه دې پاتې شوې زما نه بغير د سوچونو نه **تجول فى** چې هغه سوچونه خې او راځي په ماکې سرې چې ډير ضعيف شي نو په هغه باندې بيا وهمي بيماري

خروج عن البحث لازميږي خکه بحث د کلام د ماتن په مشيت کې دی، په مفعول د ابکی کې نه دی
دويم دادې چې ماتن داقول چې فلم يبق منی الشوق دانې په رد کې ذکر کړې دې په صدر الافاضل باندې
او صدر الافاضل کلام په مفعول د مشيت کې کړې دې د ابکی کې ئې نه دی کړی
وقيل يحتمل اوس ګورئ ددې اهمه خبره يو دا اوپيژنئ چې دې قيل او صدر الافاضل کې فرق څه دی؟
نو خوک وائې چې دې قيل او صدر الافاضل کې فرق دادې چې صدر الافاضل وائې چې ددې اول بکاء
نه مراد بکاء فکرې دې قطعا او دغه قيل وائې چې بکاء فکرې دې خو احتمالا داسې چې د بکاء
فکرې هم احتمال دې او د بکاء دمعي هم احتمال دې نو وائې د ماقال د صدر الافاضل هم احتمال
دې اود ماقال د ماتن هم احتمال دې دې وائې دواړه صحيح دې يو بل باندې ردونه مه ګوئ يوفرق
دادې دې وجې نه شارح په يحتمل سره ذکر کړې دې خوک وائې فرق په دې کې دادې چې
صدر الافاضل لوشئت ان ابکی تفکرا وائې خو اخوا ماده د دموع په کې پاتې شوې دې اوکه نه وي
پاتې شوې او دغه قيل وائې چې ان ابکی تفکرا او وائې ددې وجې نه چې ماده د اوښکو په کې پاتې
شوې نه ده لکه ويلې ئې دې چې لم يبق مادة الدمع فیّ، اوصدر الافاضل د شرط نه دې اينسودلې نو
صدر الافاضل ددې اول نه بکاء فکرې اخلې خو شرط په کې عدم بکاء د ماده دموعو نه ايږدي اودا
قيل شرط ږدې چې ان ابکي تفکرا هله دې چې ماده د دموع په کې پاتې شي
ليکن بنه خبره داده چې دا هسې پرتوګ غونډې جوړول شو ددې قيل اود صدر الافاضل لپاره دغه
قيل او صدر الافاضل يو شي دې حقيقتاً ومالاً سوال يا هلکه يو شي دې نو بيائې ولې معاد کړه
داقول د قيل نو تاسو وائې معاد کړې بې دې دې لپاره وفيه نظر شبهې لپاره نو وائې وقيل الخ ليکن
شارح اوس په دې باندې رد کوي وفيه نظر په دې کې نظر دې لان ترتب هذا الکلام وائې خکه د دويمه
مصرع مرتب ده په اول باندې، په فاء سره دې، فلو شئت ان ابکی بکيت تفکرا نو په فاء سره متفرع
دې نو ترتب ددې کلام چې دويمه مصرع ده علی قوله لم يبق منی الشوق باندې يابی هذا المعنی عند التامل
الصادق يابی خکه دې لان القدرة علی بکاء التفکر لايتوقف علی ان لا يبقی فيه غير التفکر خکه بکاء
فکرې موقوف نه دې په عدم بکاء د ماده د دمع پورې، ماده د دمع دې وی بياهم بکاء فکرې کيدلې
شي اوکه ماده د دمع نه وي نو بيا هم بکاء فکرې راتلې شي نو دا موقوف کول چې دا بکاء فکرې
خکه دې چې ماکې ماده د دمع نه ده پيدا شوې دانه صحيح کيږي فافهم کې اشاره شوه دقة المقام نه
واما للدفع توهم ارادة غير المراد يا حذف د مفعول کولې شي لپاره د دفع د توهم د اراده د غير مراد که نه
مفعول ذکر کړې نو هغې کې توهم د غير مراد شته دې او چې تا حذف کړو نو هغه توهم د غير مراد به
حذف شي يا هلکه دا واو په واما کې خو عاطفه دې معطوف عليه غواړي په چابانديې عطف دې

اگر که قرينه نشته دي چې حذف لپاره د تعميم دي خو مقام خطابي تعميم غواړي نو دا مقام خطابي
قرينه شوه د حذف او د تعميم دواړو لپاره نو چې قرينه شوه نو **فلا تعميم اصلا** صحيح نشو لکه شارح
وائي نو قرينه په حذف باندې او تعميم باندې مقام خطابي شو جواب وشو
**واما للرعاية** يا حذف د مفعول کولې شي لپاره د محافظت ساتلې **على الفاصلة** په اخري حصې د اياتونو
د قران کريم باندې فاصلې موافق کولو لپاره چې فاصله محفوظه شي نحو قوله تعالى **والضحى والليل**
**اذا سجى ما ودعك ربك وما قلى** نو دلته کې د **قلى مفعول** حذف شوې دې **اى ما قلاك** څکه چې د نورو اياتونو
اخري حرف فاصله الف مقصوره دې نو اوس که **ما قلاك** که ته ووائي نو بيا فاصله خرابيږي نو مفعول
د قلى نې حذف کړو
**و حصول الاختصار ايضا ظاهر** دې کې حذف د مفعول للفاصلة کې اختصار هم شته دې **واما لاستهجان ذكره**
يا حذف د مفعول کولې شي د وجې د قبيح گڼلو د متکلم نه **ذكر المفعول** اى متكلم ذکر د مفعول بند نه
گڼي **كقول عائشة** ما رايت منه تول حديث دادې **كنت انا ورسول الله صلى الله عليه وسلم** اغتسل من اناء
واحد وومه زه او رسول الله صلى الله عليه وسلم چې مونږه غسل کولو د يو لوښي نه **ما رايت منه** ما نه
وو ليدلې درسول الله صلى الله عليه وسلم نه **ولا راى منى** اونه ليدلې رسول الله صلى الله عليه وسلم
زما نه څه؟ **اى العورة** د يو بل عورت مونږه نه وو ليدلې
**واما لنكتة اخرى** يا حذف د مفعول کولې شي لپاره د نکتې اخرى د بلې څه نکتې لپاره حذف کولې د
شي هغه څه **كاخفائه** لکه پټول ددې مفعول شو د سامع نه اوس زه تاته وايم چې يا هلکه ما زيد
ليدلې وو که زه تاته ووايم **رايت زيدا** نو دې مثلا عمرو د زيد د ښمن دې بيا زيد وژني نو زه تاته وايم
چې **رايت** اشاري سره چې رايت زما مطلب تاته دادې چې زيد مراد دې خو ذکر کوم نه لپاره د پټولو
دده نه **او التمكن** يا حذف د مفعول کولې شي د پاره د قادريدلو **من انكاره** د انکار کولو لپاره ددې
مفعول نه **ان مست اليه حاجة** که دې انکار کولو ته حاجت پيش شي لکه دې مجلس کې اوس ته وائي
چې **لعن الله** نو يو زيد بهپاسي هغه به وائي چې هلکه تا ماته وويل تا زه يادکرم چې **لعن الله** تا وويل نه
سريه ما عمرو ته ويلې دې تاته ما نه دې ويلې **لعن الله** خان له کينه اوکه ته ورته ووائي **لعن الله زيدا** او
زيد ناست دې هغه به وائي په تاباندې دې الله تعالى لعنت وکړي جگړه جوړه شوه، **او لعينه** حذف د
مفعول کولې شي د وجې ددې مفعول نه **حقيقة** حقيقة متعين وي يې د فرض د فارض د اعتبار د
معتبر نه لکه **نحمد ونشكر** نحمد ونحمد دواړه صحيح دې اې هلکه دچا حمد او شکر اوباسې وائي د
الله که حقيقت کې منعم او محمود بغير د الله نه بل څوک شته نه **او ادعاء** يا ادعاء وي لکه ته وائي
**نخدم ونعظم** هلکه د چا نخدم او نعظم د مشرف **الامير** چې مشرف دې دا هسې ادعاء تعيين دې که نه نو

لکه اوس تا په ما باندې گمان وو چې دا مولوي صيب يو انسان پيژني. نو دې کې ته حق بجانب ني
خو دويمه عقيده تا داسې اوساتله چې دغه انسان چې مولوي صاحب ئې پيژني دا **عمرو** دې نو زه
تاته ووايم چې ته دې کې خطاء شوې ئې زه چې کوم انسان پيژنم هغه عمرو نه دې **زيدا عرفت** خاص
زيد زه پيژنم عمرو زه نه پيژنم نو تقديم پکار دې نو واخطاء فيه
**وتقول** او ته به وائې **لتاکيده** لپاره د تاکيد د دغه او تقديم سره به يې وائې **زيدا عرفت لاغيره** لاغيره
تاکيد شو خکه تقديم سره خو تاکيد راغلې وو نو **لاغيره** نص شو په تاکيد کې داخو په قصر قلب کې
شو اوس د قصر افراد مثال بنائي هغه دادې چې تا په دې باندې گمان وکړو مثلاً پيښور مولا باندې
چې پيښور مولا يو سړې پيژني دا يو انسان نو دې کې ته **اصاب** شوې خو تا وويل چې دې چې کو
سړې پيژني نو هغه يو نه دې دوه دي يو زيد او بل عمرو دې دا دواړه وائي پيژني نو دې تاته وائي
چې **زيدا عرفت** زه زيد پيژنم عمرو نه پيژنم نو قصر افراد شو **وقد يکون لرد الخطاء فى الاشتراک** او کله کله
کيږي دا تقديم لپاره د رد د خطاء په اشتراک کې **کقولک زيدا عرفت لمن اعتقد** لپاره د هغه سامع چې
عقيده ساتي چې **عرفت زيدا وعمرا** دواړه **وتقول** او ته به وائې **لتاکيد** لپاره د تاکيد ددې رد: **زيدا عرفت**
**وحده** خکه دا **وحده** نص دې په نفي د اشتراک کې مخکې هغه **لاغيره** نص وو په نفي د معرفت د غير کې
**وکذا** سره دفع د توهم کوي چې يا هلکه دا تقديم د مفعول صرف جمله خبريه پورې خاص به وي؟
وائي نه انشاء کې هم راتلې شي انشاء کې هم تقديم لپاره د قصر کيږي وائي. **وکذا فى نحو زيدا اکرم**
**وعمرا لا تکرم** په هغې انشاء کې وائي هم راتلې شي خبر پورې دا خاص نه دې قصر قلب وي که افراد
وي خنگه چې په خبر کې راخي دغسې په انشاء کې هم راخي اوس گوره يو سړي دا عقيده اوساتله
چې دا متکلم ماته امر کوي په اکرام د عمرو سره نه د زيد سره نو متکلم تاته ووائي **زيدا اکرم** چې د
زيد د اکرام سره امر کوم نو قصر قلب راغلو او که سامع دا خيال کولو چې دا متکلم ماته امر کوي په
اکرام د زيد اوعمرو دواړو سره نو متکلم تاته ووائي چې **زيدا اکرم** نو قصر افراد راغلو
**وعمرا لاتکرم** کې هم دغسې ده که سامع دا خيال وکړو چې متکلم ماته نهي کوي د اکرام د زيد نه او د
عمرو د اکرام نه نهي نه کوي نو ته ورته ووائې چې **عمرا لاتکرم** نو قصر قلب شو او که سامع دا خيال
کولو چې متکلم مامنع کوي د اکرام د زيد او عمرو د شرکت نه نو ته ووائې چې **وعمرا لاتکرم** نه
وائي شرکت نه منع کوم نو قصر افراد شو **امرا ونهيا.**
اوس شارح په ماتن باندې شبه کوي چې دا **لرد الخطاء فى التعيين** دا ويل پکار نه وو خکه لرد الخطاء
فى التعيين خو په کلام خبري کې راخي داسې ويل پکار وو **فکان الاحسن ان يقول لاافادة الاختصاص**
تقديم کيږي لپاره د فائده کولو د قصر او حصر او اختصاص لپاره احسن دغسې وو وائي ددې

نو بيا اتصال راغلو په ادوّاتو د شرط او ادواتو د جزاء كې او دا جائز نه دې دا ممتنع دې لالتزامهم
وانې د وجې د لازمولو ددې علماؤ نه نحاتو نه **وجود فاصل** وجود د جدائي راوستونكي **بين اما** چې:
ادواتو د شرط نه دې والفاء او په مابين دفاء كې چې د ادواتو د جزاء نه ده **بل التقدير** نو دلته كې
تقدير دعبارت داذې چې مفعول مقدم به را اوباسي نو چې مقدم دې راوويستلو نو تخصيص راغلو
**بل التقدير** دلته كې متعين دې چې **واما ثمود فهدينا فهديناهم بتقديم المفعول.**
اوس شارح شبه كوي په متن باندې وائي **وفي كون هذا التقديم للتخصيص نظر**: اعتراض دې او نظر دې
نظر په دوو طريقو سره دې، يو نظر او اعتراض د بهر نه دې او بل نظر شارح په كې كړى دې بهر نه نظر
مخكې وائي هغه دادې چې اې هلكه تخصيص شو نو معنى دا شوه چې واما ثمود فهديناهم دا هدايت
زمونږ مقصور دې ثمودیانو پورې دا نبودنه د حق لارې دا مقصور ده په ثمودیانو پورې نه ده متجاوز
د دوى نه نورو كافرانو ته حالانكه الله تعالى **ولكل قوم هاد** ويلي دې حقه لار خو الله هرچاته ښائيلې نو
دلته كې قصر خو صحيح نه شو خكه چې معنى دا شوه چې دا نبودنه زمونږه د حقې لارې مقصور ده په
ثمودیانو پورې نه ده متجاوز د ثمودیانونه نورو كافرانو ته حالانكه ټول كافرانو ته الله تعالى لار
ښودلې ده **وما كنا معذبين حتى نبعث رسولا** غير د ثمودیانو نه نورو كافرو ته هم الله لار ښودلې ده
دويم نظر شارح وائي **لانه** وائي: دغه تقديم **قد يكون مع الجهل بثبوت اصل الفعل** دا تقديم د اما سره چې
ذكر شي نو دا كله كله كيږي سره د جهل نه په ثبوت د اصل فعل باندې چې هغه سامع د اصل فعل نه
جاهل وي نو متكلم تقديم وكړي په اصل فعل باندې سامع عالمؤلو لپاره نو دا تقديم لپاره د اصلاح
شو، د تقديم لپاره نه شو مثال داسې شو **كما اذا جاءك زيد وعمرو** لكه زه دلته كې خبر شوم چې د
مختار احمد خوا ته زيد او عمرو مسجد قبا ته راغلي دي نو اوس مختار احمد د زيد وعمرو سره څه
فعل وكړو داماته پته نه وه چې دۀ ورته چاې وركړې يا دوډۍ يا پلاؤ اوكه نه هسې ئې اوغړولو او
اهانت ئې ورله وكړو او واپس ئې كړل نو زه مازيگر وخت كې چوك ته لاړم ما دۀ نه تپوس وكړو **ثم**
**سئلك سائل ما فعلت بهما** نو دلته كې زه جاهل د اصل فعل نه يم نو **فتقول** وائي ماته په جواب كې وائي
**اما زيدا فضربته** چې مولوي صاحب هرچې زيد دې نو ما اوغړولو هغه لره، او ويلي **واما عمرا** هغه عالم
سړى وو متواضع متقي **فاكرمته** هغه ته ما چرگه حلاله كړه پلاؤ مې پوخ كړو د هغه عزت مې وكړو
نو اوس دلته كې تقديم د تخصيص لپاره نه شو بلكه د اصلاح د تركيب اولفظ لپاره شو چې توالي
رانه شي په مينځ د ادواتو د شرط وجزاء كې دينه وائي تقديم لپاره د اصلاح د لفظ چې توالي په
ادواتو د شرط وجزاء كې رانه شي تقديم وتخصيص لپاره نه صحيح كيږي

**والتخصيص لازم للتقديم غالبا** اوس دا بله مسئله كوي. چې تخصيص د تقديم سره لازم دي غالباً شارح ورسره لګوي اي **لا ينفك** ددې نه قصد د شارح ترجمه د لازم كوي چې دلته كې د لازم څه معنى؟ نو وائي چې اي **لا ينفك** چې نه جدا كيږي دا تخصيص من تقديم المفعول ونحوه څنګه چې لازم د ملزوم نه نشي منفك كيدلې د لازم دا معنى د **غالبا** ترجمه كوي چې دې و وائي **وفي اكثر الصور** د غالباً دا معنى چې په اكثر صورتونو كې دليل وائي د متن لپاره چې دليل دادې چې **بشهادة الاستقراء وحكم الذوق** وائي په شهادت دا ستقراء اوتتبع د كلام القوم سره مونږ د كلام القوم تتبع واستقراء كړې ده نو چېرته چې تقديم د معمول شوې دې نو تخصيص په كې شته دې، يو دليل دا شو

دويم دليل داچې **وحكم الذوق** څكه چې ذوق د سړي هم دلالت كوي چې يو معمول مقدم كيږي په يو عامل باندې نو مقصور قصر وتخصيص وي كه دا مقصود نه وي نو هسې تقديم بلا فائدې كيږي اوس د غالبا قيد فائده وائي چې ماتن دا ولې زيات كړو، وائي **وانما قال غالبا** وائي ماتن غالبا ويلي دې. وائي **لان اللزوم الكلي غير متحقق فيه** اي في التقديم لزوم كلي په دې تقديم كې نشته دې كله كله به تقديم وي او تخصيص به نه وي **اذا التقديم قد يكون لاغراض اخر** څكه تقديم كله كله كيږي د نورو غرضونو لپاره هغه نور غرضونه څه دي **لمجرد الاهتمام** لكه مجرد اهتمام لپاره چې د هغه مقدم ته عزت كوي تخصيص مخصيص مقصود نه وي عزت لپاره **والتبرك** او كله كله تقديم د مفعول د تبرك لپاره كيږي لكه **محمدا احببت صلى الله عليه واله وسلم والاستلذاذ** كله كله تقديم كيږي د وجې د موندلو د متكلم نه دې مقدم لره لذيذ لكه **ليلى احببت** كله **وموافقة السامع** كله كله تقديم كيږي د موافقت د كلام د سامع سره لكه تانه سامع سوال وكړي چې **من اكرمت** نو سامع مفعول مقدم كړې دې نوته جواب كې وائې چې **زيدا اكرمت** تا هم مقدم كړو نو موافقت لپاره شو كله كله د **ضرورة الشعر** د ضرورت شعري د وجې نه تقديم كيږي او تخصيص نه وي **والسجع** او كله كله د پاره د موافقت د سجعې په غير دقران كې **والفاصلة** او كله كله لپاره د موافقت د فاصلې تقديم كيږي په قران كې فاصله په قران كې او سجعه په غير القران كې اوس د فاصلې مثال پخپله بنائي **ونحو ذالك** يا تعجيل د مسرت سامع ته خوشحاله وي يا مساة سامع خفه كوې اوس د فاصلې مثالونه بنائي دا مثالونه د فاصلې دي وائي **قال الله تعالى خذوه** خزانيانو د جهنم ته الله به فرماني چې نيسئ دې مجرم لره دې كې اشتهاد نشته دې **فغلوه** طوق ورله وغورځوئ، غاړې ته ورته زنځير وغورځوئ٠ غټ زنځير چې څټ ني داسې نيولي وي ايسته اورته او ښكته ني نه شي كولې **لا يرتد اليهم طرفهم وافئدتهم هواء ثم الجحيم صلوه** دې كې يو شاهد راغې **ثم الجحيم** دا مفعول مقتضي رؤسهم مقدم شو په **صلوه** باندې لپاره د رعايت د فاصلې كه داسې ني ويلي وې چې **ثم صلوه الجحيم** نو فاصله نه برابريدله دويم **ثم في سلسلة** بيا اوتړئ ده لره په يو زنځير كې دې كې هم شاهد دې څكه كه داسې ني ويلي وې چې ثم ذرعها سبعون ذراعا في سلسلة نو برابرتيا نه راخې نو **فاسلكوه**

فاصله برابره شوه اوكه داسې وائي فاسلكوه في سلسلة نو نه برابريدله بل مثال بنائي په قران كې ولن عليكم لحافظين نو دلته كې تقديم د خبر د ان شو په اسم د ان باندې دا لپاره د موافقت د فاصلې خكه د دې سورت اكثر اخر د اياتونو كې ماقبل تري يا يا واو دي نو دلته هغه خرابيده نو شبه وارد نه شوه چې هلكه زمونږ كلام خو په تقديم د معمول د فعل كې وو او دلته كې عليكم معمول د فعل خو نه دې تاسو روايئ چې معمول د ان نو معمول د ان دې وي بل مثال بنائي وقال الله تعالى فاما اليتيم فلا تقهر نو فاصله برابر شوه خكه فاصله تول په راء باندې ده د اما السائل فلا تنهر د تقديم د مفعول سره فاصله برابره شوه كه تقديم اونكړې نو فاصله نه برابريږي بل مثال وقال الله تعالى وما ظلمناهم ولكن كانوا انفسهم يظلمون اوس كوره انفسهم ني په يظلمون باندې مقدم كړو د فاصلې لپاره كه داسې ني ويلې وې ولكن كانوا يظلمون انفسهم فاصله نه برابريدله، نو خكه ني مقدم كړو الى غير ذلك علاوه ددې نه وائي نور خاينونه كوره مما لا يحسن فيه اعتبار التخصيص او د اعتبار د تخصيص خوك بنه پيژني؟ عند من له معرفة باساليب الكلام لپاره دهغه چا چې هغه لره پوهه وي په طريقو د كلام هر كس نا كس ته نه چې هغه پخپل ذوق سره معلوموي چې دلته كې تخصيص حسن دې او دلته كې غير حسن دې

ولهذا سره اوس دليل اني ذكر كوي ماتن چې تخصيص لازم دې د تقديم سره غالبا تعين د مشار اليه كوي شارح اي لان التخصيص لازم للتقديم غالبا يقال وپلې شوې دې ويونكې مفسرين دې في اياك نعبد واياك نستعين كې دلته كې تقديم د مفعول شوې دې په دواړو كې نو تخصيص ورسره لازم دې راغلې دې نو مفسرينو ددې معنى كړې ده معناه معنى ددې قول د الله تعالى داده چې نخصك بالعبادة والاستعانة باء داخله ده په مقصود باندې يعني عبادت مقصور دې په تا پورې نه دې متجاوز تانه بغير هيچا ته استعانت مقصور دې په تا پورې متجاوز نه دې تانه بل هيچا ته بمعنى كې شارح اشاره كوي چې باء په مقصور باندې داخله ده بمعنى نجعلك مونږ كرخوو تالره اې الله من بين الموجودات په مابين د تولو موجوداتو كې مخصوصا مقصور بلك په دې عبادت واستعانت سره لانعبد لا نستعين غيرك نو باء داخله په مقصور باندې شوه

د جار مجرور مثال بنائي ولى لالى الله تحشرون دا جار مجرور په تحشرون باندې مقدم شوې دې معناه اليه خاص دې الله ته به تاسو راجمع كړې شئ، لا الى غيره ونعبد تعين د مرجع كوي وائي التقديم، وائي فايده كوي دغه تقديم في الجميع شارح ورسره لكوي اي في جميع صور التخصيص دې كې ئې اشاره وكړه چې په الجميع كې الف عوض دې د مضاف اليه نه يا الف لام عهد خارجي دې معهود په دې سره تول صورتونه د تخصيص دي يا هغه مضاف اليه داده چې تول صورد تخصيص دي دا تقديم فائده كوي په دې تولو صورو د تخصيص كې وراء التخصيص اوس وراء د مخكې په معنى سره هم راځي او وراء د وروستو په معنى سره هم راځي خكه دې د اضدادو نه دې نو پته رانغله چې دلته كې وراء په معنى د

امام سره دي او که د بعد سره دي نو شارح تعين وکړو ای بعده يعني پس د دې تخصيص نه فائده کوي اهتمام بالمقدم مقصود منډي په هغه مقدم بوري چې دا مقدم مقصود دې د متکلم متن لپاره دليل وائي چې دا تقديم علاوه د تخصيص نه اهتمام د مقدم ولي فائده کوي وائي لانهم خکه چې دغه عرب يقدمون الذي شانه اهم دي مخکې کوي هغه شئ چې شان د هغې اهم وي وهم دغه عرب ببيانه اعنى به بيان د دې سره د ير قصد کونکي دي نو د دې وجې نه مقدم اهم وي اوس شارح د دې لپاره دليل ذکر کوي ولهذا او د دې وجې نه چې تقديم فائده کوي اختصاص نه اهتمام د مقدم يقدر المحذوف مقدر کولې شي هغه محذوف متعلق او فعل فى بسم الله مؤخرا دا لپاره د اهتمام د اسم د الله چې اسم د الله مهتم بالشان دي نو دا معنى مخکې کوي نو داسې وائي بسم الله افعل کذا دا مؤخر کوي ليفيد مع الاختصاص يو خو اختصاص به راشي چې خاص په نوم د الله باندې دا کار زه کوم او سره د اختصاص نه الاهتمام اهتمام به هم راشي چې اسم د الله مهتم بالشان دې وجه په دې کې داده چې اهتمام سره د اختصاص نه مقصود خکه دې دموحد اود مؤمن خکه بسم الله مؤحد او مؤمن وائي، وائي خکه لان المشركين يبتدءون باسماء الهتهم نو فيقولون باسم اللات وباسم العزى نو فقصد الموحد تخصيص اسم الله بالابتداء للاهتمام والرد عليهم اى على المشركين.

اوس په دې باندې اعتراض کوي ماتن نو وائي واورد وارد کړې شوې دې اعتراض په دې باندې په اقراء باسم ربك سره شبه يا هلکه محل داعتراض او دايراد کوم تکې شو محلونه خو دير دي محل د ايراد داشو چې تقديم لپاره د تخصيص نه صحيح کيږي يا محل دا ايراد دا شو چې تقديم لپاره د اهتمام د مقدم نه کيږي فقط فقط، نو شارح تعين د محل د ايراد کوي نو وائي يعنى اى الماتن لوکان التقديم که چرته وي تقديم د معمول د فعل په فعل باندې مفيدا للاختصاص مفيد لپاره د قصر والاهتمام دا مقدم د قياس شو نو د محل تعين ئې وکړو نو لوجب ان يؤخر الفعل نو واجب دې چې مؤخر کړې به ئې وي فعل چې اقراء دې ويقدم باسم ربك لكن التالى باطل فالمقدم مثله لوجب خو باطل دې حسأ مونږه وينو چې اقراء مخکې دې په اسم ربك باندې او اسم ربك مخکې نه دې او دليل د ملازمې څه دې؟ چې که تقديم مفيد لپاره د اختصاص او اهتمام دې نو واجب به وو چې مؤخر کړې ئې وې فعل چې اقراء دې او مقدم کړې به ئې وې باسم ربك وائي خکه چې لان كلام الله تعالى احق برعاية ما يجب رعايته وائي خکه کلام د الله تعالى ډير لا ئق دې په رعايت د هغه نکتو سره چې واجب دې رعايت د هغې نکتې په بلاغت کې نو هلته کې نکته خو تخصيص شو سره د اهتمام نه نو مقدم کول پکار وو نو په دې کې شارح يو تعين د محل د ايراد وکړو او دويم تقرير د اعتراض ئې وکړو نو دوه غرضونه شو چې نمط او تقرير د اعتراض په طريقې دنمط د قياس استثنائي رفعي سره دې

وس **واجيب** دې سره دوه جوابونه کوي ماتن دا جواب اول د صاحب الکشاف دې واني جواب کړي ږي دی چې **بان الاهم** چې اهم په **اقرا باسم ربک** کې **القراءة** قراءت دي ددې د وجې نه مقدم شوي دي راءت خکه اهم دې واني **لانها اول سورة نزلت** نو فکان الامر **بالقراءة اهم باعتبار هذا العارض** په اعتبار ددې عارض سره چې اول سورت وو **وان کان ذکر الله اهم فی نفسه** نو اقتضاء ذاتي غواړي تقديم د اسم د الله د اقتضاء مقامي غواړي تقديم دقراءة .نو مونږه ترجيح ورکړه اقتضاء مقامي ته نه اقتضاء ذاتي ته نکه بلاغت ويلې شي مطابقت د کلام د مقتضى الحال ومقام سره مطابقت د مقتضى دذات سره ديته ټوك بلاغت نه واني دا تعين ددې مجيب کوي چې دا مجيب څوك دی؟ واني **جواب صاحب الکشاف**

وس په دې ځاى کې اعتراض راځي څنې احاديثو کې راځي چې اول سورت چې نازل شوي دې نو دغه سورت اقراء دې او په بل حديث کې راځي اول سوت چې نازل شوي دې نو سورت المدثر دي په دريم حديث کې راځي چې اول سورت چې نازل شوي دې نو سورت الفاتحه دې نو درې واړه قسمه حاديثو کې تدافع وتعارض راغله نو تاسو به دفع د تدافع وکړئ چې کوم حديث کې چې راځي چې دغه سورت اقراء اول سورت دې چې نازل شوي دې نو په مقدار د پنځو اياتونو تول سورت نه چې دا ول نازل شوي دې اوچې کوم حديث کې راځي چې اول سورت چې نازل شوي دې نو سورت الفاتحه دې نو تمام سورت من اوله الي اخره اول چې نازل شوي دې نو سورت الفاتحه دې، په دريم حديث کې چې کوم راځي چې اول سورت چې کوم نازل شوي دې سورة المدثر دې نو پس د فترة الوحي نه پس د نطع کيدلو د وحې نه رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې اول څو وحي وشوه بيا درې مياشتې وحي ندہ وه نو بيا غارحرا کې وحي شروع شوه **يا ايها المدثر قم فانذر وربک فکبر** نو تدافع داسې شوه

دريم جواب کوي **وبانه** اى باسم ربك دې سره تعين د مرجع کوي **متعلق باقراء الثاني** نو تقديم په عامل باندې تقديم راغې **ای هو مفعول اقراء الذی بعده** يا هلکه متعلق په اقراء ثاني پورې څه معنی؟ دا باسم ربك مفعول دې د اقراء **هغه** چې پس ددې نه دې نو معترض راغې شبه ئې وکړه چې بيا اقراء اول بلا مفروء پاتې شو که نه؟ واني **ومعنى اقراء الاول اوجد القراءة** نو فعل متعدي چې قراءة نازل دې په منزله د لازمي کې **اوجد القراءة** څه معنى من غير اعتبار تعديته **الى مقروبه** شبه يا هلکه چرته فعل متعدي نه لازمي راتللې شي؟ واني او ، **کما فی فلان يعطی** نو دلته کې **يعطی** فعل متعدي دې مفعول ئې نه دې ذکر شوي خکه مقصود د متکلم صرف اثبات د اعطاء دې فلانکي ته او مقصود تعين د جنس دهغه ما يعطى به نه دې چې څه شئ ورکوي شبه يا هلکه دا مجيب څوك دې واني: **کذا فی المفتاح** دا جواب په مفتاح کې سکاکي بابا ويلې دې تعين د مجيب ئې وکړو

اوس **هغه** دريم مبحث ددې باب ذکر کوي **هغه** داچې تقديم د بعضې معمولاتو د فعل په بعضو
باندې نو وائي **وتقديم بعض معمولاته** اى معمولات الفعل **على بعض** په بعضو باندې کيږي لکه مثلاً
تقديم د مفعول په فاعل باندې کيږي خکه کيږي **اما لان اصله اى اصل ذلك البعض التقديم** تقديم دى على
**بعض الاخر** معترض راغې شبه ئې وکړه چې دا قاعده ستا منقوضه شوه په واذابتلى ابراهيم ربه باندې
دارنګې منقوضه شوه په ضرب زيدا غلامه باندې دلته کې اصل دفاعل تقديم خو نه دې جواب ئې
وکړو چې **ولا مقتضى للعدول عنه** وي عن ذلك الاصل او هلته مثالين مذکورين فى الاعتراض کې سته
دې چې اضمار قبل الذکر لازميږي **هغه معمول** د فعل چې تقديم د هغې په نورو باندې اصل دى هغه
**كالفاعل فى نحو ضرب زيد عمرا** کې ګورئ اوس فاعل کې اصل تقديم خکه دې **لانه عمدة فى الكلام** او
مفعول فضله وي او عمده مقدم وي په فضله او دويمه وجه داچې **وحقه ان يلى الفعل**
اوس ددې تخصيص ددې مثال فائده وائي شارح چې شارح دا مثال ونبودلو چې په نحو ضرب زيدا
عمرو کې او داسې ئې اونه ويل چې **ضرب زيدا غلامه** نو ددې فائده وائي د تخصيص د مثال لپاره
فائده وائي نو وائي وانما قال فى نحو ضرب زيدا عمرو چې اتصال د ضمير نه مفعول پورې شوې دې
اونه فاعل پورې دا مثال ئې خکه خاص کړو **لان فى ضرب زيدا غلامه مقتضيا للعدول عن الاصل.**
**والمفعول الاول فى نحو اعطيت زيدا درهما** نو د اعطيت دا مفعول اول تقديم په مفعول ثاني باندې اصل دې
اعطيت نه هر هغه باب چې متعدي وي دوو مفعولينو ته شبه يا هلکه دوو مفعولينو ته متعدي خو
علم هم دې نو تاسو بل قيد کيدئ هر هغه باب چې متعدي وي دوو مفعولينو ته او ثاني غير وي د
اول نه په مصداق کې **او علمت زيدا فاضلا** کې فاضلاً غير د زيدنه په مصداق کې نه دې اوس **فلان اصله**
سره دليل وائي د متن لپاره وائي **فلان اصله** اصل ددې مفعول اول تقديم دې په مفعول ثاني باندې
خکه **لان فيه من معنى الفاعلية** خکه په دې مفعول اول کې معنى د فاعليت ده او دويم کې معنى د
مفعوليت ماخوذيت ده خکه په کې معنى د فاعليت ده چې وائي **وهو واو.** په معنى د اذ سره کوئ **لانه**
خکه دا مفعول اول چې **انه عالم** تفسير د غير مشهور په مشهور سره کوي **اى اخذ للعطاء** او ثاني ماخوذ
دې نو هغه کې معنى دفاعليت ده او ده کې معنى د مفعوليت راغله
او **لان ذكره** يا تقديم د يو معمول کولې شي په بل خکه چې ذکر ددې بعضې چې مقدم شو اي **اهم** وي
اوس معترض راغې شبه ئې وکړه په خله واورئ وږده شبه ده ددې خاى نه جعل الاهمية نه شروع ده تر
**فمراد المصنف** هغې سره جواب دې حاصل دشبهې دادې چې مخکې په مسند اليه کې تا اهميت مقسم
ګرځولې دې او اصل په مسند اليه کې تقديم تا قسم ګرځولې دې يا د پاره دتمکن د خبر په ذهن د
سامع کې بل قسم يا تعجيل د مسرة يا تعجيل د مساءة دا تا اقسام د اهميت ګرځولې دي نو هلته کې

# القصر

ماتن وویله چې **القصر** واني پنځم باب د اتو ۸ بابونو د فن اول نه قصر دي
ماتن د قصر معنی لغوي او اصطلاحي نه وه بیان کړي، شارح يې بيانوي، ماتن نه وه بيان کړې ځکه
مبنی د متونو بناء بر اختصار وي، او شارح يې بيانوي ځکه شارح ذمه واري اخستي ده د توضیح او
تشریح د متن. نو واني **في اللغة الحبس** قصر په لغت کې بندولو ته واني، ځکه قران کې راغي احور
مقصورات في الخيام **مقصورات** معنی محبوسات في الخيام. **وفي الاصطلاح** او په اصطلاح کې قصر
واني **تخصيص شئ بشئ بطريق مخصوص** بندول د يو شي دي په بل شي پورې، نو دلته کې عام دي، د شئ
اول نه موصوف واخلې او شئ ثاني نه بشئ کې صفت واخلې. لکه دا په قصر د موصوف على الصفة
کې شو. يا د شئ اول نه صفت واخلې او د **بشئ** نه موصوف واخلې. دا په قصر د صفة على الموصوف
کې شو. دواړه قسمه اخستل جائز دي اوس شبهه راغله چې هلکه بناء په دې باندې **زيد مقصور على
القيام** دلته کې تخصيص شئ بشئ راغلي دي حالانکه ديته څوك قصر نه واني، نو شارح جواب وکړو
**بطريق مخصوص** يا هلکه په طريقه مخصوصه سره چې هغه څلور طريقي دي چې وروسته راړواني دي او
**له اربع طرق** د قصر لپاره څلور طرق دي. او په زيد مقصور على القيام کې د هغه څلورو طريقو نه يوه
طريقه هم پکې نشته دي
اوس صرف دومره شبهه کيږي چې د نحوي قانون دا دي چې دوه جارين د جنس واحده نه په يو فعل
پورې نشي متعلق کيدي، دوه جارين چې لفظ هم يو وي او معنی هم يوه وي او يو فعل پورې متعلق
شي دا نشته دي. دا جائز ندي. په شريعت نحوي کې. او د شارح په کلام کې خو راغلل. ځکه **بشئ** کې
دا باء هم متعلق ده په **تخصيص** پورې او **بطريق** کې دا باء هم متعلق ده په تخصيص پورې. نو تعلق د دوو
جارينو راغي په عامل واحده پورې او دا لايجوز دي. خو تاسو به جواب وکړئ چې هلکه دا دوه جارين
اګر که لفظ کې دواړه متحد دي خو معنی کې متحد ندي، ځکه واني **بشئ** کې باء د تعديت او د
الصاق لپاره ده او **بطريق مخصوص** کې دا باء لپاره د استعانت ده. نو دا دواړه جارين د جنس واحد نه
شو. د لفظ په اعتبار سره يو شو خو معنی کې يې فرق دي بون بعيد دي
اوس شارح تقسيم کوي **وهو حقيقي وغير حقيقي** واني دا قصر يو حقيقي دي او بل غير حقيقي دي،
اوس غرض د شارح د **لان** نه تر راتلونکي متن **وكل منهما** پورې دا دي چې دليل واني د حصر لپاره چې
قصر په دوه قسمه حقيقي او غير حقيقي کې ولې منحصر دي؟ دويم غرض د شارح دفع د توهم کوي
چې يا هلکه حقيقي نه مراد هغه مقابل د مجاز به شي؟ او د غير حقيقي نه مراد مجازي به شي؟ نو دا
خو بيا نه صحيح کيږي ځکه قصر خو په دواړه قسمينو سره حقيقي دي، مجازي خو پکې نشته دي.

نو شارح راغي **لان تخصيص الشئ بالشئ** سره جواب کوي چې حقيقي دلته کې مقابل د مجازي ندي. او غير حقيقي مجازي ندي بلکه حقيقي او غير حقيقي قصر کې په بله معنی سره دي، دريم غرض د شارح دا دي چې توضيح کوي د قصر حقيقي او غير حقيقي په مثال سره، او تعريف کې د هر يو لپاره، يعني تعريف د هر يو او توضيح بالمثال کوي، څلورم غرض د شارح اخير کې دفع د اعتراض کوي و **بقسامه** سره په ماتن باندې يو اعتراض واردیدو **هغه په والقسامه** سره دفع کوي، دا څلور اغراض شو د شارح، نو فرمائي چې **لان تخصيص الشئ بالشئ** واني قصر د يو شي په بل شي پورې **اما ان يكون بحسب الحقيقة** يا په په اعتبار د حقيقت سره وي **وفي نفس الامر** في نفس الامر يې خکه ولګولو، ناکت لیکلي دي **عطف تفسير** دا عطف تفسير دي

شبهه د عطف تفسير نه غرض څه دي؟ عطف تفسير يې ولې وکړو، د دفع د توهم لپاره چې **بحسب الحقيقة** مقابل د مجاز به وي؟ چې **اما بحسب الحقيقة** معنی په اعتبار د حقيقت سره يعني مجاز به نه وي، دا معنی به وي، نو عطف تفسير يې وکړو چې **ان يكون في نفس الامر** حقيقت دلته کې مقابل د مجاز ندي، حقيقت دلته کې په معنی د نفس الامر سره دي، خکه حقيقت په معنی د شئ ثابته في نفس الامر سره راځي. لکن په دې باندې اشکال واردیږي چې دا تفسیر شارح غلط ګرځولي دي، خکه چې په نفس الامر کې خنګه چې **تخصيص شئ بشئ** چې په قصر حقيقي کې دي نو داسې په قصر غير حقيقي کې هم دي په نفس الامر کې کنه، لکه ته راتلونکي مثال کې ګوره چې زید مقصور کړې په قیام پورې متجاوز د قیام نه قعود ته ندي، نو دا هم په نفس الامر کې دي، نو **في نفس الامر** قید دا مخل شو دا به قید نشو، خکه نفس الامر کې خو دواړه دي، نو تاسو به ترینه جواب وکړئ چې خبره دي تیک ده چې په نفس الامر کې په دواړو کې تخصيص شئ بشئ په نفس الامر کې دي، خو وجه په دې کې بله ده، چې قصر حقيقي کې تخصيص شئ بشئ په نفس الامر کې فقط دي، د مخاطب د حال لحاظ ندي شوي. لکه اوس متکلم وواني چې **ما زيد الا قائم** زيد مقصور دي په صفة القيام پورې متجاوز بل هيڅ صفت ته ندي، نو دلته کې د مخاطب څه لحاظ ونشو، او په قصر غير حقيقي کې تخصيص شئ بشئ په نفس الامر کې دي سره د لحاظ د حال د مخاطب نه، فقط ندي، که ته وواني چې يا **هلکه ما زيد الا قائم** زيد مقصور دي په قيام پورې اي مخاطبه متجاوز د قيام نه قعود ته ندي بل يو صفت ته متجاوز خانله دي کې وي، نو په قصر حقيقي کې په نفس الامر کې فقط شو تخصيص شئ بشئ، او په غير حقيقي کې نفس الامر کې شو سره د رعايت د حال د مخاطب نه، داسې **بان لا يتجاوزه** نه تيروخي دغه شئ اول **الى غيره اصلا** غير ته نه ورځي يعني نه کل اغيارو ته او بعضي اغيارو ته **وهو الحقيقي** او دينه قصر حقيقي وايي شي لکه **ما خاتم الانبياء الا محمد** صلى الله عليه و سلم، ختم الانبياء مقصور دي په محمد صلى الله عليه و سلم پورې متجاوز د ده نه بل بعضي نبي ته هم ندي او کل انبياؤ ته هم ندي

**او بحسب الاضافة** يا په اعتبار د اضافت سره شي اخر ته، يعني دغه شئ مقصور په دې پورې دي خو لکن په نسبت سره ده ته دا پکې نشته، متجاوز ده ته ندي، بل يو له خانله دي، داسې **بان لا يتجاوز** چې نه تېر اوځي دغه مقصور **الى ذلك الشئ** دي شئ معين ته نه ورځي. لکه **ما زيد الا قائم** يا هلکه مقصور دي قيام پورې شي معين ته متجاوز ندي چې قعود دي **وان امكن ان يتجاوزه** اګر که ممکن دي چې متجاوز شي دغه مقصور شئ اخر ته **في الجملة** يعني په بعضې امثلو کې، داسې چې **ما زيد الا قائم** زيد مقصور دي قيام پورې متجاوز قعود ته ندي، ضحك، کتابت، صفت پکې نشته دي، اکل، شرب پکې شته دي **وهو غير حقيقي** او ديته غير حقيقي ويلې شي **بل اضافي** بلکه ديته اضافي ويلې شي، اوس مثال بنائي **كقولك ما زيد الا قائم** د دې معنى **بمعنى انه لا يتجاوز القيام الى القعود** د دې معنى دا ده چې نه تېرووځي د قيام نه قعود ته، دا معنى شوه، نور صفات دي وي پکې، نورو نه دي تېروتي وي **لا بمعنى انه لا يتجاوزه الى صفة اخرى** په دي معنى سره نه چې دغه زيد نه تېرووځي د دې قيام نه بل صفت ته **اصلا** نه بعضې صفاتو ته نه کل نه **وانقسامه** سره دا دفع د اعتراض کوي، اعتراض په ماتن باندې وارد شو، اعتراض دا وارد شو چې اې هلکه تا د حقيقي نه مراد غير اضافي واخستلو، او غير حقيقي نه تا اضافي واخسته، نو قصر خو دې اضافي، مقسم خو اضافي دي، خکه و قال فيما بعد **الاضافة** خکه اضافي ديته وائي چې د هغې تعقل موقوف وي د تعقل د غير پورې، نو تخصيص شئ بشئ کې دا اضافي دي، د تخصيص تعقل موقوف دي د تعقل د مقصور او مقصور عليه پورې، نو قصر مطلقًا اضافي شو، نو تقسيم د دې قصر غير حقيقي ته الى نفسه شو او حقيقي ته الى غيره شو، هر تقسيم چې شان يې دا رنګه وي، باطل وي، نو دا تقسيم هم باطل شو

نو **وانقسامه** سره شارح جواب کوي چې ته پوهه شوي نه يې کنه، دلته کې اضافتونه دوه دي، يو اضافت د قصر دي مقصور، مقصور عليه ته چې تخصيص شئ بشئ دي، يو دا اضافت دي، دا اضافت زه مقسم نه ګرځوم، خکه دي خو دي اضافي نو دي غير اضافي نشي کيدي، دا زه مقسم نه ګرځوم چې تخصيص شئ بشئ دوه قسمه دي يو حقيقي دي او بل غير حقيقي دي، خکه بيا شبهه راځي چې دا تخصيص شئ بشئ خو دي اضافي نو د دې تقسيم غير حقيقي ته الى نفسه شو او حقيقي ته الى غيره شو، مقسم دا ندي، بل کې زه د حقيقي او د غير حقيقي مقسم بل اضافت ګرځوم، چې که دغه مقصور متجاوز د مقصور عليه نه بعضې صفت ته وي او بعضې ته نه وي، دا اضافي او غير حقيقي دي، نو د حقيقي معنى دا چې په اضافت او په نسبت سره کل ما عدا ته وي، غير حقيقي معنى دا چې په اضافت سره بعضې ما عدا د مقصور عليه ته وي، نو خکه وائي چې **وانقسامه** او تقسيم د دغه قصر **الى الحقيقي والاضافي بهذا المعنى** چې کومه معنى تيره شوه، هغه عدم تجاوز مقصور دې د مقصور عليه نه کل ما عدا ته نه وي نو حقيقي شو او عدم تجاوز د مقصور د مقصور عليه نه يعني ما

او صفت معنوي ندي خکه رجل قائم بالغير خو ندي معترض راغی شبهه يې وکړه چې يا هلکه حصر د قصر په قسمينو کې نه صحيح کيږي چې قصر د موصوف على الصفة او صفة على الموصوف. دا نه منم، خکه په دې امثله ؤ راتلونکو ثلاثه ؤ کې چې **ما زيد الا اخوك او وما الباب الا ساج او وما هذا الا زيد** دا قصر دی او نه قصر د موصوف دی په صفت پورې، خکه که قصر الموصوف شي نو اخوك خو صفت ندې هغه خو ذات دی، دارنګه ساج خو ذات دی، دارنګه زيد ذات دی، نو قصر د موصوف على الصفة خو نشو، او نه قصر د صفة على الموصوف دی، خکه زيد صفت ندې باب صفت ندې، هذا صفت ندې، دې سره ذات ته اشاره کيږي، نو په دې امثلو ثلاثه ؤ کې قصر راغلی دی، او نه قصر د موصوف على الصفة دې او نه قصر د صفت على الموصوف، نو شارح جواب وکړو چې هلکه دلته کې قصر د موصوف على الصفة دې خو صفت اګر که حقيقةً ندې خو تاويلاً، تقديراً دې، تقديراً نه مراد تاويلاً، مونږ تاويلاً صفت ترينه جوړوو، وائي **واما نحو قولك ما زيد الا اخوك وما الباب الا ساج وما هذا الا زيد فمن قصر الموصوف على الصفة** دې خو تقديراً يعني تاويلاً دې تاويلاً صفت به راولو **الا المعنى انه** اې موصوف مقصور على الاتصاف بكونه اخًا او ساجًا [ساج شوې ته وائي] او زيداً يعني بكونه اخًا بكونه ساجًا، بكونه زيداً منه، نو دا تاويلاً صُفت شو، نو قصر الموصوف على الصفة راغلی.

**والاول** او اول، شبهه يا هلکه اول نه مراد اول هغه بنکته تقسيم به وي، قال بعد قولنا حيث يعلم انه لا ذلك و قال نه تعين د اول کوي چې اول څوك دې وائي **اي قصر الموصوف على الصفة من الحقيقي** مثال داسې شو **نحو ما زيد الا كاتب اذا اريد انه اي زيد لا يتصف بغيرها** اي غير الكتابة **وهو** دغه قسم **لا يكاد** قريب ندې **يوجد** چې موجود شي، نو چې وجود ته قريب نه شو نو وجود په طريق اولی سره نشته دې يعني ممتنع شو، وائي **لتعذر الاحاطة بصفات الشئ** خکه تول صفات د زيد متکلم ته معلوم ندې، چې ته ووائي چې نور تول صفات نشته دې په ده کې سوا د کتابت نه **حتى يمكن** دا تفريع شوه وي تر دې چې ممکن شي **اثبات شئ منها** اي من تلك الصفات چې کتابت دې **ونفي ما عداها بالكلية بل** دا اضراب دې د دې متن نه، دا قريب ندې وجود ته. لايكاد يوجد۔ اې هلکه قريب وجود ته درکنار **بل هذا محال** دې، دويم دليل شارح وائي محال لپاره اد عدم وجود د دې لپاره، فافهم لانه لم يذكر الدليل الاول للمحال حتى يذكر الثاني] وائي **لان الصفة المنفية نقيضا وهو من الصفات التي لا يمكن نفيها** خکه نقيض پورته شي نو دا صفت نشي پورته کيدې خکه بيا خو ارتفاع د نقيضينو راځي **ضرورة امتناع ارتفاع النقيضين** مثلًا مثال په طور سره مونږ تاسو پوهه کوي **مثلا اذا قلنا ما زيد الا كاتب واردنا انه** اي زيد **لا يتصف بغيرها** اي الكتابة، نو **لزم ان لا يتصف بالقيام ولا بنقيضه وهو محال** ارتفاع د نقيضينو راغله.

**والثاني** شارح تعين مصداق ي د ثاني کوي اي قصر الصفة على الموصوف من الحقيقي **كثير** وائي دنيا وکه ده **نحو ما في الدار الا زيد** معترض راغی شبهه يې وکړه چې هلکه مثال مطابق د ممثل سره نه

تخصيص د يو امر دي يو موصوف دي په يو صفت پورې **مكانها** په خاى د صفت أخرى كې. دا په قصر قلب كې **اي تخصيص امر** دا عطف ته اشاره كوي چې دا مكانها عطف دي په **دون** باندې. نو ما قبل د معطوف عليه نه كالمعاد وي په معطوف عليه كې. نو هغه قاعدې ته اشاره كوي **اي تخصيص امر** چې موصوف دي **بصفة مكان صفة اخرى** او تعين د مرجع يې هم وكړو چې **مكانها** كې ضمير. صفت ته راجع دې
**والثاني** ثاني چې قصر الصفة على الموصوف من غير الحقيقي نه، تعين د ثاني يې وكړو **تخصيص صفة** بندول د يو صفت دي **بامر** په يو موصوف پورې **دون امر اخر** نه موصوف اخر پورې. دا په قصر افراد كې.
يا **او مكانه** يا په خاى د امر اخر كې، دا په قصر قلب كې
**وقوله دون اخرى** د دينه غرض د شارح دا دې چې دلته كې د **دون** معنى مراد بيانوي او وروسته چې بيانوي چې **ومعنى دون** [د لاندې طرفه دويمه كرخه] نو هغه معنى لغوي اصلي بيانوي، او دلته كې د **دون** په دې خاى كې معنى مراد بيانوي چې دلته كې دون په څه معنى سره مستعمل ده، دويم غرض د شارح دا دي چې تركيب ته اشاره كوي چې دون په تركيب كې څه واقع شو، وائي دا حال واقع شوي دي په معنى د **متجاوزًا** سره. نو وائي **وقوله اخرى معناه متجاوزًا** په حال كون د دغه امر كې چې تيروتونكې وي **عن الصفة الاخرى** د صفت أخرى نه، او د صفت أخرى نه به څكه تيرووخي چې **فان المخاطب اعتقد اشتراكه** وائي. څكه مخاطب عقيده د اشتراك د موصوف ساتلې وه **في صفتين** په دواړو صفتينو كې **والمتكلم يخصصه باحدهما** او متكلم خاص كوي دغه موصوف په يو د دې دواړو پورې، **ويتجاوز عن الاخر** او متجاوز كوي يې د بل نه. نو دلته كې دون په معنى د متجاوزًا سره شو، او تركيب كې حال واقع شو د **امر** نه چې هغه مضاف اليه د تخصيص دي او مضاف اليه د مصدر فاعل وي يا مفعول وي، نو حال ترينه صحيح شو، **ومعنى دون** دې سره غرض د شارح دا دي چې د دون معنى اصلي ذكر كوي لغوي، چې معنى مراد د دون خو په معنى د متجاوزًا سره شو، تجاوز سره شو، نو اصل معنى د دون وائي هم دغه دي؟ وائي نه نه، اصل بله ده، يو ديته اشاره كوي، دويم اشاره كوي چې دون كې دوه نقله راغلي دي، يو نه دی، نو وائي **و معنى دون في الاصل** په اصل لغت كې ويلي شي **ادنى مكان من الشئ** يعني محسوساتو كې مستعمليږي، ښكته كيدل د يو مكان دي د بل مكان نه، لكه: هذا البيت دون ذاك البيت، دغه كور ښكته دي د دي بل كور نه، ويلي شي نو دا په محسوساتو كې مستعمليږي **يقال هذا دون ذاك** وائي: دغه شي ښكته دي د دي بل نه، **هغه انا كان احط منه قليلا** كله چې وي دغه شي ښكته په حسن د دې بل نه لږ غوندې ښكته، نو دا دون په اصل معنى كې په ښكته والي كې مستعمليږي خو په حسي ښكته والي كې، نه په رتبې كې، نو اجسامو كې راخې **ثم استعير** بيا نقل كړې شوي دي دا لفظ د دون **للتفاوت** لپاره د امتياز او فرق په دوو څيزونو كې **في الاحوال والرتب** او احوال او رتب [جمع د رتبة] د محسوساتو نه نه دي، لكه اوس نه ووائي چې **زيد دون عمرو في العلم**. و الجود، و الفقه، في العقل، يعني زيد د عمرو نه لاندې دي په رتبه

**مكان اخر** په قصر د موصوف على الصفة على مكان اخر باندې هم دا وي. كه ته مكان أخرى او مكان اخر نه صفت واحد اخلي نو بيا جامع نه شو خارج شو هغه چې هلته د مخاطب عقيده دوو. د پرو، څلورو كې ساتي. او كه نه ته عام اخلي نو قصر غير حقيقي مانع نشو د دخول: حبر نه داخل شو به كي قصر حقيقي. يعني اعتراض په قصر افراد او قصر قلب دوارو باندې وارد بري. نو ... جواب وكړي. په اختيار د شق ثاني سره، چې زه دون أخرى نه مراد عام اخلم. خو قصر حقيقي پكې نه داخليږي خكه چې دا عام به تفصيلاً وي معلوم به وي او قصر حقيقي كې ما عدا معلوم ندي، هغه اجمالًا دي. اوس نا دا وويله **ما زيد الا كاتب** زيد كاتب شاعر او منجم ندي، نو دا قصر حقيقي نشي كيدى دا غير حقيقي شو. اضافي شو. حقيقي دا دي چې **ما زيد الا كاتب** زيد مقصور دي په صفت د كتابت پورې بل هيڅ صفت ته متجاوز ندي، نو دا پكې اجمالًا معتبر شو. نو اختيار د شق ثاني سره يې جواب وكړو چې زه دون نه عام اخلم چې صفت واحده وي كه نه متعدد وي خو كه متعدد وي نو تفصيل شرط دي. او قصر حقيقي پكې نه شامليږي خكه هلته متعدد اجمالًا كرتي دي، تفصيلاً پكې نشته دي

**فكل منهما** نو شارح **اي فعلم** سره اشاره كوي چې دا فاء تفريعيه ده، نو د هغه متفرع عليه بيان كوي او د هغې تعيين كوي، دا يو غرض شو. دويم شارح په **اي فعلم** سره مناسبت ذكر كوي په ما بين د متفرع او متفرع عليه كې، چې وائي مناسبت دا دي چې **اي فعلم من هذا الكلام** معلومه كړي شوي ده د دې تير شوي كلام نه چې هر يو د دې دوارو نه **ضربان** دي، قصر حقيقي هم دوه ضربه شو، او قصر غير حقيقي هم دوه ضربه شو. نو دې كې يې اشاره وكړه متفرع عليه ته، امر اول ته. خكه چې د دې مخكني كلام نه چې **وكل منهما** مخكې بغير د فاء چې مخكې يې ويلي چې **وكل منهما نوعان اص ١٨٣** باندې متن كې؛ نو د و كل منهما نه معلومه شوه. متفرع عليه دغه دي. اوس مناسبت ته اشاره كوي، چې د دې متفرع د دې متفرع عليه سره مناسبت څه دي؟ وائي: **ومن استعمال لفظ او، فيه** او د استعمال د لفظ د او نه په دې كلام كې خكه هغه مخكې كلام كې استعمال د لفظ د او شوي دي، او لفظ د او د احد الامرين لپاره راخي. خكه هلته كې يې داسې ويلي دي چې **تخصيص امر بصفة دون صفة اخرى او مكانها** نو او د تنويع، احد الامرين لپاره راخي. نو نوعان شو. نو مناسبت دا شو. اوس هغه متفرع ته اشاره كوي، دا معلوم شوه چې **ان كل واحد من قصر الموصوف على الصفة و قصر الصفة على الموصوف ضربان** دي، قصر د موصوف على الصفة هم دوه قسمه. قصر افراد او قصر قلب او قصر د صفة على الموصوف هم دوه قسمه. قصر افراد او قصر قلب، نو څلور قسمه شو. خو د غير حقيقي نه، نو وي يې ويله چې **الاول** اول دا دي چې وائي **التخصيص** دې سره تعيين د اول كوي او دويم دفع د اعتراض كوي چې دا خو ثاني ته هم اول ويلي شي په نسبت سره ثالث ته چې بره نه شماري نو ثاني اول دي په نسبت سره ثالث ته. وائي جواب كوي چې د اول نه مراد اول حقيقي دي **التخصيص بشئ دون شئ و الثاني التخصيص بشئ مكان شئ** نو

چي يا هلكه دا اصطلاحات دي او اصطلاحاتو كي مضايقه او مشاحة نه وي، نو ماتن په دي امورو كي خانله مستقل بنفسه سري دي د چا مقلد ندي، د ده په نزد بانديې دا عام دي په دواړو كي راځي. به دي كي دا د شيخ تقليد نه كوي.

**والشار** سره شارح دفع د اعتراض كوي چي هلكه ستا مقصود خو دا وو چي انما مفيد لپاره د قصر دي هغه خو مخكي مثال سره ختم شو، اوس اشتغال په دي كي چي **لتضمنه معنى ما و الا** دا اشتغال بعث لا يعني شو، نو شارح جواب وكړو چي لا يعني ندي **والشار** اي الماتن **الى سبب افادة انما القصر** سبب او علت ته يي اشاره كړي ده، **بقوله لتضمنه** د وجي د نيولو د دي انما نه معنى ما و الالره، نو **انما** متضمن شو او دا معنى د ما و الامتضمَن شوه، او متضمِن خو مفيد لپاره د قصر وو نو متضمِن هم مفيد لپاره د قصر شو چي انما دي معترض راغي شبهه يي وكړه په ماتن بانديې چي هلكه مبني د متونو بنا بر اختصار ده نو ماتن داسي ولي ونه ويل چي **لانه بمعنى ما والا** وائي. نو دا لتضمنه يي يكي ولي وويله؟ نو شارح راغي جواب يي وكړو د ماتن د طرف نه چي **والشار** اي الماتن **بلفظ التضمن الى انه** اي لفظ انما **ليس بمعنى ما و الا** چي يو شي نو خه به شي وائي **حتى كانهما لفظان مترادفان** به شي، چي په معنى د ما و الاشي نو دا او هغه به مترادفان شي.

**اذ فرق** اوس د ا دليل وائي چي ليس بمعنى ما و الاچي مترادفين شي خكه چي **لا فرق** اي فرق عظيم بين ان يكون في الشئ چي انما دي معنى الشئ چي ما و الادي، نو شئ اول متضمِن او ثاني متضمَن و **ان يكون الشئ الشئ** مترادفين شو، وائي خكه چي فرق عظيم دي په ما بين د كيدو د دي كي چي شئ چي انما دي په معنى د شئ شي چي **ما و الا** دي، نو بيا انما متضمن شو او ما و الامتضمن شو، او په ما بين د ان يكون الشئ عين شي چي ما و الاشي **على الاطلاق** نو هغه خو بيا مترادفين دي

شبهه نو وائي مترادفين دي شي كنه څه دنيا ورانيږي؟ نو دا جواب كوي چي مترادفين شو نو بيا دا معنى شوه چي كوم ځاى كي چيرته چي انما سره قصر كيږي نو هلته كي په ما او الاسره به هم كيږي، او چيرته چي په ما او الاسره كيږي نو هلته كي په انما سره به هم كيږي، او دا چيرته هم نشته د چا په كلام كي. فليس كل كلام يصح فيه ما و الايصح فيه انما

شبهه هلكه دا به ته خان نه وائي ته به متفرد يي په دي كي هن؟ وائي نه **انما صرح بذلك الشيخ في دلائل الاعجاز** نو په ترادف بانديې قول مضر شو، نو چي مترادفين شو نو بيا هر هغه كلام چي صحيح وي هغې كي ما او الانو هلته كي انما به هم صحيح كيږي، او دا خو ندي

**و لما اختلفوا** سره شارح دفع د اعتراض كوي د ماتن نه، اعتراض په ماتن بانديې دا وارد شو، چي هلكه ستا مقصود دا وو چي انما مفيد لپاره د قصر دي پشان د ما او الا، نو هغه په دي مخكني كلام سره خو ختم شو. اوس اشتغال **لقول المفسرين** وروسته **و لقول النحاة** او وروسته **و لصحة انفصال الضمير** كي اشتغال

بما لايعني شو. نو شارح د ماتن د طرف نه جواب كوي چي وانما اختلفوا واني هر كله چي مختلف شوي وو دغه علماء في افادته په فائده كولو د لفظ د انما كي القصر قصر لره چي انما مفيد لپاره د قصر دي اوكه نه نه دي. وفي تضمنه اي انما معني ما والااختلاف داسې كړي وو چي بعضو ويلي وو چي انما مفيد لپاره د قصر دسره نه دي. بعضو ويلي وو چي انما مفيد لپاره د قصر دي خو عرفا دي. او متضمن معنى د ما او الالره ندي، او دريم مذهب دا وو چي دا انما مفيد لپاره د قصر عرفاً هم دي او استعمالاًهم دي، نو د مذهب ثالث د ثابتولو لپاره ماتن دا دلائل ذكر كړل نو بينه اي بين الماتن ذلك المذكور ان افادة انما القصر بثلاثة اوجه په دريو وجوهو سره يې ثابت كړه، چي انما د قصر لپاره راځي. يو لقول المفسرين يو وجه د دي قول د مفسرينو نه چي قوله تعالى: انما حرم عليكم الميتة خو دا قول المفسرين بناء دي بالنصب په نصب د الميتة باندي، نو معناه دا شوه چي ما حرم عليكم الا الميتة نو دغه انما متضمن معنى د ما او الالره شو، بيا وروستو مفسرينو ويلي دي چي وهذا المعنى دا معنى چي د نصب ده هو المطابق لقراءة الرفع مطابق دي په افاده د قصر كي. په دي افاده د قصر كي قراءة د رفع او د نصب موافق دي. شارح ورسره لګوي اي رفع الميتة دي كي يي اشاره وكره چي دا الف لام عوض دي د مضاف اليه نه يا الف لام عهد خارجي دي مراد د رفع نه رفع د الميتة دي

وتقرير هذا الكلام د دينه غرض د شارح دا دي چي واني چي په دي ايت كي دري قراءتونه دي، او د سر نه تفصيل كوي تر اخيره پوري، مونږ او تاسو ته ئول تفصيل كوي، او د متن توضيح كوي، او د متن ابهام رفع كوي، او د مطابقت معنى كوي، واني تقرير د دي كلام دا دي چي ان في الاية ثلاث قراءات ۱. حرّم كي مبنيا للفاعل مع نصب الميتة ۲ دويم قراءت ورفعها اي رفع الميتة حرم هغسې مبني للفاعل دي، ۳ دريم قراءت و حرم مبنيا للمفعول مع رفع الميتة تائيد لپاره يې ويلې كذا في تفسير الكواشي، اوس راشه فعلى القراءة الاولى، چي حرم مبني للفاعل شي او نصب د ميتة شي نو ما احكم د ما) في انما كافة دا كافه شوه خكه دا منع كوي د عمل نه ان لره. د كفوف نه ماخوذ دي. شبهه: يا هلكه كافه ولي واني موصوله ولي نه كوي؟ واني لا لو كانت موصولة كه ما موصوله شي، نو لبقي ان بلا خبر بيا د ان لپاره خبر نشته دي، خكه بيا معنى دا شوه چي ان الذي حرم عليكم الميتةَ، دا موصول سره د صلي نه خو اسم د ان شو. نو خبر چيرته دي، نو ان بلا خبره پاتي كيږي، دويمه بدي دا ده چي كه موصوله شي و للوصول بلا عائد بلا عائد دا معنى چي حذف د عائد ته به حاجت راځي، خكه چي بيا داسې شو چي ان الذي حرم عليكم الميتة او حذف د ضمير خو نه صحيح كيږي، خكه حرّم يو مفعول غواړي نو الميّتة خو يو شته دي نو بل عائد څه له را اوباسي، نو حاصل دا چي موصول بلا عائده پاتي كيږي

وعلى الثانية اي و على القراءة الثانية، چي حرم مبني للفاعل شي او الميتة مرفوع شي نو بيا دا ما موصوله ده، نو موصول سره د صلي نه اسم د ان شو او الميتة خبر د ان شو ليكون الميتة خبرا شبهه دي

واني هلكه الميتة خبر د ان ولې ګرځوي، الميتة فاعل د حرم ولې نه ګرځوي؟ نو جواب وکړو شارح چې **الا لا يصح ارتفاعها** ځکه صحيح نه دي رفع ورکول الميتة لره **بحرم** په حرم سره **المبني للفاعل** چې حرم مبني للفاعل شي **على ما لا يخفى** ځکه چې محرم الله دي، هلته کې ضمير راجع الله ته دي، محرم او محلل الله دي. نو معنى د قراءة د رفع دا شوه چې **والمعنى ان الذي حرمه الله عليكم الميتة** او دويم په المعنى کې اشاره کوي چې عائد د موصول محذوف دي، واني هغه شې چې الله حرام کړې دي په تاسو باندې هو الميتة دي، نو قرائت د رفع کې قصر هم راغي **وهذا** او دغه معنى **يفيد القصر** ځکه **لما مر** د وجې د هغه دليل نه چې تير شوي دي په **في تعريف المسند** من ان نحو المنطلق زيد و زيد المنطلق **يفيد حصر الانطلاق على زيد** نو دلته کې يې هم فائده کړو حصر د حرمت په ميتې پورې، لپاره د رد د زعم د کافرو چې ميته حلاله ده. هغوى ويل چې تاسو په خپل لاس سره د ځاروي نه روح وويستو نو هغه حلاليږي او چې الله روح ترينه وويستو نو واني چې حراميږي؟ نو مونږ ستاسو منو؟ نو الله پرې رد وکړو په دې ايت سره، نو **فلاذا كان انما متضمنا معنى ما و الا** اوس قراءة د نصب کې انما متضمن شو معنى د ما و الالره، نو **كان معنى القراءة الاولى** دلته عبارت شيخ دغسې ولګولو لکن شرحه کې **وكان** مع الواو دي فافهم، **ما حرم الله عليكم الميتة** شو. نو **كانت مطابقة للقراءة الثانية** مطابقت په افاده د قصر کې شو

او که اوس انما متضمن معنى د ما او الالره نه وي نو بيا قراءة اولى مطابق د قراءة ثانيه سره په افاده د حصر کې نه کيږي، بيا دا تشبيه صحيح نده، **والا** او که چيرته دا انما متضمن معنى د ما و الالره نشي نو **لم تكن** اي القراءة الاولى **مطابقة لها** اي بالثانية. ولې؟ **لانتفائها القصر** د وجې د فائده کولو د قصر د قراءة ثانيه نه. او قراءة اولى کې خو بيا قصر رانغي، نو بيا تشبيه ورکول چې **وهذا المعنى هو المطابق لقراءة الرفع** صحيح نشو، نو اوس شارح دا تفريع وکړه چې **فمراد السكاكي والمصنف بقراءة النصب والرفع** دا قراءتونه دي چې **هي القراءة الاولى و الثانية** دا ځان کې مطابق دي په افاده د قصر کې **و لهذا لم يتعرضا** دي سره دليل واني چې د سکاکي او د مصنف مراد دا قراءة د نصب او رفع ځکه دي چې واني د دې وجې نه دي دواړو تعرض ندي کړي [سکاکي او مصنف] **للاختلاف في لفظ حرم** حرم يو شان مبني للفاعل يې ګرځولي دي **بل** بلکه دوى تعرض کړي دي اختلاف ته **في لفظ الميتة رفعا ونصبا** قراءة اولى کې يې نصب لوستلي دي او قراءة ثانيه باندې يې رفع لوستلي ده. شبهه دا واني چې هلکه په قراءة ثالثه کې بيا څه شي شو قصر راغلو که رانغي؟ نو دا واني **واما على القراءة الثالثة** اعني رفع الميتة، چې رفع د ميتة دي او **حرم مبني للمفعول** واخلي نو **فيحتمل ان يكون ما كافة** نو بيا قصر راغي. نو تقدير داسې شو **اي ما حرم عليكم الا الميتة** او الميتةُ نائب فاعل د حُرم شو **وان تكون موصولة** او دا هم احتمال لري چې ما موصوله شي، نو معنى بيا دا شوه چې **اي ان الذي حرم عليكم هو الميتة** نو بيا هم قصر راغي، د تعريف د مسند او مسند اليه د وجې نه **ويرجع هذا** او ترجيح ورکولې شي دې کون د ما ته موصوله **ببقاء ان عاملة على ما هو**

ماتن **على صحة هذا الانفصال ببيت من هو ممن يستشهد بشعره** فصيح بليغ دي. **ولهذا** او د دې وجې نه چې دغه مستشهد او شاهد د دغه قبيلې نه دي چې د ده په قول سره دليل نيولې شي **صرح به اسمه فقال** اې الماتن **قال الفرزدق شعر انا الزائد** زائد د اسم فاعل صيغه ده هر مشتقې مشتق منه غواړي. نو مشتق منه د دې وائي **الذود** دي. دا تفسير د غير مشهور په مشهور سره كوي **وهو الطرد** ذود دفع كولو شړلو ته وائي كما في قوله تعالى و من دونهم امرأتين تذودان پس كولو ئې. شړلې يې خپلې ګډې بيزې. منع كولې يې د اوبو نه. نو معنى دا چې زه دفع كوم. شړم لرې كوم تكاليف مصائب د خپلو ملګرو نه. او **الحامي الزمار** وائي زه حافظ د وعدې يم. پالونكې د وعدې يم **اي العهد** دي كې شارح اشاره وكړه معنى لغوي د ذمار ته. چې ذمار په لغت كې وعدې ته ويلې شي **وفي الاساس** نه يې غرض دا دي چې اشاره كوي معنى مرادي ته. لكه عرب وائي **فلان حمى ذماره اي وفي بعهده**. او في الاساس سره معنى عرفي بيانوي چې د ذمار معنى عرفي. اصطلاحي او مراد څه معنى ده. نو وائي **وفي الاساس** په اساس كتاب كې. چې د لغت كتاب دي **هو الحامي الذمار** وائي دا فلانكې حافظ دي د ذمار چې اذا حمى په معنى سره. كله چې دا ساتي هغه څيز لره. هر څيز چې وي وعده وي كه غير وعده وي **هو الحامي الذمار** **وانه** وائي **اذا حمى** كله چې دا وساتي هغه څيز لره **لولم يحمه** كه چيرته دا نه ساتي هغې لره **ليم ملامت** كيدې شي. ملامتيا پرې راځي. نو اوس وعدې ته هم شامل شو او غير وعدې ته هم شامل شو. تا اوس ما سره وعده وكړه اوس تا هغه ونه ساتله نو ملامتيا دربانديې راځي. يو شي ما درسره امانت كېښوده تا هغه ونه ساتلو ملامتيا در بانديې راځي. دې ټولو ته شامل دي عام شو. **وعنف** او سختي پرې كيدې شي **من حمله** دا ماخوذ دي د دينه چې ساتلې يې وو دې شي لره **وحريمه** دا د عطف د خاص نه دې په عام باندې. حريم د شي ويلې شي حق د شي ته. حريم الشئ حق الشئ ته ويلې شي. لكه يو سړې زمكه موات كې يو كوهې راوويستو يو كوهې وكنستو. نو دا كوهې د هغه شو. هغه سړې حافر شو. اوس د دې كوهې نه څلويښت ګزه داسې. څلويښت ګزه داسې. څلور واړو طرفونو ته هم د دې حافر دي. يعنې په دې څلويښت ګزو مقدار كې بل سړې كوهې نه شي كنستلې. نه څوك تصرف كولې شي. ځكه چې د دې حافر د كوهې حريم شو. حق شو. چې اوبه مبو ورته زيم كيږي ګير چاپيره زمكه كې نو هغه به هلته كې ځي. د كوهې نه خشاك مشاك اوباسي كوهې صفا كوي نو په دې ځاى كې به غورځوي. خوا كې به ډوغل وكني هغې كې به يې غورځوي. يا اوبه پليتي شوي نو خوا كې به بل كوهې وكنې چينه دار كوهې وي. نو دا لوبه به هلته كې اړوي.نو دا كوهې به پرې صاف كړي. بيا به يې بند كړي. ديته حريم وائي. حريم د شي حقوق د شي ته وائي. نو دلته كې د دې كوهې سره خپل حق حفاظت راځي. په أرض الموات زمكه كې كوهې كنستلو سره. نو دا حفاظت خاصه دي. او مخكې دا حفاظت د مطلق شي دا عام دي كه د وعدې وي كه د امانت وي كه د وديعت وي. نو هغه

عام شو، نو دا حريمه عطف د خاص په عام باندي شو موضع د استشهاد په دي کي دی چي **وانما يدافع** واني دفع کوي **عن احسابهم** د عزتونو د دي قوم نه. د ابرو د دي قوم نه. **انا زه او مثلي** او يا زما غوندي خوان. بل څوک يي نشي دفع کولي. نو د قوم عزتونه او ابرو چي ساتلي شي نو زه يي ساتمه، زه د خپل او د نورو قومونو پوره حمايت کوم. يا چي زما پشان څوک خوان وي

اوس دا مثال مطابق د ممثل سره دي **اذ كان غرضه** اي الشاعر **ان يخص المدافع** چي دا بند کري مدافع. چي دا مدافعت مقصور دي په ما پوري ندي متجاوز زما نه بل چاته. نو اوس مقصور مدافعت شو، مقصور عليه انا شو **لا المدافع عنه** او د ده مقصود اغرض| مقصور کول د مدافع عنه ندي چي **هغه** احساب د قوم دي. خکه بيا خو ترجمه دا شوه چي دا مدافعت د احسابو د قوم ما پوري مقصور دي، متجاوز ندي احساب د غير د قوم خپل ته.

اوس دا دليل واني چي غرض د ده ولي خاص کول د مدافع دي د خان پوري نه مدافع عنه دا ولي؟ واني وجه دا ده چي د ده غرض خپله مدحه ده او مدحه په دي کي راخي چي مدافعت په ده پوري خاص شي هيله مدافعت د احسابو د خپل قوم کوي او که د پردي قوم کوي، نو مدحه راغله. اوس که مدافع عنه وربوري قصر کوي نو بيا خو معنی دا شوه چي مدافعت د احسابو د خپل قوم ما پوري مقصور دي د نورو نه، نو دي کي څه مدحه نشته دي، د خپل قوم خو هر سړي مدافعت کوي، نو **فصل الضمير** **ده جدا** کړو ده ضمير **عن عامله و اخره** واني **الا نو قال و انما ادافع** که متصل ضمير ده ويلي وي **عن احسابهم** نو بيا خو قصر د مدافع عنه راخي. بيا خو معنی دا شو **لصار المعنى انه يدافع عن احسابهم لا عن احساب غيرهم وهو ليس بمقصود** خکه په دي کي مدحه نشته دي

اوس دلته کي يو سړي راغي چي يا.هلکه دلته کي انفصال د دي وجي نه دی نه وي چي انما په معنی د ما و الاسره دي، دلته کي انفصال د ضرورت شعري د وجي نه دي وي کنه؟ نو شارح جواب کوي **ولا يجوز ان يقال لانه الخ،** ان يکون تاکيداً، نو ضرورت شعري هم پوره شو، تاکيد هم پکي راغي، معترض راغي شبهه يي وکړه چي هلکه دلته کي ما موصوله دي وي کنه؟ نو چي موصوله شوه او کافه نه شوه نو انما په معنی د ما او الاسره خو بيا نشي راتلي، نو ده جواب وکړو چي **وليست ما موصولة و انما خبرها** خکه اذ لاضرورة في العدول عن لفظ عَن چي د ذوي العقول لپاره وي الی لفظ ما خکه دلته کي ذوي العقول دي نو بيا مَن ويل پکار وو، بيا يي ما ولي ذکر کري، خو چي دا ما يي ذکر کري ده نو د دينه معلومه شوه چي دلته کي مقصود ما کافه ده، ما موصوله نده، که موصوله وي نو بيا مَن ذکر کول پکار وو، خکه ذوي العقول لپاره مَن راخي.

**ومنها التقديم** او بعضي د طرقو د دي حصر نه تقديم دي **اي تقديم ما حقه التاخير** دي کي يي اشاره وکړه چي التقديم کي الف لام عوض دي د مضاف اليه نه يا الف لام عهد خارجي دي **كتقديم الخبر على**

**كقولك في قصره** اي قصر المبتداء او يا تقديم المعمولات على الفعل، دا هم قصر فائده كوي
الموصوف **تميمي انا** يعني زه بند يم تميميو پوري متجاوز نه يم د تميمي نه قيسي نه
اوس دا شبهه كوي په ماتن باندي خانله خي، واني **وكان الانسب ذكر المثالين** دلته كي دوه مثالين ذكر كول
پكار وو **لان التميمية والقيسية ان تنافيا** په خپل مينځ كي يو بل سره متنافي وي نو **لم يصلح هذا مثال القصر**
**الافراد** خكه هلته كي شرط عدم تنافي دي، چي د شركت عقيده پكي صحيح شي **والا** او كه دا تميميت او
قيسيت په خپل مينځ كي متنافيين نه وي نو **لم يصح** دا **مثال لقصر القلب** نو دوه مثالونه پكار وو. ماسو
واني چي دلته كي دواړه صحيح كيږي. خكه چي تميميت او قيسيت دوه قسمه دي، يو تميمي او
قيسي هغه دي چي د يو بل حليف وي د يو بل سره بي دوستانه كري وي، او د يو بل د امداد بي وعده
كړي وه. يو تميمي او قيسي هغه دي چي د يو بل سره دشمنان وي، عداوت يي وي، نو كه د تميمي او
قيسي نه مراد هغه د يو بل حليف واخلي نو بيا دا مثال د قصر افراد شو، خكه د شركت عقيده صحيح
شوه. او كه د قيسي او تميمي نه مراد هغه عدو واخلي نو بيا دا مثال د قصر قلب شو
**وفي قصرها انا كفيت مهمك** واني ستا مقصود ما پوره كړي دي يواخي، ما سره بل څوك تړل نه وو. افراد
او قلب او تعيين بحسب اعتقاد المخاطب

ماتن په متن كي ويلي وو **وهذه الطرق الاربعة تختلف** دا طرق اربعه په دي راتلونكو وجوهو سره مختلف
كيږي، شبهه نو دا واني يا هلكه ما به الاختلاف او ما به الامتياز ما به الاشتراك غواړي، نو د دي طرقو
اربعو ما به الاشتراك په څه كي راغي؟ نو شارح ما به الاشتراك ذكر كوي خكه هر ما به الامتياز او ما به
الافتراق بغير د ما به الاشتراك نه نشي راتلي، نو وني ويله چي **بعد اشتراكها في افادة القصر** پس د اشتراك د
دينه نه په فائده كولو د قصر كي **تختلف مختلف** كيږي **من وجوه** د يو څو وجوهو نه، چي وجوه اربعه دي
يوه وجه دا ده چي **فدلالة الرابع** د رابع تعيين مصداقي كوي **اي التقديم** چي تقديم دي **بالفحوى** دا رابع
تقديم يو طرف ته كوه او دا دري نور بل طرف ته كوه، نو د دي رابع دلالت په قصر باندي په فحوى سره
دي، د فحوى دا معنى. تفسير د غير مشهور په مشهور سره كوي **اي بمفهوم الكلام** فحوى معنى مفهوم
د كلام. لكن مفهوم نه مفهوم التزامي واخلي. مفهوم مطابقي نه. خكه تميمي انا يا قيسي انا، دلته
كي خو مفهوم مطابقي څه دي تميمي يا قيسي دي د خان لپاره، قصر ندي په مفهوم مطابقي سره، نو
د مفهوم نه مفهوم التزامي واخلي نو خكه شارح تفسير كوي **بمعنى انه** اي الشان **اذا تامل صاحب الذوق**
**السليم فيه** اي في ذلك التقديم **فهم القصر** نو هغه فهموي قصر لره **وان لم يعرف اصطلاح البلغاء في ذلك** اي في
ذلك الافادة القصر، اگر كه ورته معلوم نه وي، لكن صاحب د ذوق سليمه ته چي ته وواني **تميمي انا**
**قيسي انا بصري انا** ، كوفي انا ، نو صحاب د ذوق سليمه پخپله معلوموي چي دلته كي تقديم شوي دي
چي قصر لپاره شوي دي بله څه وجه خو د قصر لپاره نشته. دغه معلوموي.

**ودلالة الثلاثة الباقية** چي عطف دي نفي و استثناء او انما دي نو دا په **بالوضع** په وضع سره دي. د دريو دلالت په قصر باندي په وضع سره دي په مفهوم التزامي سره ندي. داسي چي **لان الواضع وضعها** اي تلك **الثلاثة لمعان تفيد القصر.**

دويمه وجه د ما به الاختلاف بيانوي، وائي **و الاصل** اي **الوجه الثاني من وجوه الاختلاف** هغه دا ده چي **ان الاصل في الاول** اول څوك دي **اي طريق العطف** چي طريقه د عطف ده، **النص** تصريح ده **على المثبت و المنفي** په مثبت او منفي دواړو باندي لکه **زيد قائم لا قاعد ما زيد قائم بل قاعد كما مر** مخکي تير شوي دي. **نو فلا يترك النص عليها** نو نشي پريښودي تصريح په دي دواړو مثبت او منفي باندي **الا لكراهة الاطناب** مګر د دوچي د بد ګڼلو د اوږدوالي نه، تصريح په مثبت او منفي باندي به نه پريښودلي کيږي، هان په هغه ځاى کي به پريږدو چي اطناب راځي، لکه د هغي مثال داسي شو چي د اطناب د وجي نه تصريح پريښودلي شوي وي **كما اذا قيل زيد يعلم النحو و التصريف و العروض** د يو مخاطب دا عقيده وه چي زيد عالم په نحوه په صرف په عروض باندي وو، دا قصر د موصوف على الصفة کي شو، د شرکت عقيده يي وساتله. يا دا چي **او زيد يعلم النحو عمرو و بكر** يا هلکه په نحوه کي زيد عمرو بکر شريك دي، هم يي د شرکت عقيده وساتله، دا په قصر د صفت على الموصوف کي، نو ته په جواب کي به داسي وائي **فنقول فيهما** نو ته به وائي په دي دواړو مثالينو کي **زيد يعلم النحو لا غير** نو تفصيل سره يي ذکر نکړو. پکار خو دا وه چي **زيد يعلم النحو لا التصريف و العروض** داسي ويل پکار وو خو اطناب راځي. نو تا وويله **زيد يعلم النحو لا غير** په دويم کي داسي ويل پکار وو **زيد يعلم النحو لا عمرو و لا بكر** خو د دي په ځاى باندي ته ووائي **زيد يعلم النحو لا غير** د کراهيت د اطناب د وجي نه **اما في الاول فمعناه لا غير اي لا التصريف و لا العروض**، مضاف اليه د غير د لفظ نه وغورځولي شو او مراد په نيت کي شو نو **لا غير النحو** دا دي **اي لا التصريف و لا العروض و اما الثاني فمعناه** لا غير زيد اي لاعمرو و لابكر، نو دا واو په معنى د فاء سره کوي **فحذف المضاف اليه** حذف کړي شو مضاف اليه د غير نه، اول کي مضاف اليه تصريف او عروض وو دويم کي عمرو او بکر وو **وبني** او بناء کړي شو غيرُ **على الضم تشبيها بالغايات** د وجي د مشابه کيدو د غيرُ نه د غاياتو سره، چي **قبل و بعد** دي، نو اوس ګوره غيرُ مشبه شو او حروف غايات مشبه به شو او الـه د تشبيه د **تشبيها** نه فهميږي، او وجه د شبه ابهام او کثرت استعمال دي، دواړو کي ابهام دي، غير کي هم ابهام دي او قبلُ او بعدُ کي هم او کثرت د استعمال دي

**و ذكر بعض النحاة** دا بله خبره ذکر کوي چي ذکر کړي دي بعضي نحاتو چي شارح الرضي دي چي **ان لا في لا غير ليست عاطفة بل لنفي الجنس** دي، نو اول کي به وائي خبر د لامحذوف دي **لا غير زيد لا غير عالم** به وائي. هغه دليل دا وائي چي دلته کي لاعاطفه ځکه ندي ځکه چي لاعاطفه کي نص په مثبت او منفي باندي ضروري وي، دلته کي نص ندي شوي، نو د دي وجي هغه وائي چي دلته کي لاعاطفه نده بلکه

لا النفي الجنس ده او نحوه يا مثل د لاغير مثل لا ما سواه لكه ما سواه وائي و لا من عده وائي و ما اشبه ذلك.
والاصل في الثلاثة الباقية النص على المثبت فقط د فقط ترجمه كوي، اي دون المنفي وهو ظاهر خكه ما زيد الا قائم صرف مثبت باندي [نص] دي انما زيد قائم صرف مثبت باندي دي، تميمي انا، قيسي انا، صرف مثبت باندي دي، منفي نشته دي
والنفي دريمه وجه د وجوهو د اختلاف نه اي الوجه الثالث من وجوه الاختلاف دا ده چي ان النفي بلا العاطفة لا يجامع الثاني نفي په لاعاطفه نه جمع كيږي د ثاني سره، ثاني دا دي چي اعني النفي والاستثناء نو فلا يصح ما زيد الا قائم لا قاعد.
اوس شبهه راغله په شارح باندي چي ته وائي چي صحيح ندي او صاحب د كشاف په كلام كي خو جمع شوي دي، داسي چي صاحب د كشاف د دي ايت د لاندي ليكلي دي چي قوله تعالى: فاذا عزمت فتوكل على الله د دي لاندي هغه ليكلي دي چي فلأن الاصل هلك لايعلمه الا الله لا انت. نو صاحب د كشاف خو دلته كي جمع كړيده په و الّا و لاكي، نو دا وائي چي هلكه صاحب كشاف خو يو سري دي د هغه په كلام كي راغليدي. د كشاف كلام څه قران او حديث ندي، او زما مقصد دا دي چي د كلام الله او كلام الرسول او د بلغاء كلام كي دا نه راخي، او كشاف خو يو سري دي خانله لږ دي شي كنه، د هغه قول قابل د استدلال ندي، وائي وقد يقع مثل ذلك اي مثل ذلك الجمع في كلام المصنفين لكن كلام الله او كلام الرسول، او كلام البلغاء كي نشته دي، او كشاف د بلغاؤ نه نه دي، نو كه څوك شبهه وكړي چي هلكه صاحب كشاف لپاره خو نحوه كي ډير اقدام حاصل دي، څومره چي ده د قران كريم نحوي خدمت كړي دي، دارنګه يو مفسر ندي، علامه سيوطي باندي قابل دي. دا شعرونه علامه سيوطي په خپل كتاب كي د صاحب كشاف رانقل كړي او خپل تفسير كشاف باره كي نو وروسته خلكو د امام سيوطي نه رانقل كړي د ده د مدحي لپاره اصلًا شعرونه د صاحب الكشاف دي، كذا رايت مكتوبًا على الكشاف فافهم، علامه سيوطي وائي

ان التفاسير في الدنيا بلا عدد … وليس فيها مثل الكشافي
ان كنت تبغي الهدى فالزم قراءته … فالجهل كداء و الكشاف كالشافي

نو تاسو جواب وكړئ چي د كشاف قول هله معتبر دي چي د جمهورو نه خلاف نه وي په نحوه كي، او چي د جمهورو نه خلاف وي قول د كشاف نو مونږه يي ښكته سين ته غورزوو، او دا خبره ددهٔ جمهورو نه خلاف ده، خكه د جمهورو مسلك په ده باندي چي لاعاطفه د ما او الاسره نه جمع كيږي دا وائي لان شرط النفي بلا العاطفة دا دي چي ان لا يكون ذلك المنفي منفيا قبلها مخكي دد نه لانه دا شرط دي. او ما و الاكي هغه منفي مخكي منفي وي بغيرها په غير د دي لاسره. شارح ورسره ولګوه من ادوات النفي د دي قيد فائده شارح وروسته په خپله وائي، چي دا منفي، منفي مخكي د لا نه په نه وي په

راغلي وه چې ضارب زيد دي عمرو ندي، ما ورسره تېل كړو لاعمرو. نو دا جمع جائز ده. ځكه چې مخكې په اعتبار د علم د متكلم سره شو **او السامع** يا په اعتبار د علم د سامع سره. هغه مثال هم دغه دي **او نحو ذلك** يا مثل د دي، لكه وروسته راځي چې يو فعل كې معنی د امتنع وي، يا كف وي يا د ابی معنی وي، نو دا ټول دلالت په نفي باندې كوي، خو دا د ادواتو د نفي نه ندي، صراحةً نه كوي. نو دې سره لاجمع كيدې شي، واني **كما سيجئ** لكه وروسته په متن كې راځي چې **كما يقال امتنع زيد عن المجئ لا عمرو** [مختصر ۱۹۷\۲] هلته كې جائز دي، كما سيجئ في انما

لاترې لرې كوي **يقال** سره دا شبهه كوي، واني ويلې شويدي چې **هذا** دا ما ذكر د ماتن چې **بغيرها** دي **يقتضي جواز ان يكون منفيا قبلها بلا العاطفة الاخرى** د دينه خو دا معلوم شو چې كه دا منفي، منفي وي په بلې لاعاطفه سره نو دا بيا جائز ده. خو د لاعاطفه نه علاوه په بل حرف نفي سره منفي، منفي جائز ندي، ځكه **بغيرها** يې ويلي دي، نو بناء په دي خو نحو جاءني الرجال لاالنساء لاهند، دا خو جائز شو؟ ځكه په دي باندې صادقيږي چې دغه منفي چې هند دي منفي ندي په غير د ادواتو د نفي نه، بلكه په ادواتو د نفي سره منفي دي چې لادي، او په دي جواز باندې خو څوك قائل ندي؟ اتفاقاً خلق واني چې دا جائز ندي، نو ده وويله چې دا اعتراض د يقال والالايقال دي ځكه **لانا نقول** مونږ وايو **الضمير للذلك للشخص** واني **بغيرها** كې دا ضمير راجع دي دي شخص د لاته. نوع د لاته ندي چې دغه د لا دا شخص چې دا لام داسې (اوږد ولاړ) او ورسره الف داسې نيغ ولاړ او په دي مخصوص شكل باندې دا مشخص لاچې وروسته په معطوف كې دي، په دي مشخص لاسره مخكې منفي، منفي نه وي، او نوع د لاته ندي راجع چې نوع د لاسره بيا جائز شو، **اي بغير لا العاطفة** اللتي نفي بها ذلك المنفي

معترض راغي شبهه يې وكړه چې بيا خو د دينه دا معلومه شوه چې د دي لامشخص نه په غير سره په مخكې منفي به منفي نه وي او كه دي لامشخص سره مخكې منفي، منفي وي نو هغه جائز دي، او دا خو ممكن ندي لامشخص سره خو هم جائز ندي، ځكه چې تا وويله چې **بغيرها** ضمير دي شخص د لاته راجع شو نو مطلب دا دي چې دي لامشخص د غير سره دا مخكې منفي به منفي نه وي، نو كه دا لا مشخص سره مخكې منفي وو نو هغه بيا جائز شو؟ او هغه خو جائز ندي

نو اوس شارح د دي اعتراض نه جواب كوي **و معلوم** سره، شارح واني چې دغه لامشخص دلته كې دا بره چې په معطوف كې دا د معطوف نه مخكې قبل التلفظ دي نشي راتلي، نو په دي باندې مخكې تلفظ ندي شوي نو مخكې د دي راتلل په منفي كې محال دي، ځكه چې تشخص د لاخو په تلفظ سره كيږي، نو تلفظ په دي باندې شوي دي بره په جانب د معطوف كې نو د تلفظ نه مخكې خو دغه مشخص راتلي نشي، نو چې راتلي نو د ده مخكې راتلل محال دي د دي مشخص لا. نو ځكه واني چې **و معلوم انه يمتنع نفيه اي المنفي قبلها** مخكې د لامشخصه نه **بها** په دي لاسره ځكه لامتناع ان ينفي

جمع كيبري، نو تشبيه صرف په دي كې ورکوم، نو خكه وائي چې و التشبيه بقوله امتنع زيد عن المجيء من جهة ان النفي الضمني ليس في حكم النفي الصريحي، خكه نفي ضمني سره لاجمع كيبري او صريحي سره نه جمع كيبري لا من جهة تشبيه په دي جهت كې نه دي چې ان النفي بلا العاطفة منفي قبلها به وي بالنفي الضمني او په نفي د ضمني سره شته دي كما في انما انا تميمي لا قيسي كې. خكه انا تميمي سره نفي د قيسي راغله و لا من جهة د نفي لپاره دليل وائي ان لا دلالة لقولنا امتنع زيد عن المجيء على نفي مجيء عمرو لا ضمنا و لا صريحا دواړه نفي نشته دي

قال السكاكي شرط مجامعته تعيين د مرجع كوي اي مجامعة النفي بلا العاطفة للثالث د ثالث سره. ثالث ي انما چې انما دي [ادا دي] ان لا يكون الوصف مختصا بالموصوف گوره لاعاطفه چې د انما سره جمع كيبري به قصر د موصوف على الصفة كې، نو سكاكي وائي چې شرط دا دي چې دا صفت به مختص د موصوف سره به نه وي، وائي خكه چې كه وصف مختص موصوف پوري شو، بيا ته نفي كوي نو څه فائده رانغله، وائي لتحصيل الفائدة سكاكي دا دليل وائي مثال داسې شو، مثال د منفي لپاره دي كما في الحاشية.لكه نحو قوله تعالى: انما يستجيب الذين يسمعون دا قصر د موصوف على الصفة دي. استجابت بند دي په هغه چا پوري چې هغوى قران اوري، نو چې مني يي نو قبولتيا د هدايت هغوى كوي، نو دا قصر د موصوف على الصفة دي، نو اوس دا استجابت صفت مختصه د الذين يسمعون لپاره دي، اوس دي سره نفي د لاالذين لايسمعون ته حاجت نشته دي. خكه هغه هسې صفت مختصه دي [نو نفي د سره څه فائده نشته نفي كيبري نه] فانه يمتنع ان يقال لا الذين لا يسمعون دليل وائي لان الاستجابة لا تكون الا ممن يسمع. بخلاف انما يقوم زيد لا عمرو هلته كې حاجت شته دي، خكه قيام صفت مختصه د زيد ندي لان القيام ليس مما يختص بزيد.

نو سكاكي وائي دا شرط شته دي چې لاعاطفه چې جمع كيبري د انما سره په قصر د صفت على الموصوف كې، نو دا شرط دي چې دا صفت به صفت مختصه د موصوف به نه وي، كه صفت مختصه وي نو نفي كه وروسته په لاسره راغله نو نفي بلا فائدي كيبري

و قال عبد القاهر لا تحسن وائي دا جمع بنه ندي، اي مجامعته للثالث في الوصف المختص كما تحسن في غيره سكاكي وائي چې دا شرط د اصل مجامعت لپاره دي، شيخ وويل چې دا شرط د حسن لپاره دي، اصل لپاره ندي، ماتن شيخ ته ترجيح وركوي و هذا اقرب الى الصواب وائي دا ما قال د شيخ د ير نزدې دي صواب ته لا دليل على الامتناع شبهه هلكه په امتناع باندې ولې دليل نشته دي لتحصيل الفائدة خو سكاكي دليل ويلي دي، تحصيل د حاصل خو ممتنع دي؟ جواب دا وائي هلكه تحصيل د حاصل نه راخي عند قصد زيادة التحقيق و التاكيد په وخت د قصد كولو د زيادت تحقيق او تاكيد كې تحصيل د حاصل نه راخي

بالقوة علم او بالقوة عدم انكار وي، بالفعل به انكار او جهل به وي، نو قصر كي فائده راغله. نو
معترض اعتراض بنا شوي دي باندې چې د ده د علم او د عدم انكار نه بالقوه مراد دي، نو دا جواب هم شو. او
مجيب جواب بنا دي په دي باندې چې د علم او د عدم انكار نه بالفعل اخستي دي. او
منشا د غلطيا د و فيه بحث والا [الپاره] هم شوه، نو وائي **و جوابه ان مرادهم اي العلماء** دا دي چې **ان لا**
**يكون لخبر من شانه ان لا يجهله المخاطب** چې مخاطب ته هغه مجهول نه وي يعني ظاهر وي. او بالفعل
مجهول ورته وي او منكر ورته وي **و لا ينكره** چې هر كله د شان د ده نه عدم انكار او عدم جهل شو حتى
**ان انكاره يـزول بـادنى تنبيه** او ادنى تنبيه په انما كي ده. خكه **لعدم اصراره اي المخاطب عليه اي على**
**الجهل و الانكار و على هذا شبهه** وائي دي جواب كي ته متفرد به يې، دا بل چا به نه وي كړي؟ وائي
على هذا بناء په دي تاويل باندې **يكون موافقا** دا ما في الايضاح **موافق لما في المفتاح** سره. موافقت هم راغي
د منقول د منقول عنه سره

**كقولك لصاحبك** وائي دا قول ستا خپل ملگري ته، حال دا دي **و قد رايت شبحا من بعيد** پوري په دي سرك كي
يو شكل ما وليدو نو ما ويل چې هلكه دا شكل د زيد دي، تا ويل نه دا خر دي مولوي صيب، ما ويل
چې نه زيد دي، تا ويل نه دا خر دي، نو ته په خپل انكار باندې مُصر يې، چې نه منم چې دا زيد دي، دا
خر دي، نو دي كي زه اوس تاته قصر كولي شم چې **ما هو الا زيد** خو **هله الا اعتقده** اي اعتقد ذلك الصاحب
لذلك الشبح غيره تعين د مرجع گانو كوي **اي الا اعتقد صاحب ذلك الشبح غير زيد مصرا على هذا الاعتقاد**

**و قد ينزل المعلوم منزلة المجهول** اي په يو خاى كي يو حكم مخاطب ته معلوم وو د شان د هغه نه علم وو.
عدم جهل او عدم انكار دي، نو هلته كي خاى د انما وو. لكن متكلم لگيدلي وي هغه معلوم حكم بي
نازل كړى وي په منزله د مجهول كي. نو هلته كي بي ما او الا مستعمل كړي دي، او په منزله د مجهول
يې ولي نازلوي. متكلم يې په زور سره د څه نه نيولي شي؟ وائي نه نه **لاعتبار مناسب** د وجي د اعتبار
مناسب نه. چې د اعتبار مناسب د وجي نه يې نازلوي. نو دلته كي اوس انما مستعملول پكار وو، خو
د تنزيل نه وروسته **فيستعمل له** مستعملوي متكلم **لذلك المعلوم الثاني** ثاني څوك دي؟ اي النفي و
الاستثناء دي **افرادا** يا هلكه افراداً منصوب دي، نصب بنا بر څه؟ وائي **حال كونه** حال دي **قصر افراد** په
حال كون د دي ثاني كي چې **قصر افراد** سره راخي، اشاره يې وكړه چې دا حال دي خو په حذف د مضاف
سره، چې قصر افراد دي، مثال داسي شو **و ما محمد الا رسول قد خلت من قبله الرسل** اي مقصور على
الرسالة، ندي محمد صلى الله عليه و سلم مگر مقصور دي په رسالت باندې، دائي ترجمه د قصر
وكړه، شبهه راغله چې هلكه ندي محمد صلى الله عليه و سلم مگر مقصور دي په رسالت باندې
متجاوز ندي بل هيڅ صفت ته، نو دا خو نه صحيح كيږي؟ جواب وكړو ماتن چې **لا يتعداها الى التبرء من**
**الهلاك** چې يا هلكه قصر حقيقي ندي قصر اضافي دي، وائي نه متعدي كيږي د دي رسالت نه تبري

من الهلاك ته بلکه هلاکیږي به اوفات کیږي به؛ دا مثال مطابق د ممثل سره دي. خکه **فالمخاطبون** چې صحابه دي **و هم الصحابة رضي الله عنهم كانوا عالمين بكونه** اي بکون محمد صلی الله علیه و سلم **مقصورا على الرسالة غير جامع بين الرسالة و التبرء عن الهلاك** صحابه په دي باندې هم عالم وو چې رسول الله صلی الله علیه و سلم رسول دي او مبرء عن الهلاك ندي، بلکه هلاکیږي هم. هغوی ته پته وه **لكنهم** اي الصحابة **كانوا يعدون هلاكه** اي رسول الله صلی الله علیه و سلم **امرا عظيما** دا اعتبار مناسب شو. چې هغوی هلاك د رسول الله صلی الله علیه و سلم امر عظیم شمارلو **نزل استعظامهم** نازل کړي شو لوی ګڼل د صحابو **هلاكه** مړ کیدل د رسول الله صلی الله علیه و سلم **منزلة انكارهم** اي الصحابة **اياه** اي الهلاك. نو ناستُعمل له النفي و الاستثناء **والاعتبار المناسب هو الاشعار بعظم هذا الامر** خبرداري ورکوي الله په لوی والي د دي امر سره چې رسول الله صلی الله علیه و سلم د دنیا نه رخصت کیده، دا لوی امر وو **في نفوسهم، و شدة حرصهم** اي الصحابة **على بقائه صلى الله عليه وسلم** باندي

د دي وجې نه د رسول الله صلی الله علیه و سلم د مرګ نه وروسته صحابه درې ډلې شوي وو. یوه ډله داسې چې بلکل خبري یې نه شوې کولی بس ګونګیان شوي وو. بدن حرکت نه کولو. خوله چاړا شري وه لکه حضرت علي رضي الله عنه او عثمان و غیرهما رضي الله عنهما. دویمه ډله د صحابو داسې وه چې توره یې ونیوله او بهر ته را ووتل چې هلکه چا چې دا خبره وکړه چې رسول الله صلی الله علیه و سلم مړ دی سر ترې پرې کوم ګوري. حضرت عمر و غیره شو! هغوی ویل چې رسول الله صلی الله علیه و سلم مړ ندي، چا چې د مرګ خبر ورکړو هغه سري زمونږ دشمن دي. دریمه ډله د صحابو حلیم الطبع. بردبار، حضرت ابو بکر، هغه نه وو، بانده کې وو. خبر راغي چې رسول الله صلی الله علیه و سلم مړ شو، نو هغه باندې نه راغي، نبي علیه السلام د هغه د لور کور کې وو. حضرت عائشي. دته لاړو. څادر یې پورته کړو واقعي مړ وو. نو بهر ته را ووتلو نو د صحابو حالت خراب دي. ګډ وډ دي، نو ټول یې جماعت ته را وبلل په منبر باندې وختو **و ما محمد الا رسول قد خلت من قبله الرسل افائن مات او قتل انقلبتم على اعقابكم** د ده مړه کیدو سره دین نه ختمیږي، د ده مشن نه ختمیږي، وائي د ده دا مشن تر قیامته پورې به جاري وي، وائي مونږ او تاسو اوس دي له ملا به تړو. د ده مړ کیدو سره د ده مشن نه ختمیږي، کار نه ختمیږي، دا خو لاړو، خو اوس مونږ او تاسو به د ده د وراثت غور کوو

حضرت عمر فرمائي چې زما خیال کې راغله چې دا ایت اوس نازل شو. وائي د سره زما د ذهن نه وتلي ؤ، پریشاني د علم لپاره لوی افت دي، پریشاني او خفګان بس د علم نسیان دا لازم او ملزوم. پریشاني او خفګان او د علم نسیان، حضرت عمر وائي چې د پریشانۍ د وجې نه زما دا خیال وشو چې دغه ایت اوس نوي نازل شو.

**الثا عطف على قوله افرادا**، یعنې قصر قلب یا قصر قلب سره به وي **نحو قوله تعالى: ان انتم الا بشر مثلنا**.

دا مثال مطابق د ممثل سره دي **فالمخاطبون و هم الرسل صلوات الله عليهم لم يكونوا جاهلين بكونهم** اي كرن **انفسهم بشرا و لا منكرين لذلك البشرية** نو اوس دا كافرو ما او الاوويله؟ **لكنهم** اي الرسل **نزلوا منزلة المنكرين** كافر نازل كري شول، متكلمين كافر دي. خكه **لانتقاد القائلين و هم الكفار جي ان الرسول لا يكون بشرا مع اصرار المخاطبين** چي رسولان دي **على دعوى الرسالة** چي مونږ پيغمبران يو، مونږ پيغمبران يو، نو كافرو دا خيال وكړو چي دوى د خپل بشريت نه منكر دي كنه، خكه بشريت او رسالت نه جمع كيږي في اعتقادهم **فنزلهم القائلون** اي فنزل الرسل القائلون **منزلة المنكرين للبشرية، لما** يا **لما اعتقدوا اعتقادا فاسدا من التنافي بين الرسالة و البشرية** نو **فقلبوا هذا الحكم** پيغمبرانو خو ويله مونږ رسل يو، هغوى ويله نه تاسو رسولان نه ياستئ بشر يئ، نو قصر قلب شو، نو **فقلبوا هذا الحكم و قال ان انتم الا بشر مثلنا** د قصر ترجمه كوي **اي انتم مقصورون على البشرية ليس لكم وصف الرسالة تدعونها.**

**و لما كان ههنا مظنة سؤال** دي كي اشاره كوي ماتن چي دا راتلونكي متن جواب دي د سوال مقدره نه. بل دفع د اعتراض كوي چي ستا مقصود مثال وو د قصر افراد، د ما او الالپاره مثال وو د قصر قلب. نو هغه مثال خو ختم شو، اوس وروسته **و قولهم ان نحن الا بشر مثلكم** كي اشتغال بما لايعني راغي. خكه دي لره په مثال كي خو څه دخل نشته دي، نو شارح جواب وكړو چي دا جواب دي د سؤال مقدره نه **و لما كان ههنا** اي في هذا المقام **مظنة سؤال** اي موضع ظن السؤال **و هو ان القائلين** و هم كفار **قد ادعوا التنافي بين البشرية و الرسالة و قصروا المخاطبين** چي پيغمبران دي **على البشرية** لكن **و المخاطبين قد اعترفوا بكونهم مقصورين على البشرية حيث قالوا ان نحن الا بشر مثلكم** نو **فانهم** اي الرسل **سلموا انتفاء الرسالة عنهم** اي عن انفسهم، او د كافرو سره يې موافقت رد كړو، نو **اشار** اي الماتن **الى جوابه بقوله و قولهم** اي قول الرسل المخاطبين **ان نحن الا بشر مثلكم من باب مجاراة الخصم** دا د باب د تلو نه دي په هغه لار باندي چي خصم هم كوم لاره باندي خي، چي ستا د مناظر او مقابل په كومي لاري باندي خي. په هغه لاري باندي ته هم روان شي ورسره، چي هغه خوشحاله شي، چي يا هلكه دا سړي زما ملگري شو **و ارخاء العنان اليه** او سستول د واگي دي دي خصم ته **بتسليم بعض مقدماته** نو هغه به خوشحاله شي چي كه خير وي دي ماته لږ مائل شو حالانكه ته هغه چپ كري چي شور ونكري، او بيا دپاسه پرې اتم بم راخلاص كړي **ليعثر** د دي لپاره چي وخوريږي دا خصم **ليعثر** كه د عثور نه شي نو ويلي شي اطلاع ته، خبرو ته، او كه د عثار نه شي نو بيا ويلي شي خويدلو ته، دير بابونه دي چي هغي كي فرق په اعتبار د مادي او مصدر سره وي **من العثار هو الزلة** چي خصم په ختيه كي وخويږي. ارتاو كړي **و انما يفعل ذلك** واني كيږي دا مجارات او مماشاة **حيث يراد تبكيته** دا په هغه خاى كي چي ستا خصم شور كوي، خبري ته غوږ نه ږدي، دليل ته تدبر نه كوي، نو ته ورسره هنر كوي چي راشي زما خبره واوري او چي زړه ته يې چيرته پريوځي نو. تبكيت نه **اي اسكات الخصم و الزامه، لا لتسليم انتفاء الرسالة** نو **فكانهم قالوا** اي الرسل، چي اي هلكه تاسو غوږ

کېږدي لکوټی . نو هغوی به ورته غوږ کېږدي . نو پېغمبرانو ويل **ان ما ادعيتم من كوننا بشرا فحق لا ننكره** نو شور به نه جوړوي خوشحاله به شي چې زمونږه خبره يې ومنله . نو دا **لكن** پري دپاسه اتم بـم شـو چې **و لكن هذا لا ينافي** واني لکن دغه کېدل زمونږ بشر دا منافي ندي د دې سره چې الله احسـان وکړي پـه مونږ باندې په رسالت سره . ولې په تاسو اور لګیدلې دي . واني نبي څه ممانعت نشته دی **فلهذا** پس د دې عدم تنافي د وجې نه **اثبتوا البشرية لانفسهم** معترض راغي شبهه يې وکړه چې يا هلکه بيا پيغمبرانو قصر ولې کړي دي؟ بيا خو بې د قصر نه ويل پکار وو کنه چې **نحن بشر مثلكم** نو قصر ته بيا څه حاجت وو؟ جواب کوي **و اما اثباتها** البشرية **بطريق القصر** واني دا خو **فليكون على وفق كلام الخصم** کنه . هغوی داسې ويلي چې **ان انتم الا بشر مثلنا** نو دوی ويله **ان نحن الا بشر مثلكم**

**وكقولك** عطف على قوله كقولك لصاحبك . شبهه دا واني چې په هغې باندې عطف شو نو دا دويم مثال شو . او مثال نه مقصود توضيح د ممثل وي . نو يو کافي وو . دويم ته څه حاجت نشته دي . نو دې جواب کوي **و هذا مثال لاصل انما** يا هلکه تعدد د مثال په اعتبار د تعدد د ممثل سره دي . ممثل دوه وو . يو انما بل ما او الا . نو مخکې دوه ايات کريمه د ما او الا مثالونه شو . دا د انما مثال اوس بنائي . واني **اي الاصل في انما ان يستعمل فيما** اي في حكم لاينكره المخاطب **كقولك انما هو اخوك** يو طالب دې د هغه سره يو ورو کې ورور دې ورسره چنې دي . نو هغه مشر خانله هغه ورور ضربوي او هميشه يې وهي . نو اخوا نه بل طالب ورته وواني چې يا هلکه **انما هو اخوك** ترس پرې وکړه . نو هغه طالب بـه پوهـه دې چې دا زما ورور دې . ماسره چنې راغلې دي . سبق واني **لمن يعلم ذلك** دا اخوت **و يقر به** لکن ته ورته په قصر سره واني خکه چې که ستا ورور وي نو ترس پرې وکړه . ته يې دومره ضربوي . نو معلوميږي دا چې دا ستا ورور ندي . ته ترينه انکار کوې . ستا د شان نه انکار او جهل دې د اخوت نه **و انت تريد ان ترققه عليه اي تجعل من يعلم ذلك رفيقًا مشفقًا على اخيه**

شارح په دې باندې اعتراض کوي . خانله خې . جواب مواب نه کوي . واني **والاولى على ما ذكرنا** چې اصل د انما کې دا ده چې هغه به مستعمليږي د هغه خبر لپاره چې د شان د هغې نه جهالت وي او اصل د ما او الادا دي چې هغه بـه مستعمليږي هغه حکم لپاره چې مخاطب د هغې نه منکر وي او ورته مجهول وي ، اوس دلته کې **انما هو اخوك** کې خو مخاطب ته اخوت معلوم وو او اقرار يې هم کولو . نو قصر ته حاجت نه وو . تا قصر وکړو نو دا اخراج د کلام خلاف د مقتضی د ظاهر نه شو . نو ديته دا ويل پکار وو چې اخراج د کلام د خلاف د مقتضی د ظاهر نه . دا نوم ورته اينـودل پکار وو . واني د **الاولى ان يكون هذا المثال من الاخراج لاعلى مقتضى الظاهر**

نو تاسو وواني چې دا هم کېدې شي او دا بل هم کېدې شي . دواړه جائز دي . ديته دا هم ويلې شي چې دا اخراج د کلام دې چې مخاطب دې د مقتضی د ظاهر نه . خکه مقتضی د ظاهر عدم قصر وو خکه

مخاطب عالم وو په اخوت او اقرار يې هم كولو، نو قصر ته حاجت نه وو، لكن ده پرې رحم او ترس نه كولو نو د دې وجې نه متكلم قصر وكړو چې دا پرې ترس او ترحم وكړي. نو اوس ته دينه خلاف د مقتضى د ظاهر نه هم ويلې شي، او دا هم ويلې شي چې دلته كې انما سره قصر شوي دې په هغه خبر كې چې د مخاطب د شان نه علم او انكار دې، دواړه ورته ويلې شي

**و قد ينزل المجهول** اې په يو خاى كې يو حكم مجهول وي مخاطب نو هلته كې ما او الاېكار وو لكن متكلم هلته كې هغه مجهول نازل كړې وي په منزله د معلوم كې نو انما پكې مستعملوي **منزلة المعلوم لادعاء** اي لادعاء المتكلم **ظهوره** اى ظهور ذلك الحكم **فيستعمل له الثالث** اي انما **نحو قوله تعالى حكاية** اي حال كون الله تعالى حكاية **عن اليهود** قوله تعالى انما نحن مصلحون دا مثال مطابق د ممثل سره دې، ادعوا ان كونهم مصلحين ظاهر من شانه **ان لا يجهله المخاطب** چې مؤمنان دي **و لا ينكره** يهود وويل چې اې مسلمانانو تاسو مونږ ته وائي چې تاسو فساديان يې، فساد مه كوئ مونږ خو مقصور يو په اصلاح پورې متجاوز د اصلاح نه فساد ته نه يو، او زمونږ اصلاح تاسو ته معلومه ده او نه ترينه تاسو انكار كوئ **و لذلك** او د دې ادعاء د وجې نه، نو يهود و خو دا دعوه وكړه د اصلاح، چې دوى ويل چې د شان د هغې نه عدم جهل او عدم انكار دې، حالانكه مؤمنان د دې اصلاح د دوى نه منكر وو، او اصلاح يې مؤمنانو ته معلومه نه وه، فساد يې معلوم وو **و لذلك جاء** په رد كې **الا انهم هم المفسدون للرد عليهم مؤكدا بما ترى** بما ترى خومره مؤكدات دې؟ ١ من ايراد الجملة الاسمية الدالة على الثبات ٢ و تعريف الخبر الدال على الحصر ٣ و توسيط ضمير الفصل المؤكد للعطف اي الحصر ٤ و تصدير الكلام بحرف التنبيه الدال على ان مضمون الكلام مما له خطر و به عناية ٥ و تاكيده بان ٧ ثم تعقيبه بما يدل على التقريع و التوبيخ و هو قوله و لكن لايشعرون، چې هلكه د دې خلكو لپاره شعور هم نشته دې، په محسوساتو باندې يې هم علم نشته دې، خكه چې د دوى دا فساد محسوس دې او دوى وائي چې مونږ مصلحين يو، نو دوى سره شعور هم نشته دې چې فساد ته اصلاح وائي، وائي دوى د عين نه غين جوړوي، گټي نه لوټه او د لوټي نه گټه جوړوي

**و مزية انما على العطف** يعني انما سره قصر كول غوره دې په نسبت سره عطف ته، نو غوره والې د انما په عطف باندې دا دې چې **انه يعقل منها** اي من انما **الحكمان معا** اعني الاثبات للمذكور و النفي عما عداه **معا** يو خاى فهميږي، بخلاف العطف فانه يفهم، او انما نه معًا معلوميږي لكه **انما زيد قائم** يعني زيد مقصور دې په قيام متجاوز ندې قعود ته، دواړه د دې انما نه فهم شو

**و احسن مواقعها** كې شارح اشاره كوي دينه چې يا هلكه انما كې هميشه قصر مقصود ندې، بلكه كله كله پكې مقصود تعريض هم وي، او هغه تعريض د انما د احسنو مواضعو نه دې، نو وائي **و احسن مواقعها** اي مواقع انما، غوره خايونه د دې انما **التعريض** تعريض كول دې په چا باندې، تعريض په لغت

مضروبيت) عمرو نه بل چا ته، او عمرو مضروب د زيد هم دي او د بل چا دي هم وي وعلى هذا قياس
البواقي باقي قياس كوه، قصر د مفعول په فاعل باندې ديته وائي چې قصر د هغه فعل چې هغه واقع
شوى دي په مفعول باندي، فاعل پوري (مسند دي فاعل ته) نو دا قصر د صفت موصوف ته راجع شو.
ثم فيرجع الى قصر الصفة على الموصوف او العكس دواړه صحيح دي. و يكون حقيقيًا و غير حقيقي افرادًا و
قلبًا و تعيينًا و لا يخفى اعتبار ذلك.

اوس خان پوهه كړئ په دې مقام كي دري صورتونه دي، يو اكثر صورت دا دي چې الا سره د مقصور
عليه نه مؤخر وي دا خو ماتن ذكر كړو، دويم صورت دا دي چې الا سره د مقصور عليه نه مقدم شي.
لكه گوره اوس ته قصر د فاعل په مفعول باندې وائي داسې به وائي چې ما ضرب زيد الا عمرا الاعمرا
زيد، چې عمرو مقصور عليه وائي او زيد مقصور ووي، نو دا دويم صورت شو ماتن يې ذكر كوي، نو
دا جائز دي خو على قلة يعني جائز دي خو ډير كم كوز، دريم صورت دا دي چې ته مقصور عليه مقدم
كړې بې د الانه، لكه اوس قصر د فاعل على المفعول، چې داسې وو چې ما ضرب عمرًا الازيد، اوس
ته عمرو مقدم كړې بې د الانه، او داسې ووائي چې ما ضرب عمرًا الازيد، دا صورت له سره جائز
ندي، خكه دلته كې عكس المطلوب او قلب المقصود راځي، خكه ستا مقصود قصر د ضاربيت د
زيد وو په عمرو پوري، او بناءً على هذا قصر د مضروبيت د عمرو شو په زيد پوري، نو دا د سره جائز
نه دي، شرح جامي دې ويلې ده، خو چا چې ياده كړې وي

نو ماتن اوس هغه دويم صورت ته اشاره كوي وقل د قل ترجمه كوي اي جاز على قلة تقديمهما تعيين د
مرجع گانو كوي، اي تقديم المقصور عليه و اداة الاستثناء على المقصور حال كونهما كې اشاره كوي
چې بحالهما دا په اعتبار د متعلق سره حال دي د دې تقديمهما د غير نه، وائي په حال كون د دې مقصور
عليه او اداة استثناء كې چې په خپل حالت باندې وي، نو دا دي چې ان يلي المقصور عليه الاداة، لكه ته
ووائي په قصر د فاعل على المفعول كې ما ضرب الا عمرا زيد نو د الا عمرًا مقصور عليه شو او زيد
مقصور شو، نو هغه مقصور عليه تاسره د الا نه مقدم كړو، دويم مثال بيائي په قصر د مفعول على
الفاعل كې و ما ضرب الا زيد عمرا في قصر المفعول على الفاعل، نو فاعل مقصور عليه وو هغه تاسره د
الا نه مقدم كړو په مفعول باندې، اوس دا وائي چې بحالهما يې خكه وويله چې په دې سره احتراز وشو د
هغه دريم صورت نه، چې هغه د سره جائز ندي، وانما قال اي الماتن بحالهما احترازًا عن تقديمهما د تقديم
د دې مقصور عليه او اداتو نه مع ازالتهما عن حالهما، د حالت نه ازاله به داسې كوي چې بان تؤخر الاداة
عن المقصور عليه لكه داسې ته ووائي كقولك په قصر د مفعول على الفاعل كې چې ما ضرب زيد الا عمرا او
په قصر د فاعل على المفعول كې داسې وويل، ما ضرب عمرًا الازيد، مقصور عليه مقدم كړې بې د
الا نه فانه لا يجوز خكه لما فيه من اختلاف المعنى خكه مقصور عليه مقصور عليه جوړ شو او مقصور عليه نه
مقصور وانعكاس المقصود.

وي نو مجرور به وي شبهه دا واني چې دا خو مستثنى مفرغ نه شوه دا خو مفرغ فيه شوه كنه؟ جواب تاسو واني **فيه** پكې حذف دي، نو نفي په استثناء مفرغ كې **يتوجه الى مقدر** هغه مقدر څوك دي **وهو مستثنى منه** خكه واني **لان الا للاخراج** دا دليل د متن لپاره واني، و الاخراج يقتضي مخرجًا منه. نو مخرج منه چې عام به ولې وي؟ د دې لپاره **ليتناول المستثنى وغيره** نو **فيتحقق الاخراج** نو اخراج د مستثنى به صحيح شي، خكه مستثنى په مستثنى منه كې تعدد غواړي، دويم شرط هسې مقدر **مناسب للمستثنى في** جنسه چې دغه مقدر به مناسب وي د مستثنى سره په جنس كې چې مستثنى متصل شي، خكه اصل په مستثنى كې مستثنى متصل ده. مثال داسې شو **بان يقدر في نحو ما ضرب الا زيد** كې داسې به وايو **ما ضرب احد الا زيد**. خكه زيد د جنس د احد نه دي، او دلته كې ته اوس ثوب نشې ويستلې، خكه زيد د جنس د ثوبې نه خو ندي، او **ما كسوته الا جبة** كې به داسې وايو چې ما كسوته، لباسًا الاجبةً، خكه جبة د جنس د لباس نه ده، د زيد نه نده **وفي نحو ما جاء الا راكبا** كې ما جاء كائنًا على حال من الاحوال الا راكبًا. خكه چې ركوب يو حال دي د احوال د مجئ نه **ما سرت الا يوم الجمعة** دلته كې جنس دا دي چې **ما سرت** في وقت من الاوقات الا يوم الجمعة **وعلى هذا القياس** واني څومره به تاته ضبطوم

دريم **وفي صفته** يعني دا مقدر به مناسب وي د مستثنى سره كه صفت فاعل وي نو دا به هم فاعل وي كه مفعول وي دا به هم مفعول وي كه حال وي دا هم حال كه ظرف نو دا هم ظرف، نو اوس **والا كان** دا تتمه د دليل كوي، واني و اذا كان النفي متوجهًا الى هذا المقدار، نو **فاذا اوجب منه** كله چې ثابت كړې شو د دغه مقدر نه يو شي په الا سره نو **جاء القصر** قصر پخپله راغي، خكه ضرورة بقاء ما عداه على صفة الانتفاء، هغه قدر د مستثنى ثابت شو او ما بقي په صفت د نفي باندې پاتې شو

**وفي انما يؤخر المقصور عليه** اي انما كې هميشه دا ده چې مدخول د انما به مقصور وي او ما بعد د مدخول نه به مقصور عليه وي، لكه **انما نحن مصلحون** نو مدخول د انما نحن دي او ما بعد ترينه مصلحون، دا نحن مقصور شو مصلحون پورې، منافقينو ويل مونږ مقصور يو په اصلاح پورې، متجاوز د اصلاح نه نه يو افساد ته، لكه دلته كې **تقول انما ضرب زيد عمرا** نو دلته كې مدخول د انما ضرب د زيد شو، او مؤخر عمرو دي، نو دا **فيكون القيد الاخير** چې عمرو دي **بمنزلة الواقع بعد الا** شو، نو فيكون هو المقصور عليه، اوس دلته كې تقديم جائز ندي، دلته كې د مقصور عليه تقديم د سره جائز ندي، خكه هلته الا سره جائز وو، هلته قريني سره وو چې الا دي، او چې دلته كې بې ته مقدم كړې نو قرينه نشته دي، پته به نه لگي چې ته اوس قصر د فاعل على المفعول كوې، داسې ويل پكار وو **انما ضرب زيد عمرا** نو چې اوس ته بې مقدم كړې نو واني به **انما ضرب عمرا زيد** به شي، نو پته به نه لگي چې هلكه دا عمراً مقصور عليه مقدم شوي دي كه نه مقصور دي **ولا يجوز تقديمه** اي تقديم المقصور عليه بانما على غيره **للالتباس** و كما اذا قلنا **في انما ضرب زيد عمرا** انما ضرب عمراً زيد، او واني **بخلاف النفي والاستثناء** هلته

القاء په معنی مصدري سره دي اوس دويم غرض ته اشاره کوي چې دا مستبعد مه گڼره. دا اطلاق په دي دوو معنيينو باندې کیږي، د خبر اطلاق په دې معنی باندې هم کیږي چې د ده د خارج لپاره تطابقه او لاتطابقه وي، او د خبر اطلاق په هغه غورخولو د متکلم باندې داسې کلام لره هم کیږي چې متکلم وغورخوي داسې کلام چې د هغه د نسبت لپاره خارج تطابقه او لاتطابقه وي

اوس هغه دريم غرض ذکر کوي چې دلته کې د ماتن کومه معنی مراد شوه؟ وائي **والاظهر ان المراد ههنا هو الثاني** مراد دلته کې د معنيينو د انشاء نه معنی ثاني ده، يعني القاء المتكلم داسې كلام چې خارج کې د هغې لپاره تطابقه او لاتطابقه نه وي

شبهه يا هلكه د اظهر لپاره دليل څه دی؟ وائي يو دليل دا چې **بقرينة تقسيمه** اي تقسيم الماتن الانشاء **الى الطلب و غير الطلب** په قرينې د تقسيم د مصنف سره انشاء لره طلب او غير طلب ته. او طلب او غير طلب نسبت د طالب دي، او طالب متكلم دي، او د متكلم صفت القاء دي، طلب او غير طلب خو په نفس ذات الكلام کې نشي راتلي. طلب او غير طلب په طالب کې راځي، دا صفت د طالب دي، او طالب متكلم دي، او د متكلم صفت القاء دي، بيا دويمه قرينه ذکر کوي **و تقسيم الطلب الى التمني و الاستفهام و غيرهما** امر او نهي ته. بيا د طلب تقسيم کړی دي ماتن تمني او استفهام او غيرهما ته، نو معترض شبهه وکړه چې دا اوله قرينه خو صحيح شوه، تقسيم د انشاء د طلب او غير طلب ته دا قرينه گرخول خو صحيح شو، خکه طلب صفت د طالب دي، طالب متكلم دي او صفت د متكلم القاء دي، خو تقسيم د طلب تمني او استفهام او غيرهما ته دا څنگه قرينه شوه چې دلته کې مراد د انشاء نه القاء ده او نفس كلام ندي، نو شارح جواب وکړو و المراد، دا واو په معنی د اذ سره کوي، چې دا قرينه کيدي شي **اذ المراد بها** خکه مراد په دې امورو سره چې تمني او استفهام و غيرهما دي **معانيها المصدرية** د دې معاني مصدريه مراد دي، نو معاني مصدريه د دوی القاء ده د داسې کلام ده چې مشتمل دی په استفهام باندې، او تمني، او القاء معنی مصدري ده **لا الكلام المشتمل عليها** نه هغه کلام چې مشتمل وي په دې امورو باندې، ذات د کلام مراد ندی، خکه **بقرينة قوله و اللفظ الموضوع له كذا و كذا** وائي لفظ موضوعه د تمنی لپاره ليت دي لفظ موضوع له د استفهام لپاره هَل او أ دي او فلان دي، دا دليل لپاره دليل دي **لظهوران لفظ ليت مثلاً** مستعمل لمعنى التمني، او معنی د تمنی مصدري ده چې ارزو ده **لا لقولنا ليت زيداً قائم** د دې لپاره ندي، لفظ د ليت وضع شوي دی د معنی د تمنی لپاره چې معنی مصدري ده، لفظ د ليتَ د زيد قائم لپاره ندي وضع شوي، ذات الكلام لپاره ندي وضع شوي، **فافهم** کې اشاره وشوه چې فکر وکړه دا مقام دقيق دی، يعني دقة المقام ته

اوس هغه څلورم غرض بيانوي چې تقسيم د انشاء دي طلب او غير طلب دي، وائي **فالانشاء ان لم يكن طلبا كافعال المقاربة** لکه كادَ، و عسَى و غيره او **افعال المدح و الذم** لکه نعمَ و بئسَ و **صيغ العقود** لکه بعتُ و

تيكټ او هر څه وي نو هلته کي بيا لعل به واني، ليت به نه واني
بله مسئله کوي **وقد يتمنى بهل** هل خو د استفهام لپاره وضع شوي دي، د تمني لپاره ندي وضع شوي خو
کله کله په هل سره تمنى کيږي، لکه دا قول شو نحو **هل لي من شفيع** شبهه يا هلکه دلته کي قرينه څه ده
چې هَل دلته کي د تمنى لپاره دي، چې کاش که زما لپاره سفارشي وي، نو واني قرينه دا ده چې **حيث يعلم ان لا شفيع له** دا په هغه ځاى کي چې متکلم ته پته وي چې د ده لپاره شفيع نشته دي، نو استفهام نه
صحيح کيږي، نو چې صحيح نه شو نو په تمنى باندې حمل شو **لانه حينئذ** واني خکه چې دغه کلام په
وخت د عدم علم د متکلم په شفيع باندې **يمتنع حمله على حقيقة الاستفهام لحصول الجزم بانتفائه** اي انتفاء
الشفيع. استفهام کي طلب د فهم کوي، او علم خو د ده شته دي چې ما لره شفيع نشته دي
**والنكتة** سره دفع د اعتراض کوي، چې هلکه دا تمنى په هل سره ولي کوي؟ په خپل لفظ موضوعه سره
بې ولې نه کوي چې ليتَ دي، چې تمنى ته په هَل سره کوي او په خپل لفظ موضوعه سره يې نه کوي،
نو دا واني چې و النکتة في التمني العدول عن ليتَ هغه دا دي چې **هو ابراز المتمنى** هغه ابراز ظاهرول د
متمنى دي چې وجود د شفيع دي **لكمال العناية** د وجې د کمال مقصود مندئ: د متکلم نه **بحصوله في صورة الممكن** چې ګويا که دغه شفيع زما لپاره حاصل شوي دي، خکه استفهام کي مستفهم عنه ممکن
وي، نو د دې وجې نه يې هل سره کوي **في صورة الممكن الذي لا جزم بانتفائه.**
**و قد يتمنى بلو** لو خو وضع شوي دي د شرط لپاره خو کله کله د تمنى لپاره راځي، نحو **لو تأتيني** کاش که
ته راغلي وې زما خوا ته **فتحدثني** تا حديث بيان کړي وي ماته **بالنصب** په نصب د تحدثني **على تقدير فان تحدثني** دلته کي قرينه څه ده؟ واني **فان النصب قرينة على ان لو ليست على اصلها** خکه د لو نه ورروسته
مضارع منصوب کيږي نه، اذ لاينصب المضارع **بعدها اي بعد لو باضمار ان و انما يضمر بعد الاشياء الستة و المناسب ههنا التمني** نو دلته کي لو تمنيه شو.
**قال السكاكي** په سکاکي باندې يې حواله ولې ورکړي د دې جواب وروسته شارح پخپله کوي خکه
چې په دې کي لږ غوندې ضعف وو، نو د ضعف د وجې نه واني آلبا بلا بر ګردن سکاکي، او **كان** سره
يې ولې اوانې) کوي خکه ماتن واني چې زما پرې جزم نشته دي (دا دواړه خبرې مختصر ۳۹
راتلونکي شرحه کي پخپله راځي) نو خکه يې د **كان** سره وويل، واني **كان حروف التنديم** حروف تنديم
ديته واني چې هغه مخاطب لره پښيمانه کړځي په هغه کړلي شوي کار باندې **والتحضيض** حروف
تحضيض ديته واني چې هغه تيزې ورکوي مخاطب ته په کولو د يو کار باندې په راتلونکي زمانه کي،
هغه نحو هلّا و الّا دي، لکن الّا منقلب دي د هلّا نه **بقلب الهاء همزة** هلّا کي تا هاء په همزه باندې بدله کړه
نو الّا ترې جوړ شو، دوه نور دي چې **و لولا و لوما ماخوذة منهما** دا ماخوذ خبر کان **اي كانها** ګويا که دا
حروف ماخوذ دي د **من هل و لو** کوم هل او لو؟ **اللتين هما مركبتين مع لا** لا په لولا کي، وما ما په لوما کي

متكلم لره څه دخل رانغي بالذات شو نه بالواسطه او څه دخل او اختيار او قصد د متكلم لره څه دخل رانغي

اوس ترجيح وركوي اولى نسخي ته! واني **وهودا** دويمه نسخه **لا يوافق معنى كلام المفتاح** نو بيا به دويمې نسخي سره حواله په قال السكاكي سره نه صحيح كيږي. څكه سكاكي **هلته** داسي لفظ ذكر كړي دي، اچې **د هغې** نه معلوميږيا چې اختيار او قصد د متكلم لره دخل شته دي، او اختيار د قصد متكلم لره دخل په تضمين كي دي نه په تضمن كي

شبهه دا واني **هلكه كان** خو د شك لپاره راځي نو ماتن دا په كأن سره ولې ذكر كړو **وانما ذكر** السكاكي **هنا** دا كلام **بلفظ كان لعدم القطع بذلك**، څكه احتمال شته دي دا **هلا** او **الا** او **لولا** او **لوما** دا دي حروف براسها شي، چانه منقلب او منقلب عنه دي نه وي، څه دليل قطعي پرې نشته دي

**وقد يتمنى بلعل** لعل وضع شوي دي د ترجي لپاره خو كله كله دا په تمني كې مستعمليږي نو **فيعطى له حكم ليت** د ليت حكم دا دي چې په جواب د ده كې مضارع منصوب وي په أن مضمره سره، نو دلته كې به هم مضارع منصوب وي **وينصب في جوابه المضارع على اضمار ان**، **نحو لعلي احج فازورك** كاش كه چې زه حج وكړم نو ستا ملاقات به وكړم **بالنصب** [په نصب د ازورك باندې] قرينه په دي باندې دا ده چې دلته كې لعل د ترجي لپاره ندي بلكه د تمنى لپاره دي، څكه واني **لبعد المرجو عن الحصول** خوار پرك وي ورسره دا اني جاني تيكټ نه وي، خرچې د اهل عيال نه وي، او واني **لعلي احج فازورك** نو دا د دي نه معلوميږي چې دا حج كول ډير لري دي، نو چې لري دي نو د لري والي معنى په تمنى كي ده **وهذا** او دا سبب د بعد د مرجو **يشبه المحالات** او محالاتو كي ليت مستعمليږي دارنګه **والممكنات التي لا طماعية في وقوعها** نو **فيتولد منه معنى التمني**

**ومنها** اي و من انواع الطلب **الاستفهام** [تعريف د استفهام كوي چې] **وهو طلب حصول صورة الشئ في الذهن** متكلم طلب كوي د مجيب نه حصول د صورة د مسؤول عنه، په ذهن كې، متكلم واني چې اي مجيبه دا صورة د مسئول عنه زما ذهن ته وغورځوه، نو اوس دا مطلوب به خالي نه وي **فان كانت** اي تلك الصورة **وقوع النسبة** بين امرين او لا وقوعها، وقوع په نسبت ايجابي كې، او لا وقوع په سلبي كې، نو **فحصولها** اي فحصول تلك الصورة چې وقوع لا وقوع **هو التصديق** تصديق ورته ويلي شي، **والا** او كه چيرته وقوع النسبة يا لا وقوع صورة نه وي بلكه بغير وي نو **فهو التصور**.

**والالفاظ الموضوعة له** اي للاستفهام الهمزة و هل دي، **فالهمزة** اوس دا تفصيل كوي همزه راځي **لطلب التصديق** يعني همزي سره سائل غواړي د خپل مجيب نه تصديق په مسؤول عنه باندې، اوس تصديق څه ته واني؟ **اي انقياد الذهن** تسليمول د ذهن **واذعانه** او اذعان كول د ذهن **بوقوع نسبة تامة بين الشيئين كقولك اقام زيد** ايا زيد قائم دي؟ زما مطلب دا دي چې هلكه زما تصديق راوله په نعم سره چې نعم قام زيد. يا وواپه چې لا **في الجملة الفعلية** سوال. هلكه دوه مثالونه يې ولې ذكر كړل واني دا يو په جمله

محذوفه دي وي، چي ضربت زيداً ضربته، او د دويم فعل لپاره مفعول دي محذوف وي. او وا: جا
الاحتمال بطل الامتناع **او يكون التقديم لا للتخصيص** او يا تقديم د تخصيص لپاره دي نه وي. مجرد احتما
لپاره دي وي، معترض راغي شبهه يې وكړه چي بيا قبيح خو هم نه شو كنه، خكه چي دا دوه احتمالين
چي يكي د صحت وشو نو بيا ورته قبيح ولي وائي؟ نو وائي جواب كوي **لكن ذلك** اي ذلك المذكور من
الاحتمالين. لكن هر واحد د دې احتمالينو نه **خلاف الظاهر** خلاف الظاهر دي، نو د دې وجي نه دا قبيح
شو، خكه ظاهر او متبادر دا دي په **ازيدا ضربت** كي چي وروسته فعل مشتغل عنه بضميره ندي. نو دا
ما اضمر عامله د قبيلې نه ندي، بلكه دا مفعول د فعل مذكوره دي، او مقدم شوي دي. او دا دويم
احتمال خلاف الظاهر ندي، خكه چي غالب په استعمال كي، غالب الاستعمال او متبادر تقديم د
منصوب چي په فعل باندي كيږي نو د تخصيص لپاره كيږي د اهتمام لپاره په خاص خايونو كي كيږي،
كم كوز **دون هل زيداً ضربته** دا قبيح ندي، خكه وروسته فعل مشتغل عنه بضميره شو، نو دا قبيح هم
ندي، هلكه دون ولي **فانه لا يقبح** خكه لا يقبح دي **لجواز تقدير** المفسّر قبل زيد **اي هل ضربت زيداً ضربته**.
د سكاكي يو قول ذكر كوي بيا په هغې باندي رد كوي، وائي **و جعل السكاكي قبح هل رجل عرف لذلك**
ذلك څوك دي؟ **اي لان التقديم يستدعي حصول التصديق** بنفس الفعل **لما سبق من مذهبه چي من ان الاصل، عرفه**
**رجل على ان رجلا يدل من الضمير في عرف قدم للتخصيص.**
لكن دي په سكاكي باندي رد كوي وائي **و يلزمه** اي السكاكي **ان لا يقبح هل زيد عرف** خكه دي قبيح نشو
چي دليل د ملازمي دا دي، وائي **لان تقديم المظهر المعرفية ليسّ للتخصيص عنده** هغه وائي نكره كي تقديم
شته دي خكه چي مبتدا، نكره محضه نشي؟ او دلته كي تقديم د تاخر ته حاجت نشته دي **حتى** دا منفي
سره لگوي چي كه د تخصيص لپاره وي نو **يستدعي حصول التصديق بنفس الفعل** تالي چي ان لا يقبح دي
باطل دي، خكه چي **مع انه قبيح باجماع النحاة**.
شارح د سكاكي رد كوي چي د سكاكي خبره تيك ده، او دا څه لازم ده چي هل رجل عرف قبيح شو د
تخصيص د وجي نه، نو هل زيد عرف دي هم قبيح شي د تخصيص د وجي نه، هغه دي د بل علت د وجي
نه وي كنه، د ملازمه په سكاكي باندي نه وارديږي، نو وائي **و فيه** اي في هذا اللزوم **نظر** اعتراض دي په
ماتن باندي **لان ما ذكره** اي الماتن من الدليل من اللزوم ممنوع، خكه **لجواز ان يقبح لعلة اخرى**.
اوس **و علل غيره** سكاكي خو هل رجل عرف، او هل زيد عرف لپاره خو علتونه جدا جدا وويل خو اوس
قوم څه وائي؟ نو وائي و علل غيره اي غير السكاكي **قبحهما** تعين د مرجع كوي قبح هل رجل عرف، و
هل زيد عرف لپاره چي **بان هل بمعنى قد في الاصل و اصله** او اصل د دي هل أهل وو، همزه او هل دواړه وو،
خو **و تركت الهمزة قبلها لكثرة وقوعها في الاستفهام** خكه دا كثير الاستعمال وو، او كثرت د استعمال
تقاضا د تخفيف كوي، نو مونږ تخفيف وكړو په حذف د همزي كي **و تطفلت** او تابع شو دغه هل د دې

واني منشا د غلطيا د ده دا ده چې ده د عين نه غين جوړ كړي دي **واعجب من هذا** واني د دې مخكې خبري نه ډيره عجيبه دا ده چې **انه** دا بعضو **لما سمع قول النحاة انه الخ** نحاتو دا خبره وكړه چې جمله حاليه له اوله سره د علامې د استقبال نه به خالي وي، دليل نحاتو دا ويلي وو **لتنافي الحال والاستقبال بحسب الظاهر** سره دفع د اعتراض كوي چې هلكه منافات خو په زمانه استقبالي او زمانه حالي كې دي او دلته كې حال نحوي دي، حال نحوي او استقبال زماني كې خو څه منافات نشته دي، نو دا جواب كوي چې **بحسب الظاهر** په دې تكې د حال او استقبال كې بحسب الظاهر منافات دي، نو د دې وجې نه نحاتو وويله چې كومه جمله چې حال واقع شي، نو د هغې په سر د جملې كې به علامه د استقبال نه راخي، د جمله حاليه په سر كې، علامه د استقبال به نه راخي، نو ده د عين نه غين جوړ كړو **على ما سنذكره** چې وروسته مونږ به ذكر كوو، حتّى لايجوز الخ، نو فهم اي ذلك البعض منه د دې قول د نحاتو نه چې **انه يجب تجريد الفعل الخ** نو د عين نه غين جوړ كړو، بېشكته كوم فعل چې عامل دې په دې حال كې دا به خالي وه د علامې د استقبال نه، حتى لايصح تقييد مثل الخ **واورد** اي العلامة الشيرازي **هذا المثال دليلا**، دا مثال چې ياتيني زيد سيركب او لن يركب **دليلا على ما ادعاه** نو يا هلكه دلته كې وهم د كوم خاى او ډب دې كوم خاى نه خيژي، دا خو علامه د استقبال جمله حاليه كې ده، او مدعي ستا دا ده چې بېشكته كوم فعل چې عامل دې په حال نحوي كې هغه به خالي وي د علامې د استقبال نه **ولم ينظر الى صدر هذا المثال. انه الخ**.

ماتن وويله چې **و لاختصاص التصديق بها** شارح ورسره لګوي **اي لكون** دې كې يو مقصد د شارح تعين د مرجع كوي چې **بها** ضمير راجع دې كلمې د هل ته، مؤول په تاويل د كلمې سره، دويم غرض د شارح دا دې چې اشاره كوي چې باء داخله ده په مقصور باندې، په مقصور عليه باندې نه ده، يعني هل مقصور دی تصديق پورې متجاوز ندي د تصديق نه تصور ته، او دريم غرض دا دې چې اختصاص كې دوه جزء دي، يو جزء ايجابي او بل جزء سلبي نو په هغې باندې تصريح كوي، نو اوس ګوره جزء ايجابي ته يې اشاره وكړه چې **اي لكون هل مقصورة على طلب التصديق** او جزء سلبي ته يې اشاره وكړه چې **وعدم مجيئها لغير التصديق** يعني عدم راتلل د دې هل د غير تصديق لپاره **كما ذكر** اي الماتن **فيما سبق** كې چې **هل لطلب التصديق فقط** يا كما ذُكر ابالمجهول **فيما سبق** كې امخكې بو علت ماتن بيان كړو چې و لاختصاص التصديق بها) دويم علت دا دې چې **و تخصيصها المضارع** يعني و لتخصيصها . هغې مخكې اختصاص باندې عطف دې. هغه انه مخكې چې كوم لام وو) هغې لاندې داخل دې، او بل د وجې د خاص كولو د هل نه مضارع لره په استقبال پورې، دلته كې باء داخله ده په مقصور عليه باندې، دلته كې استقبال مقصور عليه دې. هل مقصور دې كون د مضارع مستقبل پورې، نو دا دوه علتونه مخكې شو **لا كان لها مزيد اختصاص** دا معلول مؤخر شو، نو كيږي د دې هل لپاره زيادت اختصاص.

کړي، داسې به وائي چې **التصديق و الحكم يتوجه الى المعاني و الاحداث و المعاني و الاحداث مدلولات الافعال** نو نتیجه دا را ووتله چې تصدیق او حکم مدلولات د افعالو شو. دویمې کبرې ته یې اشاره وکړه چې اللتي هي مدلولات الافعال لاالى الذوات اللتي هي مدلولات الاسماء. هغې ته نه متوجه کیږي

**ولهذا** شارح تعین د مشار اليه کوي چې **اي ولان لها** اي لكلمة **هل مزيد اختصاص بالفعل** نو **كان فهل انتم شاكرون** چې قران کې شته دي **ادل على طلب الشكر** د یر دلالت کونکې دي په طلب د شکر د مخاطبینو نه، لادير ادل دي؛ د دي دوو ترکیبینو نه چې **فهل تشكرون** یو، دویم **فهل انتم تشكرون لا مع انه** سره د دې نه چې دا دویم قول چې **فهل انتم تشكرون** دي **مؤكد بالتكرير** نو ګویا چې فهل انتم تشکرون داسې شو چې فهل تشكرون تشكرون، خكه **لا انتم فاعل فعل محذوف** دي، نو سره د دینه چې دا مؤكد دي په تکریر سره خو فهل انتم شاكرون ډیر ادل دي په طلب د شکر باندې وائي خکه ادل دي چې **فهل انتم شاكرون** کې تا ابراز **د ما سيتجدد** وکړه په معرض د ثابت کې وکړو، چې هل خو وضع شوي وو چې تخصيص د مضارع یې بالاستقبال پوري کولو، هغې نه الله عدول وکړو چې دا شکر اوس ستاسو نه غوارم، نو دا ډیر ادل شو، نو **فهل انتم تشكرون** ويل پكار وو يا فهل انتم تشكرون ويل پكار وو، تاسو به وروسته زمانې کې شکر کوئ هغه درنه غوارم، هغه یې پرینبودو جمله اسمیه ته یې عدول وکړو چې **فهل انتم شاكرون** نو مطلب دا شو چې اوس تاسو نه غوارم، استقبال پوري نشته دي، نو دا ډیر ادل شو، نو وائي. لان ابراز ما في معرض الثابت ادل على كمال العناية بحصوله اي بحصول ذلك الشئ من ابقائه على اصله كما في تشكرون، لكه فهل تشكرون کې په خپل اصل باندي دي، مضارع شته دي، دارنګه د هل انتم تشكرون نه **لان هل في** هل تشكرون و هل انتم تشكرون على اصلها دي چې استقبال دي، لكونها داخلةً على الفعل تحقيقاً في الاول و تقديراً في الثاني.

**و فهل انتم شاكرون ادل** دي کې چې شارح اشاره کوي چې دا **ا فانتم شاكرون** عطف دي په فهل تشكرون او فهل انتم تشكرون باندې، نو د هغې نه مخکې ادل وو، دغسې دلته کې را اوباسئ، وائي و فهل انتم شاكرون ادل على طلب الشكر **من ا فانتم شاكرون** ايضاً، چې همزې سره یې روائي بیا هم هل سره چې یې روائي هغه يري د دې همزې نه هم ډیر دلالت کوي **وان كان للثبوت ادعى** خکه هل ډیر قوي دي په غوښتلو کې **للفعل من الهمزة** نو **فتركه** اي فترك الفعل **معها** اي مع الفعل **ادل على ذلك** اي كمال العناية الخ

**و لهذا** اي و لان هل **لا يحسن هل زيد منطلق** جمله اسمیه سره ویل بنه ندي **الا من البليغ** بلیغ سړي هل زيد منطلق ویلي شي او غیر بلیغ یې نشي ویلي خکه **لانه** اي البليغ **الذي** هغه سړي دي **يقصد به الدلالة على الثبوت و ابراز ما سيوجد في معرض الموجود** او غیر بلیغ په دې نکتو باندي نه پوهیږي، هغه لپاره هل زيد منطلق او هل زيد ينطلق يو شي دي

**وهي** اي **هل قسمان يو بسيطة** تعريف د هل بسيطه کوي، هل بسيطه دیته وائي چې **وهي التي يطلب بها**

تصديق دواړو لپاره راځي. **هل** د طلب د تصديق لپاره راځي. **فقط**. باقي الفاظ د استفهام صرف د
طلب تصور لپاره راځي **فقط**. نو معترض راغي شبهه يې وکړه چې هلکه بيا خو په باقي الفاظو د
استفهام کې فرق رانغي. چې ټول د طلب د تصور لپاره شو نو ده جواب وکړو **وتختلف من جهة** اي من
**سبب ان المطلوب بكل منها تصور شئ اخر** د مطلوب لحاظ سره يو بل نه جدا جدا دي. نفس طلب د تصور
کې ټول شريك دي خو مطلوب کې پکې فرق شته دي العل المراد بالفرق في حصول المطلوب اي في
الكيفية **فقيل** ... شوي دي. دا قول لپاره د ضعف ندي، قيل د دې لپاره دي په مجهول سره يې
خکه وويله چې قائل معلوم نه وو متعين ماته نه، نو قيل سره يې وويله. خکه دا راتلونکي خبره
ضعيفه نده بلکه قوي خبره ده. د ټولو اتفاقي خبره ده. نو واني **قيل فيطلب بما شرح الاسم** ما سره سئل
واني چې زما د دې مسؤول عنه اسمي تشريح وکړه، د دې لفظ مفهوم ماته بيانوه. د ده په وجود
خارجي باندې زما علم نشته دي **كقولنا** لکه دا قول زمونږ شو **ما العنقاء** عنقاء څه شي دي؟ **طالبا** اي
حال کوننا طالبين **ان يشرح هذا الاسم** د لفظ د عنقاء چې د دې مفهوم څه دي او وجود خارجي د دې
باندې زمونږ علم نشته دي **ويبين مفهومه** او بيان کړي شي مفهوم د دې نو **فيجاب بايراد لفظ اشهر** نو
جواب ورکولي شي په راوړلو د لفظ مشهور سره. ته به واني چې **طائر عجيب يا طائر لو وقع على الجبل** نو
**لرفع الجبل** د غر نه به اوچت وي، يا **طائر لو وقع على الجبل لرفع الجمل** اوښ نه به هم اوچت وي
دا عنقاء په زمانه د حضرت حنظلة بن صفوان رضي الله تعالى عنه کې ښکاره شوي وه، نو دا راغله او د
خلکو په وړو تختولو باندې يې شروع وکړه، خکه وږي شو څه ښکار ورته ملاؤ نه شو، جړۍ وه په
دي ورخ هم باران وو په غرونو ښه واوره شوي وه! نو راغله او د ابادۍ نه يې د خلکو په وړو تختولو شروع
وکړه، او د خلکو د قابو نه بهر وه، نو دوی راغلل حضرت حنظلة بن صفوان رضي الله تعالى عنه ته يې
درخواست وکړه چې ته الله ته سوال وکړه چې دغه شي ختم شي، دا خو لوی مصيبت کې مونږ لاړو، زمونږ
واړه تختوي، وړي يې، نو حضرت حنظلة بن صفوان رضي الله عنه دعا وغوښته الله نه، الله د عنقاء نسل
ختم کړو. نو اوس عنقاء هسې يو مفهوم بلا مصداقه پاتې شو. د دې مصداق خارجي نشته دي
**او ماهية المسمى** يا طلبولي شي په دې ما سره ماهيت د مسمى، يعنې ماهيت دهغه مفهوم، معترض
راغي شبهه يې وکړه چې ما شارحه او ما حقيه کې بيا فرق رانغي؟ خکه چې ماالعنقاء سره هم ماهيت
د مسمى وو کنه. ده جواب وکړو **اي حقيقته التي هو بها هو** حقيقت د دغه مسمى، هغه حقيقت چې دغه
مسمى په دغه حقيقت سره **هو** دغه مسمى کيږي، يعنې موجوديږي په خارج کې، نو جواب داسې وشو
چې دلته کې ماهيت د موجود خارجي مراد دي، چې يا هلکه د دې شي په وجود خارجي باندې زما
علم شته دي خو کنه تفصيل يې ماته ندي معلوم هغه ماته بيان کړه. نو فرق راغي، مثال داسې شو
لکه **ما الحركة** يا هلکه حرکت خو موجود دي په خارج کې چې خلق د دې ځای نه حرکت کوي بره

موضوع دي د څه معنی لپاره مهمل خو دا نه دي، اجمالاً تا معلومه کړه. اوس وروسته مې تاته وویله **حیوان ناطق** نو تفصیلاً پته تاته راغله، واني **ووقف علی الشئ الذي یدل علیه الاسم** واني یا هلکه یو سړي عالم باللغة نه وي نو هغه خو نشي خبریدي په هغه شي موضوع له باندي. واني نه **الا کان عالما باللغة** نو اجمالي بدیهي شو، هر چاته چي ته ووايي چي **ماالانسان** نو هر څوك پوهیږي چي دا انسان د څه شي لپاره وضع شوي دي **فرس** دا هم تاته بدیهي دي چي دا یو لفظ موضوعه دي، حمار ته ووايي دا یو لفظ موضوعه دي **مفاهیم اجمالیة کلها بدیهیات** شو. بدیهیات په دي معنی چي هر سړي عالم باللغة وي دا معلومولي شي چي دا لفظ څه معنی لپاره وضع شوي دي، تپوس ته حاجت نشته دي خو چي عالم باللغة قدري وي

**واما الحد** هر چي دي کنهه تفصیلي د شي مخصوص معین نو **فلا یقف علیه** واني نه خبریږي په دي حد باندي **الا المرتاض**: هغه سړي چي ځریدونکي وي **لبضاعة المنطق** مرتاض ځریدونکي. ریاضي ته ریاضي ځکه واني چي ریاضي اکثر تعلق لري د قوت خیالي سره، او د ورو قوت خیالي زیات وي په نسبت سره قوت عاقله ته، قوت عاقله د هغوی کمزوري وي، نو دي حکماؤ او په خپلو ورو به ریاضي واني. ځکه چي د ورو قوت خیالي زیات وي، او منطق به یې پرې وروسته ویلو. ځکه هغه کاسب غواړي، چي جنس به مخکي کوي، فصل به وروستي کیږي ترتیب طبعي به په مینځ کي به ور کوي

**فالموصولات** سره یو غرض دا دي چي دا تفریع شو، متفرع علیه دا مخکني تکي شو چي **لان من لا یعرف مفهوم اللفظ استحال منه ان یطلب وجود ذلك المفهوم** نو د تفریع مقصد دا راووته چي د کوم شي چي علم ستا په وجود خارجي باندي وي او د هغي حد وشو نو هغي ته حد حقیقي بحسب الحقیقة واني، کوم شي چي ستا علم د هغي په وجود خارجي باندي نه وي د هغي حد وشو نو هغي ته حد حقیقي بحسب الاسم واني، نو ګوره اوس د دینه معلومه شوه چي کوم شي چي واقع شي په جواب د ما شارحه کي نو دینه حد حقیقي بحسب الاسم ورته واني، او کوم شي چي واقع شي په جواب د ما حقیقیه کي نو هغي ته حد حقیقي بحسب الحقیقة واني، نو د تفریع نه غرض دا شو

دویم غرض د شارح **فالموجودات** نه دفع د اعتراض کوي. اعتراض دا وارد شو چي اي هلکه تا مخکي وویله چي **اذ لا حقیقة للمعدوم ولا ماهیة** نو ستا کلام کي تدافع راغله مخکي واني عنقاء معدوم ده، هغي لپاره ماهیت او حقیقت شته دي چي **طائر عجیب** طائر لو وقع علی الجبل لرفع الجبل، او لرفع الجمل، او وروسته واني چي د معدوم لپاره حقیقة او ماهیت نشته دي؟ نو تدافع راغله

نو شارح فالموجودات سره جواب کوي چي ته پوهه شوي نه یې کنه، د عنقاء چي تعریف کیږي نو حد حقیقي بحسب الاسم کیږي او وروسته چي زه نفي کوم چي اذ لاحقیقة للمعدوم ولا ماهیة نو حد حقیقي بحسب الحقیقة ځکه نفي کوم، ۲ د معدوماتو لپاره حد حقیقي بحسب الحقیقة نشته دي، او معدوماتو لپاره حد حقیقي بحسب الاسم شته دي. نو تدافع نشته، نو ځکه واني **فالموجودات حقیقیة** و

**يسال بما عن الجنس** د جنس د مسؤول عنه نه، چې دا مسؤول عنه د كوم جنس نه دي **تقول ما عندك** و...
اي اي اجناس الاشياء عندك كوم يو د اجناسو د اشياء نه تاسره دي **و جوابه** جواب د دې به كوي **كتاب** چې يا...
هلكه ماسره د جنس د كتاب نه دي يا د فرس نه يا د حمار نه دي

شبهه نو دا واني چې مخكې تا ويلي وو چې ماسره سوال د ماهيت نه كيږي، نو دا واني **فيدخل فيه** واني داخليږي په دغه سوال عن الجنس كې السوال عن الماهية و الحقيقة، د ماهيت چې ما شارح... ده، حقيقت نه چې ما حقيقيه دي، **هغه په دې كې داخل دی نحو ما الكلمة** اي اي اجناس الالفاظ. ... كوم جنس دي د اجناسو د الفاظو نه **و جوابه لفظ** موضوع مفرد **او عن الوصف** يا سوال به كيږي د ماسره د... وصف نه. دا اصطلاح د اهل معانيو ده، او هغه مخكې تقسيم د ما. ما حقيقيه او اسميه ته هغه... اصطلاح د منطقيانو وه. **تقول** ما زيد جوابه الكريم و نحوه كالشجاع **ويسال بمن** دې كې سكاكي خطا شوي دي واني **و يسال بمن عن الجنس** خو دا جنس **من ذوي العلم** نه به وي **تقول من جبريل** نو معنى **اي ابشر هو ام ملك ام جني** د بشر د جنس نه دي كه د ملك كه جني دي، نو ماتن واني په دې كې سكاكي خطا شوي دي. من سره سوال د جنس د مسؤول عنه نه نه كيږي، **وفيه نظر** په دې ما قال د سكاكي كې نظر دي **اذ لانسلم انه** دا لفظ د مَن للسؤال عن الجنس، او دا هم نه منو **وانه يصح في جواب من جبريل ان يقال ملك** دائم يواخې نشي ويلي. بلكه دا سې شي به ذكر كوي چې هغه تشخيص د جبريل فائده كوي، هغه څه دي؟ **بل جوابه ملك ياتي بالوحي كذا وكذا** يعني انبياؤ ته د الله د طرف نه **مما يفيد تشخيصه** او ملك ياتي بالوحي من الله الى الانبياء. دا د جبريل نه علاوه په بله فرشته باندې نه صادقيږي، تشخيص فائده كوي

**ويسئل باي** كله يطلبُ او كله يُسئل دا تفنن في العبارة دي **عما** د هغه څيز نه **يميز به احد المتشاركين** متشاركين وي **في امر** كې **يعمهما** چې شامل دي دا امر دي دواړو ته **وهو** او هغه امر چې دا دواړه متشاركين په هغې كې شريك دي **هغه مضمون ما اضيف اليه** اي حاصل د هغه شي، مضمون د هغه شي دي چې د اي اضافت هغې ته شوي دي، نو اي سره غرض د سائل دا دي چې هلكه د اي په مضاف اليه كې دوه څيزونه چې شريك دي. دې كې مالره ما به الامتياز ذكر كوه چې د يو بل نه په څه سره د دې ممتاز دي **نحو اي الفريقين خير مقاما اي انحن ام اصحاب محمد صلى الله عليه وسلم** اوس دا مثال مطابق د ممثل سره دي. فالمؤمنون و الكافرون. دا دواړه **قد اشتركا في الفريقية**. او فريقيت مضاف اليه د اي دي **وسالوا** اي المشركون و اليهود **عما يميز احدهما عن الاخر** د هغې شي نه، چې ما به الامتياز دي كې څه دي؟ فريقيت كې خو دواړه شريك دي، نو **مثل كون الكافرين القائلين لهذا القول** چې بعث بعد الموت نه مني او **و مثل كون المؤمنين اصحاب محمد صلى الله عليه وسلم** ما به الامتياز به دا ذكر كوي

**ويسال بكم عن العدد** اي عن عدد المسؤول عنه، يا هلكه د دې مسؤول عنه شمار څه دي؟ لس دي. يوولس دي، شل دي، لاك دي، كروړ دي، نو **سل بني اسرائيل كم اتيناهم من اية من بينة اي كم اتيناهم** دي

كي شارح اشاره ديته وكړه چي دا **من اية** تميز د دي كم دي او من زائد دي **اي كم اية اتيناهم** اعشرين ام ثلاثين **فمن اية مميزكم بزيادة من** من خكه زياتي كوي. واني مخكي تاسو ته تير شويدي. لما وقع من الفصل بفعل متعد بين كم و مميزه كما ذكرنا. په **وكم ذدت عني من تعامل حادث** كي تاسو ته تير شويدي في الخبرية معترض راغى شبهه يې وكړه د شبهي حاصل دا دي چي **فكم ههنا للسوال عن** دا شبهي ته اشاره وشوه چي كم دلته كي سوال دي د عدد نه. او سائل الله دي. نو سوال خو **هغه** څوك كوي چي د **هغه** پري علم نه وي. او الله خو عالم دي په هر څه باندي. نو سوال ته حاجت رانغي. نو **لكن** سره جواب كوي **لكن الغرض من هذا السؤال** غرض د دي سوال نه خان پوهه كول د سائل ندي چي الله دي **بل هو التقريع والتوبيخ** يهودو ته زورنه ده چي دا خنزيرانو ته مونږ څومره معجزي وركړيدي. بيا هم تاسو د موسى عليه السلام معجزه غواړئ، او واني **ارنا الله جهرة**.

**وبكيف** او سوال كولي شي په كيف سره د حال نه چي حال د مسؤول عنه ماته بيا نه كړه چي **كيف زيد** زيد صحيح دي كه سقيم دي **و باين عن المكان** چي اين زيد في المسجد ام في السوق. ب في البيت دي **وبمتى عن الزمان شبهه** يا هلكه په متى سره هم د زماني نه نو بيا خو ايان او متى كي فرق رانغي، نو فرق ته اشاره كوي چي **ماضيا كان او مستقبلا و بايان عن الزمان المستقبل** قيل سره اوس فرق كوي چي كوم خاي كي متى سره هم سوال وشي د مستقبل نه او ايان سره سوال وشي د مستقبل نه نو بيا فرق څه دي. بيا خو فرق رانغي. نو دي دواړو كي فرق كوي واني **وقيل يستعمل** واني مستعمليږي دغه ايان **في مواضع التفخيم** په مواضع د تعظيم كي. امور معظمو كي ايان مستعمليږي **مثل ايان يوم الدين** او خلاف د متى نه، متى په امور حقيرو كي هم مستعمليږي لكه **متى يطير الذباب** ويلي شي. ايان يطير الذباب نشي ويلي **و انى تستعمل تارة بمعنى كيف شبهه** هلكه مونږ به څه پوهيږو چي انى دلته كي په معنى د كيف سره دي، قرينه به څه وي. نو شارح قرينه اشاره كوي واني **و يجب ان يكون بعدها فعل** واني بس دي چي د انى نه وروسته فعل راشي نو پوهه شه چي دلته كي انى په معنى د كيف سره دي **نحو فاتوا حرثكم انى شئتم** راخئ خپل فصل ته خنګه چي ستاسو خوښه شي. نو دلته كي په معنى د كيف سره دي **اي على اي حال شئتم و من اي شق اردتم** د هر طرف نه چي تاسو اراده وكړئ. د وروسته طرف نه. مخكي طرف نه. هر خنګه چي وي، خو شرط دا دي چي حرث ته به راخي. او د محل د فرث نه به خان ساتئ: **بعد ان يكون اللتي** پس د دينه چي وي هغه خاى د راتلو **موضع الحرث** به وي

حضرت شيخ محمد طاهر رحمه الله قصه كوله چي يو خل ما درس كولو. نو غير مقلد زما په درس كي ناست وو. وي چي الله خو واني **انى شئتم** چي خنګه چي تاسو خوښه شي. نو دا احاديثو كي هسې راغلي چي د شا طرف نه راتلل ناروا دي حرام دي، چي انّ الله لاينظر من اتى الخ، او قران كي خو راغي چي **انى شئتم** نو وي ما ورته وويله چي هلكه قران كي حرث راغلى دى. اوس دا حرث كومه لاز ده؟ مخكښى ده

که ورستني دې؟ او ما ورته وويله چي ته د وروسته طرف نه پيدا يې که د مخکې نه د خپلې مور ک
ته وروسته طرف نه پيدا يې نو حرث وروسته طرف شو تيک ده، او که نه مخکې نه پيدا يې نو حرث
مخکښې دې، هغه چې وې غلې شو، بيا زما درس ته د راتلو نه يې هم بس کړل، بيا درس ته نه راتلو
لم يجئ انى زيد بمعنى كيف هو خکه وروسته فعل نشته دی
واخرى بمعنى من اين او دويم انى په معنى د من اين سره راځي نحو انى لك هذا اي من اين لك هذا الرزق الاتي
كل يوم بې موسمه هر وقت کې، مريم وويله چې دا زما څه کمال ندي يا زما څه اختيار ندي، معجزه
ولي په اختيار کې نه وي (کرامت) قالت هو من عند الله مريمې دا ونه ويله چې دا زما کمال دی او زه ولي
يم. واني زما هيڅ کمال نشته زه مظهر د صرف معجزي يم، او ښکاره کوونکي زما په لاس باندې
دي قالت هو من عند الله د دينه صاف معلومه شوه چې کرامت د ولي په اختيار کې نه وي
دا دوه خبري زده کړې: ۱ کرامت د ولي لپاره کمال هم ندي، چې ولايت موقوف شي کرامت پوري، بلکې
مظهر د کرامت ولي دي، محل ولي دي، مظهر او مصدر الله دي، نو چې مصدر الله شو نو د ولي په
کې څه کمال راغې؟ که الله ثابتوي خانله يې ثابتوي ګني نه يې ثابتوي، ۲ دويم دا چې کرامت د ولي
په اختيار کې نه وي حضرت زکريا عليه السلام ترې عبرت واخسته چې يره الله حضرت مريمي ته بې
موسمه ميوې ورکولې شي نو ماته بې موسمه اولاد نشي راکولې؟ يره پکار ده چې زه هم څه وکړم الله
ته هنالك دعا زكريا ربه، قال رب هب لي من لدنك ذرية طيبة انك سميع الدعاء.
اوس معترض راغې شبهه يې وکړه چې دې ماتن په دې انى کې تستعمل وويله او دا نې ونه ويله چې
انى وضعت تارة بمعنى كيف و تارة بمعنى من اين دا ولې؟ نو وائي وقوله اي الماتن چې يستعمل ويلي دي اشارة
الى انه اي لفظ انى يحتمل ان يكون مشتركا بين المعنيين، نو چې مشترک شو چې مشترک لفظي شو، او
دا هم احتمال شته و ان يكون في احدهما حقيقة و في الاخرى مجازا په اخر بله معنى کې مجاز شي، اوس که
وضعت يې ويلي وي نو بيا اشتراك متعين کيدو، نو د دې وجې نه يې تُستعمل وويله، نو استعمال
شامل اشتراك ته هم دي او حقيقت او مجاز ته هم دي، اوس دې دويم احتمال کې دويم احتمال
بيانوي، و في الاخرى کې دويم احتمال ذکر کوي او دا دوه احتماله ذکر کوي الاخرى کې خو دا راغله چې
دا انى په من اين سره دي، يو احتمال دا دي چې انى مجموعه د من اين سره به وي، او دويم احتمال دا
دي چې دا انى اين سره کرتې دي؟ من به ورسره ته د بهر نه د خان نه ورسره تړل کوي، نو دا به دويم
احتمال کې دويم احتمال بيانوي، واني و يحتمل ان يكون في الاستعمال يكون مع من ظاهرة كما في قوله لكه
په دې قول د قائل سره من انى عشرون لنا اي من اين عشرون لنا او مقدرة كقوله تعالى انى لك هذا اي من اين على ما
ذكره بعض النحاة دا يحتمل سره لګوئ چې لکه ذکر کړي دي دا احتمال بعض نحاتو، نو احتمال ثاني
محل د شو د دوو احتمالينو

**نفسه** خكه سري د خپل خان د حال نه تپوس نه كوي. لكه زه وو ايم چې هلكه زه وزي يم كه نه ... نو
پرته به خلق ور كري چې وږي يې كه نه يې تاته به پته وي كنه. مانه څه تپوس كوي زه نري يم كه نه يم؟
زه خفه يم كه نه يم. داسې تپوس څوك نه كوي. د خان نه. نو دلته كې كه د استفهام معنى شي نو
معنى به دا شي چې زه هدهد وينم كه نه وينم. نو مونږ ته څه پته ده حضرت چې ويني يې كه نه يې
ويني، تپوس داسې څوك نه كوي، نو استفهام صحيح نشو نو استفهام په معنى د تعجب سره شو
**وقول صاحب الكشاف** دا مبتداء ده او دا وروسته **لا يدل على** يې خبر دي. اوس صاحب د كشاف زور
لګولي دې چې دلته كې استفهام پخپله هغې حقيقي معنى باندې صحيح دي. تعجب ته حاجت نشته
دي. هغه استفهام داسې صحيح كړي دې چې ګوره سليمان عليه السلام اول خاى د هدهد ته وكته. نو
هغه به خپل خاى باندې نه وو. د هغه به د ودريدو يو خاص خاى وو د حاضرۍ په وخت كې. نو سليمان
عليه السلام ووېله چې هلكه زه هدهد نه وينم د نه ليدو دا معنى چې هدهد نشي ليدى **مالي لا ارى**
**الهدهد** يعنې **لا يراه** داني بهر نه ووېله نو بيا سليمان عليه السلام متردد شو چې يا هلكه دا نه چې
ليدلې كيږي څه د پردې شاته طرفته ولاړ دې كنه د سره غائب دي؟ نو استفهام صحيح شو. نو معنى
دا چې زه يې اوس وينم نه نو اوس زما شك راغلي دي. استفهام په دې كې كوم چې دې د پردې نه شاته
دې او كه د سره غائب دي، واني كه د پردې نه شاته يې اى هلكه هدهد نو ښكاره شه او كه غائب وې
نو **لاعذبنه عذابا شديدا**.

نو **فقال مالي لا اراه** على معنى انه لايراه اى الهدهد، او حال دا دې **و هو حاضر لساتر ستره** د وجې د يوې
پردې نه **اماته نه ښكاري**) او پټ كړي يې دې ده لره **او غير ذلك** يا خمانه شا طرف ته دې **ثم لاح له** اى
لسليمان عليه السلام. چې **انه غائب. فاضرب عن ذلك** نو د دې تردد نه يې اضراب وكړو **واخذ يقول اهو غائب**
ماته خو غائب ښكاري ايا دې رشتيا غائب دي، نو دا استفهام خپل نفس نه ونشو **كانه يسال عن صحة ما**
**لاح له** يا هلكه ماته خو دا ښكاري چې هدهد غائب دي. ايا واقعي دې غائب دې. دا خبره صحيح ده؟ نو
خلكو ويل او. نو شارح واني، دا قول د صاحب د كشاف **لا يدل على ان الاستفهام** دلته كې د مختصر دوه
نسخې دي. يوې نسخه كې دا **لا** په **لا يدل** كې نشته دې بس خيرو خلاص څه شبهه نه وارديږي، نو معنى
دا شوه، چې قول د صاحب الكشاف دلالت كوي چې **ان الاستفهام على حقيقته** دې، او دويمه نسخه دا ده
چې زمونږ او ستاسو مخې ته پرته ده چې لا پكې شته دي. نو بيا عبارت كې لږ غونډې حذف كوو.
معنى دا **لا يدل على ان الاستفهام على حقيقته قطعا و يقينا** چې دا استفهام قطعا او يقينا دلالت په استفهام
باندې نه كوي احتمال د تعجب پكې شته دې، دواړه صحيح كيږي تعجب هم او استفهام هم
د ايت كريمه نه يو خو مسائل معلوم شو يوه مسئله دا معلومه شوه چې حاضرۍ اخستل د طالبانو نه
دا د شريعت سره منافي ندي، چې هلكه ته ولې غير حاضر وې؟ دويمه مسئله ترې ثابته شوه چې يو

پاك د چانه تپوس نه كوي چې تاسو ايمان راوړى؟ معنى دا اسلام راوړئ **والتقرير** د تقرير دوه ترجمې دي، يو باعث كول د مخاطب په اقرار باندې، او دويم تقرير په معنى د تحقيق او تثبيت سره. نو شارح دلته ترجيح معنى اول ته وركوي، او وروستنه دويمه معنى په قيل سره ذكر كوي **وقد يقال** سره. نو اشاره يې وكړه چې د تقرير دا معنى اول چې حمل المخاطب على الاقرار دي، دا شائع او كثير دي. او تقرير په معنى د تحقيق او تثبيت سره قليل دي **اي حمل المخاطب على الاقرار** خو اقرار **بما يعرفه** اقرار به هغه حكم چې مخاطب پيژني هغې لره، چې اې مخاطبه په دې باندې اقرار وكړه **والجاءه** او مجبوره كول د دې مخاطب **اليه** دي اقرار ته، خو **بايلاء المقربه الهمزة** هغه مقرر به همزې ته به نژدې وي **اي بشرط** كې اشاره كوي چې دا باء شرطيه ده **اي بشرط ان يذكر بعد الهمزة ما** هغه حكم يا هغه لفظ چې **حمل المخاطب على الاقرار به** په دې لفظ باندې **كما مر في حقيقة الاستفهام** من ايلاء المسؤول عنه الهمزة. خكه استفهام كې هغه مسؤول عنه همزې ته به نژدې وي **تقول اضربت زيدا** تا زيد وهلى دي؟ نو مطلب دا دي چې اقرار وكړه چې او ما وهلى دي **في تقريره بالفعل** تپوس نه كوي بلكه اقرار وكړه، خكه متكلم ته معلومه ده چې مخاطب ضرب د زيد كړي دي خو مطلب دا چې اقرار ترينه اخلي **وانت ضربت** دا **في تقريره الفاعل** اي تا ضرب كړي دي چې انا ضارب وا **زيدا ضربت في تقريره بالمفعول** چې ته اقرار وكړه چې زما مضروب زيد دى، **على هذا القياس** په دې باندې نور قياس كړه متعلقات او معمولات د فعل **ا في الدار زيد** اقرار وكړه چې په كور كې زيد شته دى **ا راكبا جئت** اقرار وكړه چې سور راغلى يم.

**وقد يقال** د تقرير دويمه معنى كوي چې **التقرير بمعنى التحقيق والتثبيت فيقال ا ضربت زيدا بمعنى انك ضربته البتة** خو مطلب يو دي خكه چې اقرار يې وكړو نو هم د هغه په نزد يې ثابتوي كنه **والانكار كذلك** واني انكار هم پشان د دې اقرار دي **نحوا غير الله تدعون** نو دلته كې منكر اصل دعوت ندي، دعاء منكر ندي، بلكه دعاء د غير الله منكر دي، اصل دعاء منكر ندي، اوس ذلك كې اشاره وشوه اقرار ته نو انكار مشبه شو او اقرار مشبه به شو الف د تشبيه كاف شو وجه د شبهې ماتن نه وه ذكر كړې شارح يې ذكر كوي چې **اي بايلاء المنكر الهمزة كالفعل** لكه هلته كې مقرر به همزې ته نژدې وي نو دلته هغه منكر به نژدې وي همزې ته، هغه منكر به وي **كالفعل** لكه فعل شو په دې قول د امرؤ القيس كې

| | |
|---|---|
| اتقتلني والمشرفي مضاجعي | ومسنونة زرق كانياب اغوال |

واني ته وژني ما په حب د سلمى كې حال دا دى هغه توره چې منسوب ده مشارف اليمن ته، مشارف اليمن د يو خاى نوم وو هلته توري ښې جوړيدې، د تورو اهينګران د تورو بنه وو، واني هغه زما په څنګ كې پرته ده، او هغه نيزه صافه او تيره، صافه خليدونكې پشان د نو او بلا هم ماسره شته دي، نو ته ما وژلې شې. نشي وژلې نو أ تقتلني كې دلته دا معنى چې ايا ته وژني ما، نه نشې وژلي، انكار كوي استفهام انكاري شو **والفاعل في قوله تعالى اهم يقسمون رحمت ربك** نو دلته كې منكر نفس قسمت نه دي،

